ما په دې کتاب کې د اسلام حکمونه ولیکل
ښه مې کړل اسانه په شعرونو کې مې وپېیل
غــواړې کــه نــږه مسلماني نو ښه یې ولـولـه
مــا درتــه احـکام په دلیلونو بـاندې وخـېړل

# نـږه مسلمانـي

## منظومه فقه

عبدالرحیم مسلم دوست





# ځانګړني:


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | : نړه مسلماني (منظومه فقه) . |
| ليکوال | : عبدالرحيم مسلم دوست . |
| خپرندوی | : سپين غرخپرندويه ټولنه . |
| دچاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه . |
| دچاپ وار | : لومړی . |
| دچاپ نېټه | : ۱۳۸۹ل / ۱۴۳۲س / ۲۰۱۱ م . |
| چاپځی | : پېښور . |

بسم الله الرحمن الرحيم

د رحمان رحيم الله په نوم يې وايم
په ثنا او په حمدونو به يې ستايم
هم درود په محمد رسول الله دی
چې نبي او هم رسول د پاک الله دی
هم صلاة سلام په آل د پیغمبر دی
په اصحابو مؤمنانو سراسر دی
د صلاة سلام نه وروسته دا خبره
ښه د زړه په غوږو واوره بختوره
ما منظومه فقه کښلې وه کیوبا کې
ګوانټنامو کې زندان د امریکا کې
د احکامو يوه ښکلې مجموعه وه
د اسلام د مسائلو موسوعه وه

څــه ليکنــې وې تفــسير و څــه اشــعار وو
چــې ليکلــي مــا پــه مينــه انتظــار وو
ټــول ســتانه کــړه ظالمــانو جنرالانــو
بزدلانــو ســي.آی.ای امريکايــانو[1]
يــو څــو پــاڼې يــې راپرېــښودې او نــورې
ټولې پـاتې شـوې مظلـومې او سـرتورې
چــې راخوشــې راآزاد شــوو لــه زندانــه
دښمنان مو شول ډېر سـتړي او سـتومانه
ما او ورور مې اسـتاذ بـدر چې پـه کـور شـو
او راخلاص د امريکـا لـه ظلـم و زور شـو
پــه جــرات مــو قلمونــو تــه ورلاس کــړ
او انځور مو په کاغذ بانـدې احـساس کـړ
ظالمــانو چــې وو مــونږ ســره څــه کــړي
پــه ليکلــو يــې مــونږ نــه شــووربغړي
مــــونږه وليکــــل ښــــکاره حقيقتونــــه
بــې پـردې مـو کـړل د ډېـرو عورتونـه
آی.ایس.آی او سـي.آی.ای او غلامـان يـې
ښه رسوا شول هم ښکاره شو ګوډاګيان يـې
مـونږ د ظلـم کيـسې ډېـرې راښـکاره کـړې
په دليل باندې مو ښې کره پـوره کـړې

[1] سي.آی.ای د امريکا استخبارات دي او آی.ایس.آی د پاکستان پنجابي استخبارات دي.

چې د "ماتې زولنې" کتاب عيان شو
ډېر په بيړه بيړه خپور يې هر بيان شو

آی ايس آی او ګوډاګيان يې وارخطا شوو
امريکا او جاسوسان يې په ژړا شوو

آی.ايس.آی د پنجابيانو بزدلۍ نه
زه بيا ونيولم خپلې بدحالۍ نه

پټ زندان کې مې اته مياشتې کړې تېرې
د وحشت کيسې به نه کړم کله هېرې

د زنځير او زولنو کيسې دي ډېرې
بېل کتاب دی پټوم يې نه له وېرې

بيا يې واچولم جېل د پېښور کې
دې بدبويه، دې پليت او دې ژور کې

د اسلام په جرم دلته بنديوان يم
اوس اسير د زولنو او د زندان يم

وحشتونه د زندان په ما تېرېږي
بزدلان د آی.ايس.آی رانه ډارېږي

که مې سر له تنه غوڅ شي پروا نشته
حق به وايم، حق به ليکم سودا نشته

ما زندان کې دلته وکړې څه ليکنې
بې پيياوړې، غېرتمنې او پتمنې

پاک الله راته زندان کې توفيق راکړ
سالم فکر او قلم يې راعطا کړ

هــم مـــې وليکـــه تفـــسير هـــم کتابونـــه
هم مـې وليکـل د ننـګ پـتمن شـعرونه
عبـدالله چـې زمـا زوی پـه نـوم يـادېږي
د حـق لاره کـې لـه هيڅـا نـه وېرېـږي
ماتــــه راکـــړه مـــشوره دغـــه ښــاغلي
چې په جال کې يـې وو مـا سره ليـدلي
چـــې منظومـــه فقـــه وليکمـــه بيـــا زه
دوبــاره دې کــار تــه ونيــسم تابيــا زه
مــــا قبولـــه د هغــــه دا مـــشوره کــــړه
څه وخت وروسته مې په پيل باندې کړه کړه
څلورمــه مياشــت تــاريخ څلرويــشتم دی
پنځلـسمه پيـړۍ کـال نهـه ويـشتم دی
زه دعـــا کـــوم الله تــــه مــــې ده هيلـــه
چې پوره دغه کتاب کړي بې لـه ډيلـه
د ايمــان او د اســلام دي څــه غوښــتنې
چې زده کېږي په کوښښ او په پوښـتنې
لــه عمــل نــه مخکــې وار د عقيــدې دی
اتفـــاق د علمـــاو پــــه همـــدې دی
د قــــرآن او د ســــنت پــــه دليلونــــو
زه کومـــه اســـتنباط پـــه حجتونـــو
د الله کتـــاب تــــر ټولـــو مقـــدم دی
چې محفوظ دی له تحريفـه محتـرم دی

پېژنــدل يــې د علومــو پــه مــونږ حــق دي
خاص او عام دي مقيد دي که مطلق دي
نص ظاهر دی کـه خفـي دی کـه مـشکل دی
کـه مجمـل کـه مفـسر يـې مقابـل دی
کــه د نــص يــې عبــارت کــه دلالــت دی
اقتــضاء ده کـه د نـص يـې اشـارت دی
د ناســخ او د منـــسوخ علـــم کـــره کـــړه
د محکــم متــشا بــه يــې ورســره کــړه
د قـــرآن علمونـــه ډېـــر دي لـــه تفـــصيله
ديــن کــې مــه کــوه خبــره بــې دليلــه
چــې هــر څــومره يــې راسپړې پراخېـږي
د قـــرآن فهـــم او علـــم لا غـــوړېږي
قـــرآن علـــم دی رښـــا ده شـــريعت دی
يو نظام دی يـو قـانون دی عـدالت دی
پــه قــرآن بانــدې عمــل کــې ســعادت دی
هـــدايت دی، د دنيـــا او آخـــرت دی
لــه قرآنــه پــه اعــراض کــې شــقاوت دی
ضلالت دی بې لاري خـواري ذلـت دی
بيــا ســوچه نــږه حــديث د پيغمبــر دي
چــې صــحيح وي پــه اصـولو معتبـر دي
چــې مرفــوع وي قــول فعـل يـا تقريـر وي
بيـا صـفت د پيغمبـر پـه ښـه تعبيـر وي

**پېغمبر ته چې منسوب وي نو مرفوع دي**
**بل موقوف د صحابي تابع مقطوع دي**
**که حديث د پېغمبر دی که خبر دی**
**يا راغلی په سند باندې اثر دی**
**له سند او له اسناده هم خبر شه**
**او د متن له بنياده هم خبر شه**
**د مسند او متصل علم يې زده کړه**
**د هر فن او مقابل علم يې زده کړه**
**په سند متواتر وي که واحد وي**
**چې مشهور عزيز غريب د موحد وي**
**بيا صحيح لِذَاتِهِ دي ددې علم**
**هم صحيح لِغَيْرِهِ زده کړه په حلم**
**هم لِذَاتِهِ لِغَيْرِهِ حسن دی**
**بيا ضعيف دی چې پېچلی ددې فن دی**
**د مقبول او د مردود پېژندل غواړي**
**د هر علم خپل حدود پېژندل غواړي**
**دوه اسباب د رديو سقط فی الاسناد دی**
**بل يې طعن فی الراوي ورسره ياد دی**
**بيا د سقط فی الاسناد څلور ډولونه**
**دا ټول غواړي خپل خپل ځای کې تفصيلونه**
**يو مرسل بل منقطع او بل معضل دی**
**معلق دی دغه علم مفصل دی**

د محفــوظ او د معــروف هــم پېژنــدل دي
او د شـاذ او د منكـر هـم زده كـول دي
كه متروک دی كه موضوع پـه دې كتـار كې
معلـل او معـنعن دی پـه دې شـمار كـې
موتلـــف او مختلـــف تـــابع شـــاهد دی
اعتبـــار دی عـــدالت د هـــر عابـــد دی
متفـــــق او مفتـــــرق او مـــــضطرب دی
يا مـدرج دی او مقلـوب او هـر ادب دی
بـل پـه وخـت د تعـارض پـوره تحقيـق دی
بيا ترجيح ده خو له دې مخكې توفيق دی
ترجيح نـه لـري ساحل او لـوی دريـاب دی
چې عاجز ترې هر كتاب له استيعاب دی
نـــسخه وګڼـــه تـــر ټولـــو اخـــري ده
عالمـــانو د اســـلام كـــړې خـــواري ده
كـــه محتـــف بـــالقرائن كـــه مسلـــسل دی
روايـــت يـــې د اقرانـــو مكمـــل دی
مـــدبج دی اصـــاغر عـــن اكـــابر دی
يا يـې عكـس دی اكـابر عـن اصـاغر دی
مــدلس دی كــه مــدرج كــه مــضطرب دی
كه د شـيخ او د تلميـذ هـر يـو ادب دی
كـــه اســـما دي مواليـــد كـــه وفيـــات دي
كه بلدان دي ذكر شوي يـې صفات دي

يـــا يـــې نـــور دي قواعـــد او بنـــسټونه
هم آداب دي چې ترې ډک دي کتابونه
چې تفصيل يې ما کتاب کې دی ليکلی
بېل کتاب ددغه فن مې دی پيلی
احاديـــث دي راټـــول کـــړي علمـــاو
د اســـلام محـــدثينو فقهـــاو
چـــې پـــرې ډک دي د حـــديثو کتابونـــه
ورتـــه ايـــښي يـــې فـــصلونه او بابونـــه
پـه ترتيـب کـې جوامـع دي څـه سـنن دي
مـــسانيد او معـــاجم ددغـــه فـــن دي
څه اجزاء دي راټول شوي پـه خـوارۍ دي
ډکـې کـړې يـې کـوټې او المـارۍ دي
څـــومره ښـــکلي کتابونـــه ليکـــل شـــوي
دُردانـــې پکـــې د علـــم پېيـــل شـــوي
چـــې اصـــح دی نـــو صـــحيح د بخـــاري دی
بيـا مـسلم دی بيـا جـامع د ترمـذي دی
ورســـــره ابـــــو داود او نـــــسايي دی
ورســره ابــن ماجــه چــې قزوينــي دی
موطـــــادی د مالــــک دار قطنــــي دی
بيهقـــي او مـــستدرک او دارمـــي دی
بــل مــسند دی د احمــد هــم حميــدی دی
هـــم ابـــو عوانـــه هـــم طيالـــسي دی

بــل یــې ابــن خزیمــه ابــن حبــان دی
بل یې مـسند الفـردوس پکـې عیـان دی
مــصنف ابــن ابــی شــیبه یــې گــوره
مــصنف عبــدالرزاق دی زمــا وروره
بــل دی ابــن عــساکر او شــافعي دی
موطـــاد محمـــد او طحـــاوي دی
کــه مــسند د خــوارزمي ابــی یعلــی دی
یا یې نور او یا یې نور هر یـو اعلـی دی
فقهـــاو هـــم لیکلـــي کتابونـــه
شــکلي شــکلي یــې فــصلونه او بابونــه
کــه اصــول دي د تفــسیر یــا د حــدیث دي
یا د فقهې دي اصـول پـوره حثیـث دي
کتابونـــه د تفـــسیر یـــا د حـــدیثو
یـــا د فقهـــې د احکـــامو مواریثـــو
که متون دي کـه شـروح دي خـورا ډېـر دي
چـې د ټولـو یـادول لـه بریـده تېـر دي
بل قیـاس چـې مـستنبط وي د کـوم نـص نـه
د قــرآن او د حــدیثو لــه مخــتص نــه
هـــم اجمـــاع ده د ســـلفو د اصـــحابو
دغــه دواړه پــه شــرطونو پــه آدابــو
ددې ټولــو پــه رڼــا کــې دا کتــاب دی
که صواب دی نو بې شکه چې ثواب دی

کتابونـــــه خرافــــي او بــــې دليلـــــه
اور کې واچـوه تنـور کې بې لـه ډيلـه
د اســــلام کــــره ســـــپېڅلي کتابونـــــه
کور کې وساته روښانه دې کړه خونه
اوس راځـه چې مسائل درتـه بيـان کـړم
پوره حـق او حقيقت درتـه عيان کـړم
چې تـر ټولـو مقـدم دی نـو ايمـان دی
چې راوړی هـر مـؤمن او مـسلمان دی

❋ ❋ ❋

# ايمـــان

ايمـان هـم اقـرار پـه ژبـه پـوخ بـاور دی
هــم عمـــل پـــه اتبـــاع د پېغمبـــر دی
شــــپږ ارکـــان او بنـــستونه د ايمــــان دي
پـه صـحيحو احـادثو کـې بيـان دي
لـومړی دا چې پـه الله بـه ايمـان راوړې
کـه دا نـه منـې نـو کفـر تـه بـه واوړې
هــم ايمـــان پـــه ملائکـــو بـــل بنـــسټ دی
بـل ايمـان پـه کتـابونو پکـې پـټ دی
څلـــورم بنـــسټ ايمـــان دی پـــه نبيـــانو
د الله پــــــه رالېږلـــــــو رســــــــولانو

بـل ايمـان پـه لـويې ورځــې د قيامـت دی

پس له مرګه بيا ژوندون يو حقيقت دی

بـل تقـدير بانـدې ايمـان د خيـر او شـر دی

د الله لــه لــوري هــر يــو سراســر دی

***

# اســـلام

اســلام پــاک الله تــه غــاړه ايــښودل دي

پـه قـرآن او پـه سـنت عمـل کـول دي

بنـــستونه د اســـلام پنځـــه پـــه شـــمار دي

پـه حـديثو کې راغلـي پـه بـار بـار دي

ګــــــــــواهي د لا الـــــــــه الا الله ده

ورســـره پـــه محمـــد، رســـول الله ده

دويم لمونځ، دريم زکات دی په اسلام کې

څلـورم يـې روژه ونيـسه پـه پـام کـې

پنځم حج د بيت الله دی چې دې وس وي

په ټول عمر کې فرضي يو ځلې بـس وي

# احسان

احـــسان داســـې يـــو صـــفت د عبـــادت دی

يو پيـاوړی د اخـلاص نـړه صـورت دی

لکـه ګـورې چــې لمـانځنې کـې خـالق تـه

ذوالجـلال تــه د لمــانځنو مــستحق تــه

# د ایمان تفصیل

## په الله سبحانه و تعالی ایمان

پــه الله بانــدې ایمــان پــه دې یقــین دی
چــې الله بــې شــکه رب العــالمین دی
نـه شـریک لـري یـواځې دی پـه ذات کـې
نـه شـریک لـري نومونـو او صـفات کـې
عبــادت کــې هــم شــریک ورســره نــشته
حکومت کې هـم شریک ورسـره نـشته
نــه یــې څــوک دي زیږولــي او احــد دی
نــه لــه چــا دی زیږیــدلی او صــمد دی
نــه راځــي پــرې پرکــالي او نــه ویریــږي
د هر کار کـوي تـدبیر نـه سـتړی کیـږي
تــل ژونــدی او مــدبر عــالم الغیــب دی
پټ ښکاره ورته یو رنګه دي بې عیب دی
نه پـه فکـر کـې ځـایږي نـه پـه خیـال کـې
نـه ګیـرې کـې د نظـر نـه پـه مقـال کـې
ملائــک یــې لــه ادراکــه عــاجزان دي
هم بې وسـه انـسانان او هـم پیریـان دي
کــه دا ونــې د نــړۍ شــي قلمونــه
کاغذونــه شــي دا ځمکــه اســمانونه

ســـياهي شـــي دا ســـيندونه دريابونـــه
او دا ټول شي په څـو ځله په چندونـه
نـــه يـــې وصـــف کتـــابونو کـــې ځـــايږي
نــه پــه ژبــو پــه انــدونو پــوره کېــږي
نه تشبيه لـري نـه سـاری نـه يـې سيال شـته
نه يې ذات او په صفاتو کـې مثـال شـته
نـــه اړتيـــا لـــري نـــه اړ دی نـــه محتـــاج دی
ټولواکمن د هر پاچا او د هر تاج دی
پـــه هـــر څـــه بانـــدې برلاســـی او قـــدير دی
پنـــا نـــشته لـــه هغـــه کامـــل خبيـــر دی

❋❋❋

# په پرښتو ايمان

پرښـــتو بانـــدې ايمـــان پـــه دې بـــاور دی
چې مخلـوق دی او لـه نـوره مـصور دی
تغيـــر مـــومي پـــه شـــکلونو او ډولونـــو
اعراض نه کـوي د خپـل رب لـه امرونـو
چې نومونـه يـې مـذکور دي هغـه درې دي
عجيبـه حيرانـوونکې يـې څېـرې دي
د يـــوه نـــوم يـــې ښـــاغلی جبرائيـــل دی
بـل ښـاغلی اسـرافيل او ميکائيـل دی
دا پـه ځينـو کـې مـشهور چـې عزرائيـل دی
روايـاتو کـې هـيڅ نـشته بـې دليـل دی
پـــه ډولونـــو پرښـــتې دي هـــر يـــو کـــار تـــه
مقـــررې دي طاعـــت د کردګـــار تـــه

# په کتابونو ایمان

کتـــابو بانـــدې ایمـــان پـــوره بـــاور دی
چـــې کتـــاب د الله هـــر يـــو معتبـــر دی
پـــــاک الله دي کتابونـــــه رالېږلـــــي
بنـــدگان یـــې هـــدایت تـــه دي بللـــي
هـــم نـــازلې صـــحيفې دي پـــه نبيـــانو
د الله پـــه ځينـــو ځينـــو رســـولانو
کتابونــه یــې تــورات، زبــور، انجيــل دی
بل قرآن دی چـې راوړی جبرائيـل دی
دا تــورات یــې نــازل کــړی پــه موســی دی
او انجيل یې نازل کړی پـه عيـسی دی
پــه داود یــې نــازل کــړی پــاک زبــور دی
دا ایمــان پــه کتــابونو هــم ضــرور دی
اخـــري کتـــاب د پـــاک الله قـــرآن دی
پکې نغښتی هدایت د انـس و جـان دی
محمـــد بانـــدې نـــازل دغـــه کتـــاب دی
کفر و شرک او هر باطل ته ښه ځواب دی
چـــې نـــازل پـــه محمـــد بانـــدې قـــرآن شـــو
هر کتاب او دين منسوخ په دې جهان شو
نـه تحريـف دی پکـې شـوی نـه بـدلون دی
هرې ستونزې د نړۍ ته ښه سمون دی

لـــه کـــره کامـــل نظـــام ســـره تـــړون دی

حکمتونو څخه ډک يې هر مضمون دی

مؤمنـــــانو چـــــې منلـــــی دی قـــــرآن دی

چــې غــښتلی او ښــاغلی دی قــرآن دی

لارښـــوونه هـــدايت دی پـــه قـــرآن کـــې

پت عـزت او شـرافت دی په قـرآن کـې

چــې قــانون او شــريعت دی نــو قــرآن دی

چې لايق د حکومـت دی نـو قـرآن دی

چــې کـره پـوره حجـت دی نـو قـرآن دی

چې انسان ته سـعادت دی نـو قـرآن دی

پـه قـرآن کـې ټـول انـصاف او عـدالت دی

قـــرآن علـــم دی، رڼـــا ده، لياقـــت دی

❋❋❋

# په پيغمبرانو ايمان

بـــل ايمـــان پـــوره بـــاور دی پـــه نبيـــانو

د الله پـــــه همـــــه واړه رســـــولانو

د آدم پـــــه اولادې کـــــې چـــــې اول دی

پيغمبـــــر دی، د الله د لارې مـــــل دی

هغـه نـوح دی چـې لمـسی د ارفخـشد دی

آخـــري چـــې پيغمبـــر دی محمـــد دی

چــې ښــاغلي ټــول نبیــان او رســولان دي

رالېږلـــــي پـــاک الله پېغمبــــران دي

دا يو لک څلر ويشت زره ټول په شمېر دي

له دې لږ نه دي حديث کې او نه ډېر دي

چـــې خـــاتم الانبیـــاء خـــتم الرسُـــل دی

مخاطب چې په قرآن کې په قل، قل دی

محمـــــد زوی د عبـــــدالله قرشـــــي دی

هاشـمي دی هـم مکـي هـم مـدني دی

لـــه مکـــې نـــه مـــدينې تـــه مهـــاجر شـــو

جهــادونو، ســنگرونو تــه حاضــر شـــو

پـــه اســـلام يـــې دا نـــړۍ رڼـــا رڼـــا کـــړه

د حـق چیغـه يـې پـه ډاگـه بـرملا کـړه

پـــه عفـــت او طهـــارت کـــې و بـــې ســـاری

شـجاعت او لياقـت کـې و بـې سـاری

هــم ريــښتينی هــم ســپېڅلی هــم امــين و

پـــه ريـــښتيا چـــې رحمـــة للعـــالمين و

د هغــــه تابعــــدارۍ کــــې ســــعادت دی

هدايت دی، هدايت دی، هـدايت دی

د هغــــه مخالفــــت کــــې بــــدبختي ده

شـقاوت دی، ضـلالت دی او ذلـت دی

# قيامت او له مرګه وروسته ژوند

بـل ايمـان پـه لـويې ورځـې د قيامـت دی
د قيامت راتلل ریښتيا يـو حقيقـت دی
د قيامـــت ورځ راروانـــه ده پـــه حقـــه
دا خبـــره بـــه ريـــښتيا شـــي محققـــه
دغـــه ځمكـــه آســـمانونه بـــه ړنګېـــږي
دا ژونـدون بـه يـوه ورځـې پنـا کېـږي
ټنګـــوونکې هيبتناكـــه دغـــه ورځ ده
ړنګـــوونکې او كاواكـــه دغـــه ورځ ده
دا لـــوی غرونـــه بـــه روان ذره ذره شـــي
دا شـنه ځمکـه بـه اواره او سـپېره شـي
لمـر، سـپوږمۍ او كواكـب بـه رادوړېـږي
لـه هيبتـه بـه كـوچنی ماشـوم زړېـږي
مهربانـه مـور بـه تـښتي خپـل بچـي نـه
په زانګو کې له تي خوري او كمكي نه
حـــاملې بـــه بچـــي واچـــوي لـــه ډاره
لـه هيبتـه بـه زيـان كانـدي اميـدواره
پلار به زوی او زوی به پلار ښخـه ښـزار وي
نـــازولي بـــه ذليلـــه خـــوار و زار وي
كه نـړۍ ټولـه پـه واک کـې د يـو كـس شـي
دا به سپکه له يو خلـي او يـو خـس شـي

دا به غواړي چې لـه ځانـه يـې قربـان کـړي
ځان پرې خلاص کړي او ترې جار واړه خپلوان کړي
پـس لـه مرگـه بيـا ژونـدون دی را پـه غـاړه
تيــاری وکــړه بــښنه دېــره غـــواړه
د ذرې ذرې حــــساب هــــم راروان دی
د عمــل نامــه کتــاب هــم راروان دی
د نېکـــانو د جنـــت جـــزا ده حقــــه
د بـــدانو د دوزخ ســـزا ده حقــــه
پــه دې ټولــو پــوخ بــاور دی لــه ايمانــه
زر خبــر بــه شــې لــه گټــې لــه تاوانــه
***

# په تقدير ايمان

بل بنسټ يـې پـه تقـدير بانـدې ايمـان دی
چې مؤمن وي په تقدير نـو مـسلمان دی
چـې څـه شـوي څـه روان دي او څـه کېږي
په تقـدير کـې ليکـل شـوي نـه ستنېږي
مخلــوق نــه و خـــو الله تـــه وه معلومـــه
رب خبـــر و او نـــړی وه لا معدومــــه
چـــې کـــوو يـــې مـــونږ الله ځکـــه ليکلـــي
په اختيار زمونږ کـول پـه تقـدير کـښلي
نـــه کاواکـــه بـــې تقـــديره تـــصادف دی
نـه پـه جبـر بـې اختيـاره تـصرف دی

دا تــدبير هــم د تقــدير د كــور ډيــوه ده
د تقـــدير او د تـــدبير ســـره يـــوه ده
پــه تقــدير كــې ډيــرې ټتــې كــافري ده
شېخ فريده چوپـه خولـه دې بهتـري ده

***

# د اســـلام تفصــيل

## لومړی بنسټ: توحيد

شــهادت چـــې د توحيـــد او رســالت دی
لومړی جز يې د توحيد يو حقيقت دی
توحيـــد وايــــي يـــو ګڼلـــو د الله تـــه
شــــــهادت د لا الـــــه الا الله تــــــه
الله يــو دی هــم پــه ذات كــې لا شــريک دی
هم نومونو او صـفات كـې لا شـريک دی
عبــادت يـــې هـــم يـــواځې نـــړه حـــق دی
د توحيــد پــه كلمــې كــې دا ســبق دی

***

## د توحيد ډولونه

د توحيـــد ډولونـــه درې دي مـــسلمانه
ښه يې زده كړه چې خبـر شـې لـه قرآنـه
لــومړی ډول دی توحيـــد الربـــو بيـــه
دويـــم ډول دی توحيـــد الالوهيـــه

بـل توحيـد يـې فـی الاسـماء والـصفات دی

پاک نومونه صفتونه پـاک يـې ذات دی

❋❋❋

# توحيد الربوبيه

د توحيـــــد الربوبيــــه دا مطلـــــب دی

چـې الله خپلـو کـارونو کـې يـو رب دی

چـــې خـــالق د کائنـــاتو دی نـــو يـــو دی

چې مالـک د موجوداتـو دی نـو يـو دی

دا پيــــدا پنـــا کارونـــــه د هغـــه دي

دا نظـــام ټـــول تدبيرونـــه د هغـــه دي

لمـر سـپوږمۍ ده کـه دا ځمکـه، آسـمانونه

ورځې شپې دي که دا مياشتې يا کلونـه

که دا ستوري دي اجـرام دي کـه ذرات دي

معــاني کــه مبــاني ټــول مخلوقــات دي

ددې ټولــو هــم مالــک دی هــم خــالق دی

د هغه دي چـې سابق دی کـه لاحـق دی

چـــې نظـــام د کائنـــاتو تـــه نظـــر کـــړي

پــه ژورو کــې يــې فکــر مکــرر کــړي

چــې لــه انــده لېــونی نــه وي عاقــل وي

خامخـا بـه پـه توحيـد بانـدې قائـل وي

# توحيد الالوهيه

دويــم ډول چــې توحيــد الوهيــت دی
دويـم نـوم ددې توحيـد د عبـادت دی
دا توحيـــد دی پـــه افعـــالو د عبـــادو
پـــه لمـــانځنې د ټـــولنې د افـــرادو
عبـــادت وايـــي لمـــانځنې بنـــدگۍ تـــه
عـاجزۍ او محتـاجۍ او بـې وسـۍ تـه

***

# د عبادت ډولونه

عبـــادت کـــې ډېـــر ډولونـــه او اقـــسام دي
چې کول يې پاک الله ته ښه په پام دي
هـــر يـــو ډول عبـــادت د الله حـــق دی
په هرځای او په هر وخت کې محقق دی
و بـل چاتـه يـې کـول شـرک مطلـق دی
پـه قـرآن او پـه سـنت کـې دا سـبق دی

***

## (۱) دعــاء

دا بلنـــــه او دعـــــا هـــــم عبـــــادت دی
په غياب کې د لمانځنې يـو صـورت دی
د ضـــرر رفـــع کـــول دفـــع کـــول وي
يـــا د گټـــې او د خيـــر راجلبـــول وي

يــو الله يـــې د غوښـــتلو ښـــه اســـره ده
دا غوښــتنه ښــه كــره او ښــه پــوره ده
بـې اسـبابو كـه د بـل چـا نـه غوښـتل دي
يا غياب كې مړ ژوندي تـه غـږ كـول دي
دا الله ســـره شـــريک ښـــكاره ګڼـــل دي
د توحيـد لـه پولـو اخـوا اووښـتل دي
پرښـــته ده پيغمبـــر دى كـــه ولـــي دى
ابـــوبكر او عمـــر، عثمـــان، علـــي دى
يــو الله تــه دي محتــاج ټــول بنـدګان دي
نـه رارسـي سـتا مـدد تـه نـه غوثـان دي
احتـرام د ټولـو فـرض دى پـه مـونږ بانـدې
د هغوى له قدم مه ځه وروسته وړانـدې
خـو نـه خيـر شـي رسـولى كـوم پرېـشان تـه
او نـه شـر شـي رسـولى كـوم انـسان تـه
مـــه رارســـې رامـــدد شـــې ورتـــه وايـــه
مـه يـې وصـف د الله پـه وصـف سـتايه.

***

## (۲) نذر (منښته)

دا منـــښته نـــذر هـــم يـــو عبـــادت دى
د الله پـــه نـــوم منـــل يـــې ضـــرورت دى
نـــذر اصـــل كـــې احـــسن او افـــضل نـــه دى
دا منـــښته د ســـخيانو عمـــل نـــه دى

پــه صــحيحو احــاديثو كــې راغلــي
معتبــرو كتــابونو دي ليكلــي
چــې دا نــذر د بخيــل لــه مالــه وځــي
چې بې شرطه د ښېګړې كار تـه نـه ځـي
دا الله تــه عبــادت پــه شــرط كــول دي
د مطلب لپاره مال نـه څـه ايـستل دي
معنــا دا چــې كــه دا كــار دې زمــا وكــړ
زمــا ربــه او زمــا زړګــى دې ښــه كــړ
نو ستا مال نه به زه ستا په نـوم څـه وركـړم
او كه نـه نـو پـه والله كـه خـو يـې دركـړم
چـې بـې نـذره او بـې شـرطه صـدقات وي
د الله پـه نـوم بـه دغـه ښـه خيـرات وي
خــو چــې ومنــل شــي نــذر او پــوره شــي
ستا مطلب او ستا غوښـتنه ښـه كـره شـي
بيــا پــه نــذر د وفــا كــول ثــواب دي
عبـادت دى د الله پـه نـوم صـواب دي
خــو كــه پرتــه لــه الله د بــل پــه نــوم وي
څـه منـښته نذرانـه وي د كـوم شـوم وي
دا الله ســره شــريک پيــدا كــول دي
عبادت كـې او توحيـد نـه اووښـتل دي
نــه پــه نــوم د پرښــتې نــذر روا دى
نــه پـه نـوم د پيغمبـر، نـه د بابـا دى

دا قبرونـو بانـدې ناسـت چـې ملنګـان دي
زيـارتونو کـې پراتـه منجـاوران دي
ګونګټـــان د شـــکرانو او نـــذرانو دي
د وژلـــو دي لايـــق د جرمـــانو دي
که اصلاح پـه نـصيحت پـه دعـوت نـه شـي
کـه قـانع پـه دليلونـو، حجـت نـه شـي
نو وژل يـې دي پـه کـار چـې شـيطانان دي
مـشرکان دي، کـافران دي، مرتـدان دي
زيارتونـــه نـــذرانو لپـــاره جـــوړ دي
د بـــدکارو بهـــانو لپـــاره جـــوړ دي
دا ګـــومبزې پـــه قبـــرو نـــړول غـــواړي
دا پاخـه قبـرو نـه ټـول وړول غـواړي

***

# (۳) تحاکم (فيصله وړل)

تحـــاکم چاتـــه وروړل د فيـــصلې دي
چې منل د کوم قـانون يـا د جرګـې دي
تحـاکم يـې هـم يـو ډول عبـادت دی
د الله قـانون سـپېڅلی شـريعت دی
مـسلمان بـه فيـصلې وړي شـريعت تـه
عـدالت د پـاک قـرآن او د سـنت تـه
چـې جرګـه پـه شـريعت وي نـو اسـلام دی
هم ثواب دی، هم صواب دی هم انعام دی

لــه احکــامو د اســلام نــه چــې خــلاف وي
هغـه حکـم بـه نـه عـدل نـه انـصاف وي
د قـــرآن او د ســـنت قـــانون شـــرعي دی
د انسان په لاس جوړ شوی يې وضعي دی
تحــاکم چــې ســتا پــه خوښــه او رضــا وي
چې اسلام تـه نـه وي شرک او نـاروا وي
تحـاکم چـې وي اسـلام تـه نـو توحيـد دی
د ايمــان د مقتــضا همدغــه بريــد دی
اوســني چــې حاکمــان دي، طاغوتــان دي
مرتـــدان او کـــافران، منافقـــان دي
ددې ټولــو پــه وضــعي قــانون عمــل دی
ددې ټولـو د اسـلام سـره چـل ول دی
دې هــر يــو تــه تحــاکم شــرک بــواح دی
ددې هر يو مال او سر مونږ ته مباح دی
دا جــوړ شــوي سياســي چــې دي بريدونــه
او جـــوړ شـــوي نـــاروا دي دولتونـــه
ددې ټولــو ړنګــول پــه مــونږه فــرض دي
ددې ټولو يو کول پـه مـونږه قـرض دي
پــه اسـلام کـې نـه ميـراث د پاچـايي شـته
نــه بــې تولــه جمهــوري ولــسواکي شــته
په اسـلام کـې نـه د غـرب پانګـه والـي شـته
نـه دشـرق اشـتراکي سوسيالـستي شـته

پــه اســلام کــې یــو نظــام د خلافــت دی

چــې انـصاف دی سراسـر او عـدالت دی

خلافـــت نـــه امتیـــاز نـــه فــضیلت دی

یو درونـد بـار مـسئولیت مـسئولیت دی

د امیـــر او د مـــامور تـــوپیر یـــې نـــشته

د بـادار او د مـزدور تـوپیر یـې نـشته

مفت انصاف بـه دې خپـل وره کـې مهیـا وي

نـه ظـالم نـه بـه مظلـوم نـه بـه ژړا وي

لـــه مـــشرقه تـــر مغربـــه یـــو امـــت دی

لــه شــماله تــر جنوبــه یــو دولــت دی

که عرب دی، که عجم کـه تـور او سـپین دی

یو امت یو خلافت او یـو یـې دیـن دی

نه کابل کې څوک پردی دی نـه تهـران کـې

نه بغداد کې نه ریاض کې نـه عمـان کـې

نــه خرطــوم کــې اجنبــي نــه انقــرې کــې

نــه صـنعاء، اسـلام آبـاد نـه قـاهرې کـې

په اسلام کې نـه پاسـپورټ او نـه ویـزه شـته

نه کوم بریـد او نـه بنـدیز نـه انـدازه شـته

جـرم مـه کـوه پـه هرځـای کـې ازاد یـې

ظلم مه کوه په هرځای کې بـه ښـاد یـې

که عمـرې تـه ځـې کـه حـج کـه تجـارت تـه

که چکـر کـوم ضـرورت کـه سـیاحت تـه

بــې بنــدیزه ازاد ګرځــه دې نــړۍ کــې
بې پاسپورټه، بې وېزې خپلې شړۍ کې
د عامــل او د کفیــل قــانون وضــعي دی
په پیسو دا د وکیل قانون وضعي دی
د ملګــــــرو ملتـــــــو چـــــې اداره ده
دا دښــمنه د اســلام ډېــره ســپېره ده
دې تــه غــاړه ایــښودل هــم ارتــداد دی
په مونږ فرض دې ادارې سره جهاد دی
په هرځای کې چې اوسېږې ستا وطن دی
دا ستا کور دی او ستا کلی ستا مدفن دی
پـه دې ځمکـې کـې دا تېـل دي کـه کانونـه
ټـول شـریک دي دا ځنګلونـه، معدنونـه
شــاړه ځمکــه ده شــریکه د هــر چــا ده
چې هر ځای کې دې ودانه کړله ستا ده
ټــول د عــدل قــوانین دي پــه اسـلام کــې
ټول حکمونه ګلورین دي په اسلام کې
پـه مـونږ فـرض دی تحـاکم دې شـریعت تـه
دې د عــدل فیــصلو، دې حکومــت تــه
تحــاکم بــل حکومــت تــه کــافري ده
ښکاره شرک دی، د شیطان تابعداري ده

# (۴) سجده

سـجده هـم يـوه لمانځنـه عبـادت دی
سجده بل چاته کول د شرک صفت دی
د بنـده سـجده نـړه حـق د الله دی
چې الله تـه سجده وکړي، عبدالله دی
پـه مخلـوق کـې و هيچـا تـه سـجده نـشته
پيغمبـر، ملـک، بابـا تـه سـجده نـشته
چـې گـومبزو، زيـارتونو تـه سـجدې کـړي
چې پيرانو او قبرونـو تـه سـجدې کـړي
دا وتلـي لـه اسـلام او لـه ايمـان دي
مشرکان دي، مشرکان دي، مشرکان دي

❋❋❋

# (۵) مطلق وېره

لـه اسـبابو طبيعـي وېـره روا ده
لکـه وېـره لـه لېـوه، ټوپـک، بـلا ده
بـې اسـبابو مطلـق وېـره عبـادت دی
دغـه وېره لـه بـل چـا د شرک آفـت دی
لکـه وېـره پـه غيـاب کـې لـه بابـا نـه
منجـاور او پيـر، فقيـر او يـا بـل چانـه
لـه کچکـول او لـه ملنـگ او يـا جنـډې نـه
د زيـارت لـه کټـارې او يـا کونـډې نـه

د زیـارت ونـې راماتې کـړه چـې خـس دي
بې خطره یې سېځه چې درتـه بـس دي
پــه قبرونــو کــې پراتــه چــې انبیــاء دي
یــا ښــاغلي او پیــاوړي اولیــاء دي
یـا کـوم عـام مـسلمانان دي پـه قبـرو کـې
زمـونږ ورونـه مؤمنـان دي ادیـرو کـې
ټــول قابــل د احتــرام دي محتــرم دي
مونږ نه وړاندې مخکې تللي مقـدم دي
مـه یـې قبـر بانـدې خېـژه مـه کېنـه پـرې
مــه گــومبزې زیارتونــه جــوړوه پــرې
تــل دعــا ورتــه کــوه چــې محتاجــان دي
وېره ډار ورڅخـه مـه کـړه، بنـدگان دي

***

## (٦) مطلق طاعت

چــې بــې قیــده او بــې شــرطه اطاعــت دی
دا هــم حــق دی د الله او عبــادت دی
نــور طاعــات ټــول پــه قیــدونو مقیــد دي
پـــه شـــرطونو ضـــوابطو مؤیـــد دي
کـــه طاعـــت د پیغمبـــر کـــه د امیـــر دی
دا پــه حکــم د الله پــه ښــه تــدبیر دی
کـه د خپـل نفـس د غوښـتنو اطاعـت کـړې
نو بې شکه ته د خپل نفس عبادت کړې

د خپـل نفـس بـې قيـده مـه منـه خبـر شـه
د اســلام پــه حکمتونــو برابــر شــه
د اميـــــر امــــر کــــه امــــر نــــاروا وي
بيـا يـې نـه منـل لازم پـه مـا او تـا وي
اطاعت د مـور او پـلار پـه مـونږه فـرض دی
دغه کار پـه اولادونـو بانـدې قـرض دی
خــو هغــه هــم پــه گونـا کـې روا نــه دی
دا بې قيـده او بـې شـرطه پـه چـا نـه دی
دا بــې قيــده او بــې شــرطه چــې منـل دي
دا الله تــــه د هغـــه پـــه لاره تلـــل دي
چـې بـې قيـده او بـې شـرطه اطاعـت دی
عبــادت دی، عبــادت دی، عبــادت دی
نو بـل چاتـه يـې کـول د شـرک صـورت دی
ضـلالت دی، ضـلالت دی، ضـلالت دی

❋❋❋

## (۷) رجاء (هيله)

رجـــاء هيلــــه بـــې اســـبابو عبـــادت دی
دا هــم حــق دی د الله دا حقيقــت دی
يـــوه هيلـــه لـــه بنـــده ده پـــه اســـبابو
دا روا ده پــــه شــــرطونو پــــه آدابــــو
لکه هيله د کـوم کـار چـې لـه کـوم کـس وي
او کـول يـې ښـه پـوره د هغـه وس وي

خـو چـې هيلـه لـه اسـبابو نـه وي لـوړه
لـه بـل چانـه ده پـه شـرک بانـدې ککـړه
لکـــه هيلـــه د بچـــي د ورکولـــو
يا د بـل يـو لـوړ حاجـت پـه لاس راوړلـو

***

## (۸) بې کچه محبت

لــه اسـبابو نــه چــې پورتــه محبــت دی
او بـې کچـه وي دا هـم يـو عبـادت دی
محبـــت دی پـــه دوه ډولـــه زمـــا وروره
ښه يې زده کـړه فيـصله ونـه کـړې نـوره
يـو پـه خپـل کـچ محبـت دی چـې روا دی
لکـــه مينـــه محبـــت چـــې د بابـــا دی
يـــا د پـــلار او يـــا د زوی او يـــا د ورور دی
يـا د لـور او يـا د خـور او يـا د مـور دی
يـــا مېـــړه کـــوي لـــه ښـــځې ســـره مينـــه
يـا مېـړه سـره يـې کـړي خپلـه ماندينـه
يـــا وي مينـــه د خپلوانـــو او دوســـتانو
يـــا کـــوم بـــل وي محبـــت د انـــسانانو
دا روا دی خـــو جـــلا يـــې دي شـــرطونه
پـه خپـل کـچ او پـه تميـز دي توپيرونـه

د مانـــديني ده جـــلا د مـــور جـــلا ده
خپلــه خپلــه بېلــه بېلــه د هــر چــا ده
خـــو بـــې کچـــه بـــې اســـبانو لـــوړه مينـــه
چـــې ســـپېڅلې او پيـــاوړې ده او ســـپينه
دغـــــه مينـــــه محبـــــت د الله حـــــق دی
د بـــل چـــا لپـــاره شـــرک موَثـــق دی

❋❋❋

## (۹) د عبادت ځينې نور ډولونه

توکـــل پـــه الله هـــم يـــو عبـــادت دی
ځان او مال په الله سپاره چې طاعت دی
که رغبت دی کـه رهبـت دی کـه خـشوع ده
عبـادت دی انابـت دی کـه خـضوع ده
بلـــه نوعـــه عبـــادت اســـتعانت دی
يـو الله نـه مـدد غـواړه دا صـحت دی
کـــه فريـــاد اســـتغاثه کـــه حلالـــه ده
دغــه ټــول د عبــادت بنــه حوالــه ده
که تهليل دی که تکبيـر دی کـه تحميـد دی
تلاوت دی که تسبيح او کـه تمجيـد دی
دی دا ذکـــر او اذکـــار عبادتونـــه
دا لمـــانځنې د الله دي ټـــول حقونـــه
هــم کــه مينــه ده يــا بغــض او عــداوت دی
د الله لپــــاره دا هـــم عبـــادت دی

لمونځ، روژه، حج او زکات هم عبادت دی
صدقه وي که خیرات هم عبادت دی
عبادت کې هم شریک ورسره نشته
کوم صفت کې هم شریک ورسره نشته

❋❋❋

# توحید الاسماء والصفات

دریم ډول یې توحید دی د نومونو
د سپېڅلو او د پاکو صفتونو
نه نومونو کې الله سره شریک شته
نه وصفونو کې الله سره شریک شته
د الله پاک دي نهه نوي نومونه
پاک سپېڅلي مقدس یې صفتونه
دا نصوصو کې راغلي په دې شمېر دي
خو الله ته چې معلوم دي هغه ډېر دي
د الله د نوم معنا نشته انسان کې
نه په انس و جن په ځمکه نه اسمان کې
په نومونو کې یواځې دی او یو دی
صفتونو کې یواځې دی او یو دی
نه شریک لري نومونو کې احد دی
نه شریک لري وصفونو کې احد دی
نه نومونو کې زیاتی کمی روا دی
نه وصفونو کې زیاتی کمی روا دی

په الله بانـدې کـوم نـوم ایـښودل نـشته
بې دلیلـه پـه کـوم نـوم یـې بلـل نـشته
نـه پاړسـي والا دا "خـدای" د الله نـوم دی
نه هم "ګاډ" "تینګري" او خلای د الله نوم دی
ښـه حـسنی ښاېـسته نومونـه د الله دي
بـې شـریکه صـفتونه د الله دي
مستوي دی په خپل عرش بانـدې اعلیٰ دی
مـوږ منلـی پـه ازل کـې پـه "بلـیٰ" دی
نه تشبیه لري صفت کې نـه یـې سیال شـته
نـه شـریک لـري الله نـه یـې مثـال شـته
مـونږ منـو یـې بـې تـشبیه او بـې تمثیلـه
بـې تکییفـه بـې انکـاره بـې تعطیلـه
هـم خبـرې او کـلام لـري بـې مثلـه
حـادث نـه دی او دوام لـري بـې مثلـه
هـم صـفت لـري د خلـق هغـه خـالق دی
هم د هر چا او هـر شـي هغـه رازق دی
پـه صـفاتو هـم سـمیع دی هـم بـصیر دی
هم حلیم دی، هم رحمان رحیم خبیر دی
هـم قـدرت لـري برلاسـی او قـدیر دی
هـم عظـیم اعلـیٰ واحـد احـد کبیـر دی
هـم ژونـدی دی هـم قیـوم اول آخـر دی
هـم قـادر، صـمد، غفـور، بـاطن، ظـاهر دی

اراده یـې بـل صـفت دی چـې جـاري ده

پـه هرڅـه یـې چـې حاکمـه بـاداري ده

بـل صفت یـې مـشیئت دی لـوی پاچـا دی

ټولواکمن د هر یـو شـي او د هـر چـا دی

هغــه یــو دی نــه لــه چــا دی زیږیــدلی

سیال یې نشته نه یې څوک دی زیږولی

***

# علـــم

بـــل صـــفت د الله علـــم دی عَـــلام دی

تغیــر نــه لــري عــالم علــی الــدوام دی

هم په پټـو بانـدې پـوه هـم پـه ښـکاره دی

پــه صــفت د علــم ښــه کــره پــوره دی

پـــه ذرو د کائنــــاتو بانــــدې پــــوه دی

هم په ضمیر د مخلوقـاتو بانـدې پـوه دی

زمــونږ زړونــو او ســینو نــه هــم خبــر دی

ددې پـاڼو او دانــو نــه هــم خبــر دی

هره پاڼه چې شـنه کېږي نـو پـرې پـوه دی

هره پاڼه چې غورځېږي نو پرې پوه دی

نـه یـې علـم زمـونږ علـم کـې راتلـی شـي

نه یې حلم زمونږ حلـم کـې راتلـی شـي

کـــه ملـــک مقـــرب کـــه پیغمبـــر دی

که پیری یا بل مخلـوق دی کـه بـشر دی

**کــــه دا ټـــولې پرښــــتې او انبيــــاء دي**
**رســـولان دي يــا ښـــاغلي اوليـــاء دي**
**نـه دې ټولـو کـې پـه غيبـو څـوک پـوهېږي**
**نــه يـــې وس د الله پټــو تــه رســـېږي**
**دغـه ناسـت چـې پـه قبرونـو ملنگـان دي**
**يـا پيـران يـا د جنـدو منجـاوران دي**
**يـا کــوډگر او تعويــذگر يــا نجوميــان دي**
**چې دعوه د علم غيب کړي مشرکان دي**
**دروا‌غجـن دي ټـول د خېټـې بنـدگان دي**
**او له مخې ټېر اېستل کوي، ټگان دي**

❋❋❋

# حاکميت

**بـــل يــــو وصــــف د الله حاکميـــت دى**
**چې احکم الحاکمين يې هم صفت دى**
**اِنِ الحکــــم الا لِلـــــه تــــه نظــــر کــــړه**
**مقتــضاد الا الله نــه ځــان خبــر کــړه**
**حکومــــت حاکميـــت يـــو تکـــويني دى**
**بـل قـانون حاکميـت يـې تـشريعي دى**
**تکــويني پـــه کائنـــاتو تـــل حــــاکم دى**
**الله پــــاک د کائنــــاتو منــــتظم دى**
**کائنــات يـــې د صــفت څخـــه مجبـــور دي**
**د چا خوښـه کـه ناخوښـه وي مقهـور دي**

لمر سپوږمۍ ده شپه او ورځ ده که کلونه
دا په کال کې راروان څلور فصلونه
دا بې کچه بې توپيره چې نظام دی
دا جاري چې دې عالم کې انتظام دی
دا پيدا ده که پنا ده که صحت دی
ناروغي ده ولږه تنده جبلت دی
تکويني حاکميت لاندې ټول کېږي
د الله اراده ټولو کې چلېږي
نه مخلوق سرغړونه شي کولی
نه هغه څخه پوښتنه شي کولی
دويم ډول تشريعي حاکميت دی
پاک الله مونږ ته راکړی شريعت دی
دا قانون او شريعت به د هغه وي
دې نړۍ کې حکومت به د هغه وي
بل قانون باندې چې حکم حکومت کړي
ارتکاب د ښکاره کفر ضلالت کړي
پاک قرآن او پاک سنت مو شريعت دی
دا قانون او دا دستور ددې امت دی
دا نړۍ ټوله يو کلی يو دولت دی
يو امت، يو خلافت، يو امامت دی
عدالت به د اسلام دلته نافذ وي
سياست به د اسلام دلته نافذ وي

نـه پاسـپورټ او نـه وېزه او نـه بنـديز شـته

نـه تـوپير يـې د ختيـز او د لوېـديز شـته

انـسانان پـه دې نـړۍ کـې ټـول آزاد دي

ټوله ځمکه د دوی کور دی پکې ښاد دي

ښـکته پورتـه بـه شـريک پکـې ګرځېـږي

ددې ځمکې په هر ګوټ کې به اوسېږي

بـس د يـو الله قـانون بـه پـرې حـاکم وي

بس د يو الله سمون بـه پـرې حـاکم وي

د انـــسان لـــه غړونـــدي نـــه بـــه آزاد وي

غلامـۍ د هـر ژونـدي نـه بـه آزاد وي

ښـــېرازي او ســـوکالي بـــه وي شـــريکه

ددې ځمکـې خوشـحالي بـه وي شـريکه

فيـــصلې بـــه د اســـلام پـــه عـــدالت وي

ټول ژوندون به د اسلام پـه هـدايت وي

د ظـــالم لاس بـــه د ظلـــم نـــه لنـــډېږي

د مظلوم حق به مظلـوم تـه سـپارل کېږي

نـه بـه ښـځې بانـدې ظلـم نـه پـه نـر وي

عـدل، عـدل بـه پـه ځمکـه سراسـر وي

دغــه ټــول پــه تــشريعي حاکميــت شــي

د اسـلام پـه حکومـت او سياسـت شـي

اوســـني دا مـــسلط چـــې حاکمـــان دي

د يهـــــودو نـــــصاراو ګوډاګيـــــان دي

پــه وضــعي قــانون ولاړ يــې حكومــت دی
چـــې مـــانع د خلافـــت او امامـــت دی
دا لـــه مخـــې شـــيطانان دي طاغوتـــان دي
ټـول لـه څېرمـه مـشركان او كـافران دي
په مونږ فرض عـين لـه دوی سره جهاد دی
پـه مـونږ فـرض ددې لپـاره اتحـاد دی
تـر هغـې بـه مـونږ جنګېږو هـر سـنګر كـې
د الله د لار جهـــاد پـــه هـــر ډګـــر كـــې
ترڅـــو يـــو شـــي دا شـــيندلي دولتونـــه
يـــو قـــوت شـــي دا شـــيندلي قوتونـــه
شرق او غرب شمال جنـوب يـو خلافـت شي
دا عرب، عجـم لـه څېرمـه يـو امـت شي
دغـه سـتونزې، كړاوونـه بـه ټـول ورک شي
دا تېري او دا ظلمونه به ټول ورک شي
په دې ځمكـه كـې بـه امـن خوشـحالي شي
هره خـوا بـه سـوكالي او وروروڵـي شي

***

## شفاعت

ســــــفارش او سپارښـــــتنه شـــــفاعت دی
د يــو چــا پــه محبــت يــا وجاهــت دی
يــــو د قهــــر او د امــــر شــــفاعت دی
بـل پـه اذن او لحـاظ او پـه عـزت دی

نـــه الله بانـــدې قـــاهر او زورور شـــته

نـــه الله تـــه نـــازولی مخـــور شـــته

یـــو دنیـــا کـــې شـــفاعت دی د ژونـــدیو

د روا کــــار د کېـــــدلو ګړنـــــدیو

دا روا دی او پــه ښـه کـار کـې ثـواب دی

چـې راغلـی د حـدیثو پـه کتـاب دی

قهري دا دی چې امیـر یـې کـړي مـامور تـه

یا هغه دی چې بادار یې کـړي مـزدور تـه

چـــې الله تـــه شـــفاعت دی یـــا دعـــاء ده

پـاک الله تـه د چـا حـق کـې التجـا ده

دا روا دي چـې ژونـدي یـې کـوي چاتـه

پـــاک الله دا حکـــم کـــړی مـــا او تاتـــه

بـل د اذن دی چـې کېږي پـه قیامـت کـې

وارد شوی لوی حدیث دی شفاعت کې

د قیامـت پـه ورځ د حـشر پـه میـدان کـې

لـه سختۍ بـه خلـک نـه وي پـه امـان کـې

ټـــول بـــه لاړ شـــي و آدم صـــفي الله تـــه

چـې بابـا شـفاعت وکـړه پـاک الله تـه

آدم یـاده بـه خطـا کـړي پـه جنـت کـې

چې دانه مې وه خـوړلې پـه غفلـت کـې

لاړ شـئ نـوح تـه زه ددې عمـل وړ نـه یـم

نـوح بـه وایـي زه ددغـه ملاتـړ نـه یـم

لاړ شــئ ورشــئ ابــراهیم خلیــل الله تــه

خلیــل وایــي بــه زه پــړ یمــه الله تــه

ابــراهیم بــه یــې ورولېــږي موســی تــه

او موسـی بـه یـې ورولېږي عیـسی تـه

بیا عیـسی بـه ورتـه وایـي چـې ځـئ ورشـئ

محمــد رســول الله تــه پــه محــضر شــئ

چــې حاضــر شــي محمــد رســول الله تــه

هغــه وبــه کــړي سـجده و پــاک الله تــه

پــاک الله تــه بــه حمدونــه ثنــا وایــي

په زاری به یې اوږده سجده کې ستایي

پــاک الله بــه دِ ارفَــعُ هــم ورتــه وایــي

سَـل تُعْطَـهُ او قُـل تُـسمَعُ هـم ورتـه وایـي

چــې څــه غــواړې هغــه غــواړه محمــده

درکــــوم یــــې درتــــه واړه محمــــده

شــــفاعت کــــوه قبلېــــږي شــــفاعت دې

راتــه وایــه منــل کېــږي شــفاعت دې

دا کېــږیٰ شــفاعت کېــږي بــه پــه اِذن

پـه قیامـت کـې منـل کېږي بـه پـه اِذن

دا یــــواځې فــــضیلت د محمــــد دی

دا اول چــــې شــــفاعت د محمــــد دی

د حــساب کتــاب کېــدو بــه شــفاعت وي

د جنــت داخلېــدو بــه شــفاعت وي

چـــې دوزخ تـــه کلـــه خلـــک شـــي دننـــه
بیـا بـه وکـړي شـفاعت او سپارښـتنه
لــه دوزخــه بــه راباسـي مؤمنــان هــم
کـم لـه شـرکه دغـه نـور ګناهګـاران هـم
ملائکـــې انبيـــاء بـــه شـــفاعت کـــړي
مؤمنـــان او اتقيـــاء بـــه شـــفاعت کـــړي
دا د اِذن شــفاعت دی چـــې بـــه کېـــږي
پس له مرګه په قيامت دی چې به کېږي
خـو نـه قبـر تـه ورتـګ شـته شـفاعت تـه
نــه ويلـی شـفاعت شـي ضـلالت تــه
دا ګـــومبزو زيـــارتونو تـــه چـــې درومـــي
دا جنـډو او دا قبرونـو تـه چـې درومـي
ســفارش او شـفاعت چــې ورنــه غـواړي
دا د شـرک او د بـدعت وهـي رمبـاړې

❋❋❋

# وسیـله

الله پـــاک تـــه وســيله د نېـــک عمـــل ده
دا روا او ښـه پـوره پـه خپـل محـل ده
وســــــيله لټـــــول امـــــر د الله دی
هـم ثابـت لـه محمـد رسـول الله دی
محبـت د نېـک بنـده هـم نېـک عمـل دی
وسـيله ده نـه تخمـين او نـه اټکـل دی

د الله پـــاک پـــه نومونـــو هـــم روا ده
د الله پـــــه صـــــفتونو هـــــم روا ده
پـــه قبرونـــو وســـيله هـــم نـــاروا ده
د جـــاهونو وســـيله هـــم نـــاروا ده
نـــه پـــه مـــخ د انبيـــاؤ روا کېـــږي
نـــه پـــه مـــخ د اوليـــاؤ روا کېـــږي
دا چـــې وايـــي ســـتا لمـــن نيـــسم زيارتـــه
تـــه لمـــن د الله نيـــسه نېـــک ســـيرته
او بيـــــا وايـــــي د الله دي نـــــازولي
مـونږه ځکـه خپـل حاجـت تـه رابللـي
دغــه ټــولې وســيلې شــرک او بــدعت دی
ما ليدلی دې دعوې بانـدې حجـت دی
پـــه دې ډول وســـيله نـــه ده ثابتـــه
دا د شـــرک بـــدعت حيلـــه نـــه ده ثابتـــه
پـــه حـــديث کـــې فرمـــايلي پيغمبـــر دي
ســـندونه يـــې صـــحيح او معتبـــر دي
چې پخوا يوځای کې پاتې درې کسان وو
په يو غار کې ايسار شوي دا خـواران وو
د غــار خــولې تــه شــوه رانــږويه لويــه ګټــه
د غار خولې کې سمه بنده شوه پـه ختـه
د وتـــو لاره شـــوه ورکـــه پـــه خوارانـــو
بـــې لـــه ربـــه اســـره نـــه وه د ځوانـــانو

مــشوره يـــې ســـره وكـــړه دې نېكـــانو
پـاک الله تـه يـې سـوال وكـړ صـالحانو
هـر يـو خپلـه نېكـه كړنـه وسـيله كـړه
پـه دعـا بانـدې يـې حـل معاملـه كـړه
وســيله شـــوه د صـــالح عمـــل قبولـــه
دا كيـــسه ده پـــه حـــديثو كـــې منقولـــه
لار ازاده د عمـــــل پـــــه توســـــل شـــــوه
پـــه ښـــه صـــبر او دعـــا او توكـــل شـــوه
وســـــيله نـــــه د ذوات فاضـــــله شـــــته
نه د مـخ، جـاه او خـاطر پكـې حيلـه شـته

***

## د شرک ځيني صورتونه او خرافات

شـرک الله سـره شـريک پيـدا كـول دي
له الله پرته معبود بـل څـوک نيـول دي
يـا بـل څـوک متـصرف چېرتـه گڼـل دي
د الله صـفت پـه بـل چـا كـې منـل دي
يـا وضـعي قـانون تـه غـاړه ايـښودل دي
يـا بابـا زيـارت پـه چيغـو رابلـل دي
ورځو شپو كې نحوست گڼل هـم شـرک دی
دې قبرو كې بركـت گڼـل هـم شـرک دی
نـه پـه قبـر او جنـډې كـې بركـت شـته
نه يې شناختې او كونډې كې بركت شته

د مريـــو تعويـــذونو تـــړل شـــرک دی
د کونجکــو او بنــدونو تــړل شــرک دی
نــه د ســترګې رپيــدلو بانــدې کــار شــي
نه څپلۍ په څټ کېدلو بانـدې کـار شـي
نـه د چـای پيالـه کـې ډکـی بـه مېلمـه شـي
نه د زنـې لانـدې لاس د غـم پلمـه شـي
نه کاغ کاغ کـې د کارغـه کـوم يـو خبـر شـته
نـه د شـپې جـارو وهلـو کـې ضـرر شـته
نـــه بکيانـــه او کـــوتره دو بختـــه ده
نـــه هيلـــۍ او يـــا کيکـــره دو بختـــه ده
نـه خـارښ کـې د ورغـوي خيـر او شـر شـته
نه کوم خير او شر د ونې غار او غـر شـته
دا وهمونـــه او دودونـــه خرافـــات دي
دا شرکي او شـيطاني خـز عـبلات دي.[1]

# طهارت

پـه اسـلام کـې طهـارت تـه اهميـت دی
چې يې نـه منـي اختـه پـه نجاسـت دی
طهـــارت لپـــاره پـــاکې اوبـــه ګـــوره
ځـان دې وسـاته لـه هـر ډول پېغـوره
د اوبـــو دي ډېـــر قـــسمونه او ډولونـــه
خو چې پـاکې وي کـوه پـرې اودسـونه

---

[1] خز عبلات: چټي خبرې او چټي کارونه.

څـــه اوبـــه دي د دریـــاب او د ســـیندونو
بــل اوبــه دي د بــاران، چینــو، نهرونــو
یـــا اوبـــه دي د کـــاریز او د ډنـــډونو
ټــولي پــاکې دي د ســمې او د غرونــو
درې صـفاتو کې چې یـو یـې تغیـر نـه وي
نجاسـت بانـدې بـدل یـې تـصویر نـه وي
یو یې بوی او بل یې رنګ او بل یې خوند دی
د اوبــو ســره تړلــی زمــونږ ژونــد دی
هغـــه پـــاکې دي کـــوه پـــرې اودســـونه
هــم وینځــل او هــم لمبــل کــوه غــسلونه
خـو کـه یـو یـې هـم تغیـر پـه نجاسـت و
په دې درېو کې بـدل یـې یـو صـفت و
نـــو پلیتـــې دي نجـــسې دي ناپـــاکې
د پـــاکۍ لپـــاره بویـــه پـــاکې ســـاکې
مـــستعملې د اودس اوبـــه دي پـــاکې
پاکوونکې دي چې نـه وي څـه کـاواکې
د انـــسان او د حیـــوان جوټـــه دي پـــاکې
خو د سپي او د خنزیـر دي بیـا ناپـاکې
څــه ډولونــه پــاکوونکي نــه دي پــاک دي
غولوي دې ځینې خلک ډېر چالاک دي
نــه شــربت بانــدې مــشروع دي اودســونه
نه مشروع دي پـه شـېدو بانـدې غـسلونه

بښـــوروا هـــم اودس تـــه نـــه ده مناســـبه
پـاكي ښـه ده چـې ونـه دې نيـسي تبـه
په لمانځه كـې بايـد درې شيزونـه پـاک وي
لمونځ دې نه کېږي چې يو پکې ناپاک وي
يـو يـې ځـای او بـل جامـه او بـل بـدن دی
هـــم د مـــړه لپـــاره غـــسل او كفـــن دی
لــــږه ډېـــره پليتـــــي ټولـــــه يــــوه ده
لگــــولې مــــا دليـــــل پــــسې ډېــــوه ده
د درهـــم والا حـــديث بېخـــي ضـــعيف دی
مسلم دوست كمزوري نـه منـي عفيـف دی
د بـــــدن د پـــــاكۍ درې دي صـــــورتونه
تـــــيمم دی، اودســــــونه او غـــــــسلونه
ددې ټولـــــــــو راروان دي تفـــــــصيلونه
مــــا ليـــدلي د هـــر يـــو دي دليلونــــه.

***

# د اودس ماتوونكي

د اودس چـــې مـــاتوونكي دي يـــا بـــاد دي
چـې راوځـي لـه مقعـده دواړه يـاد دي
د اواز او بـــــــې اوازه دواړه يـــــــــو دي
لـږ او ډېـر بـې امتيـازه دواړه يـو دي
يـا ميتيـازې وي كـه ډكـې وي كـه تـشې
اودس وكـړه انديوالـه سـترې مـه شـې

يـا راوځــي چــې هــر شــی لــه دواړو لاور
ځــان دې وســاته لــه ځــاځکو او لــه دارو
يـا ذکـر تـه بـې پـردې د لاس وروړل دي
يا مذي وي يا د اوښ غوښـه خـوړل وي
يـا کـه ښـځې گـوتې يوسـي شـتو خـان تـه
د پښو منځ کې دغه خاص ځېرې گرېوان ته
يـا پـه ملاسـته ځـوک ويـده شي يـا پـه ډډه
نــو اودس يــې لــه بدنــه وکــړي کــډه
ځکه سـست يـې شي ټـول مـزي د کځـوړې
او کـولمې يـې پوکولـو تـه شي جـوړې
دغـــه ټـــول د اوداســـه دي مـــاتوونکي
د لمانځـــه د طهـــارت دي ړنگـــوونکي
اودس هـــم پـــه ښـــکلولو نـــه مـــاتېږي
هـــم د وينـــې پـــه وتلـــو نـــه مـــاتېږي

***

## د اودس ماتي آداب

د اودس د مــــــاتولو آداب زده کــــــړه
کـه چـا وکړلـه پوښـتنه ځـواب زده کـړه
لومړی دا چې کوم پنا ځـای تـه بـه لاړ شـې
هسې نه چې بـې شـرميو کـې لتـاړ شـې
شـرمځای د خلکـو مخکـې ښـکاره نـه کـړې
چې بـې پتـه بـې عزتـه بـه درانـه کـړې

لـه ځـای مخکــې دا دعـا ځـان سـره وايـه
هـر يـوكـار پـه سنت وكـړه سـر تـر پايـه

اَللّهُمّ إِنّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ

ای الله زه پنــــا غواړمـــــه لــــه تانــــه
د نرانـــو شـــيطانانو لـــه هـــر زيانـــه
هـــم د ښـــځو شـــيطانانو لـــه زيـــانونو
هـــم لـــه لـــرو ډېـــر گنــده نجاســـتونو
دا "خُبُــث" كــه پــه ضــمې دبــا ادا شــي
نـو "ذكـور الـشياطين" بـه يـې معنـا شـي
معنـــا دا چـــې لـــه نرانـــو شـــيطانانو
خبائــث يــې هــم لــه ښـځو شـيطانانو
او كه "خُبْث" هم پـه سـكون د بالوسـتل وي
نـــو بيـــا لـــږه پليتـــي تـــرې اخيـــستل وي
خبائـــث بـــه بيـــا معنـــا ډېـــر نجاســـت وي
د بــدلون د حركــت بــه دا صــورت وي
چـــې د شـــرم دي ځايونـــه او عـــورت دی
پټ ساتلو كې يې تـل پـت او عـزت دی
د الله نــوم چــې كــوم شــي كــې وي ليكلــی
د ميتيــازو ځــای تــه مــه وړه هغــه غلــی
پــه ولاړه جامــه نــه كــړې لــه ځــان ښــكته
پــه دې كـار بـه شـې بـې پتـه بـې عزتـه

چې حاجت ته کښېنې بيا به اعتنا کړې
چې قبلې ته دې نه مخ او نه دې شاکړ ې
په صحرا پټې تشناب کې توپير نشته
د احتياط په مقتضا کې تاخير نشته
اختلاف چې د بنيان او د صحرا دی
ورته مه گوره قوي دليل همدا دی
د ابو ايوب له قوله معلومېږي
د مرفوع تفسير موقوف نه څرگندېږي
بيا چې "نحن" او "کنا" وايي د جمعې
معلومېږي چې اکثر وايي په منعې
بل ادب د اودس ماتي احتياط دی
چې له څاڅکو نه ځان وساتي محتاط دی
چې له څاڅکو څخه نه ساتي ځانونه
نو په قبر کې به مومي عذابونه
بل ادب د حاجت دا دی چې په پای کې
په ښي لاس استنجا مه کوه هېڅ ځای کې
استنجا په تيږه لوټه هم روا ده
د مالوچ ټوټې په غوټه هم روا ده
اوسني چې کاغذونه د تشناب دي
خاص جوړ شوي د حاجت په انتساب دي
استنجا وربانـدې نـر غونـدې روا ده
خو اوبو باندې اعلیٰ اوبې سودا ده

اکتفــا هــم پــه یــوائې اوبــو کېــږي
هــم یــوائې پــه دې نــورو ښــه رغېــږي
دغــه نــور لــه اوبــو مخکــې ضــرور نــه دي
څــوک د دواړو پــه کولــو مجبــور نــه دي
خــو پــه دواړو کــه یــې څــوک کــوي روا دي
خو ډېر خلـک بـې دلیلـه پـه سـودا دي
پــه اوبــو بانــدې وینځــل یــې تــر پــاکۍ دي
خـــو ناپاکـــه او نـــاولي بـــې لکـــۍ دي
په دې نـورو چـې لـه درې ځلـو نـه کـم وي
نـــاروا دي او نـــاوړه او ناســـم دي
له درې ځلو زیات که طاق وي نو افضل دي
مـــسائل چـــې مـــا لیکلـــي مـــدلل دي
اســـتنجا لپـــاره یخـــې اوبـــه ښـــې دي
تجربـــه ده د بمبـــې کـــه د ویـــالې دي
روانـــه ده اســـتنجا پـــه پچـــو، ســـوټو
نـه پـه سـکور او پـه غوشـیانو او هـډوکو
پــه خرېــشنو هــم اســتنجا نــاروا کېــږي
پــه نــاولي پلیــت شــي هــم نــه رغېــږي
محتــرم شــي نــه هــم ځــان ســاته طالبــه
لـه تېـره شـي هـم ځـان وژغـوره صـاحبه
نه په داسې کوم یو شي چې پرې ټپـي شـې
بواسیر به دې پیـدا شـي کـه زخمـي شـې

اودس مــاتی نــه گــودر بانـــدې روا دی
نه په سیوري لارې سر باندې روا دی
نـــه د چـــا د اســـتعمال پـــه مـــواردو
نــه حمــام ضـــرر و بــال پــه مــواردو
پــه ولاړه هــم میتیــازې کــول مــه کــړه
سین په غاړه هم میتیازې کول مه کړه
کـــه څـــه عـــذر وي روا دي پـــه ولاړه
خــو د څــاڅکو نــه پنــا پــه الله غــواړه
چـــې را پـــاڅې او راوځـــې لـــه حاجتـــه
دعــا ولولـــه دا لانـــدې نېـــک ســـیرته

١- غُفْرَانَكَ

مـــا راوبـــښه بـــښنه درنـــه غـــواړم
ســتا بــښنې تــه اړتیــا لرمــه ژاړم

٢- "اَلْحَمْدُ لِلّهِ الَّذِیْ أذْهَبَ عَنِّیَ الأذَی وَ عَافَانِیْ"

دا ســـتاینې چـــې پـــوره دي لـــه کمالـــه
دي ثــابتې یــو الله تــه بــې زوالــه
چې لـه مـا څخـه یـې لـرې دغـه زیـان کـړ
عافیت یې رانـصیب پـه خپـل احـسان کـړ
ادبونـــه د حاجـــت درتـــه بیـــان شـــوو
په تفصیل او په دلیـل درتـه عیان شـوو
په اسلام کې هر یـو کـار پـه ښـه ادب دی
اسـلام وگـوره چـې څـومره مهـذب دی

# ناپاک شیان

د انـــسان میتیـــازې تـــشې وي کـــه ډکـــې
دا پلیتـــې دي پـــستې وي او کـــه کلکـــې
چـــې د کـــوم ځنـــاور غوښـــه وي حرامـــه
نـــو میتیـــازې یـــې پلیتـــي دي لـــه پامـــه
ددې ټولـــو خرېـــشنه ســـوټې او میتیـــازې
دي نـــــاولې او نجـــــسې او بېلمـــــازې
خـــو د کـــوم حیـــوان چـــې غوښـــه وي حلالـــه
د هغـــــو دا دواړه پـــــاک دي اندېوالـــــه
چې خوراک یې د مور پی وي او هلک وي
نو میتیازې یې دي سپکې غم یې ورک وي
چـې ترڅــو یــې لا بــل شــی نــه وي خـوړلی
په دې هکلـه ښـه صـحیح حـدیث راغلـی
نـــو د تـــشو یـــې وینځـــل نـــشته اســـلام کـــې
د اوبو چړکاو پرې وکړه ښه په پام کې
د هلـــــک ډکـــــې ناپـــــاکې دي او کلـــــه
چې څه وخوري بې له پیـو د مـور گلـه
بیـــا یـــې تـــشې هـــم ناپـــاکې دي هـــم غټـــې
د جلـــۍ دي هـــم ناپـــاکې تـــشې ډکـــې
د میتیـــــازو دواړو لارو نـــــه چـــــې راشـــــي
کومـه وینـه نـو ناپاکـه پـه هـر چـا شـي

د خنزیـــر غوښـــه ناپاکـــه نـــاروا ده
او مـــرداره هـــم ناپاکـــه بـــرملا ده
چــې لمـده کومـه منـي وي نـو وينځـل دي
او چې وچه وي جامې پـورې مـښل دي
غول خواره چرگان څاروي دي هـم ناپاکـه
سپی، شراب دي هم ناپاک نه شي بې باکه
❋❋❋

# اودس

که جنب نـه وې لمانځـه تـه بـه اودس کـړې
په نېکـۍ بـه ثـوابونـه يـو پـه لـس کـړې
اودس فرض دی بې اودسه لمونځ باطل دی
د لمانځه شرط ښه اودس پوره کامل دی
د اودس تفـصيل بـه اوس درتـه بيـان کـړم
په دليـل بـه يـې کـره پـوره اسـان کـړم
اول کېنـــه ښـــه ســـوچه پـــاکو اوبـــو تـــه
ته يې زده کړه بيا يې وايـه گـل ببـو تـه
لـــومړی ووايـــه "بـــسم الله" کفايـــت کـــړي
چې صالح وي نو عمل پـه روايـت کـړي
او بيـا درې ځلـه پـاک ووينځــه لاســونه
مـــسلمان کـــوي لمونځونـــه اودســـونه
د مـــسواک وهـــل ســـنت دي اوداســـه کـــې
په خپل شان په خپل صفت دي اوداسه کې

ګېرچــا پيره پــه غاښــو مــسواک وهــل دي
هــم تــالو ژبــه ورۍ پــرې پــاکول دي
د مــسواک وهــل بــوزه کــې هــم ســنت دي
شپه او ورځ او په روژه کې هم سنت دي
بيا دې خوله پــوزه درې ځلـه ښـه صـفا کـړه
مضمــضه او استنــشاق پــه اعتنــا کــړه
مضمـضه اوبـه پـه خـولې کـې خوځـول دي
استنشاق پوزې کــې پورتــه سوړول دي
اســتنثار بيــا ســوړول دي بېرتــه ښــکته
ښه يې وکړه چې پرې نـه شـې ملامتـه
پــه يــو لاس اوبــو دا دواړه هــم ســنت دي
چې بيل بيل يې کوي هم نا ملامت دي
ورپــسې د مـخ وينځـل دي تـر خپـل حـده
پــه پلنــو لــه يــوه غــوږه تــر بـل غــوږه
زنــې لانـدې نـه تـر پـاس تنـدی پيکـي دی
واړه يــو دي د بــوډا کــه د کمکــي دی
مـخ وينځلــو کــې د ږيــرې خــلال هــم دی
لمــدو ګوتــو بانــدې ســم او مــنظم دی
لمــدې ګــوتې دې پــه ږيــرې کــړه دننــه
او لامــده کــړه ټــول بېخونــه ټولــه زنــه
بيا لومړی د ښي بيا کين لاس پرېمينځل دي
تــــر څنګلــــو ددې دواړو پــــاکول دي

بیـا د سـر مــسح تـر څـټ پـورې کـول دي
خپل لانده لاسونه شا مخ تـه راښـکل دي
بیــا پــه دوه ګوتــو ده مــسح د غوږونـــو
هــم دننــه هــم د بانــدې زمــا ورونــو
لومړی ښـې او بیـا دې کیڼـه پـښه صـفا کـړه
تــر ښـنګرو پـه وینځلـو پـه ځـلا کـړه
د ســر مـسح ده اودس کــې پــه یــو ځلــې
دا خبـرې د هـر کـار دي خپلـې خپلـې
دا نـور غـړي یـو یـو ځلـې هـم وینځـل دي
دوه دوه ځلې درې درې ځلې هم کول دي
د څـــټ مـــسح د لاســـونو پـــه څـــټ نــشته
چې څرګند یې دلیل نه وي نو پټ نشته
د لاســـو او پـــښو د ګوتـــو دا منځونـــه
هر وخت وینځـه چـې کـره شـي اودسـونه
له درې ځلـو زیـات وینځـل هـم روا نـه دي
د کوم ځای وچ پرېښودل هم روا نه دي
هـــم د ګـــوتې او بنګړيـــو خوځـــول دي
ددې دواړو لاندې ځای ښـه لمـدول دي
د پوسـتکي ګـونجې ومینځـه چـې پـاک شـي
او پوستکی دې تازه چست او چالاک شي
هـــم روا لـــه اودس وروســـته وچـــول دي
هم روا داسـې لامـده یـې پرېښودل دي
چـې اودس ترڅـو مـات شـوی نـه وي ګـوره
تر هغې پرې ټول لمونځونـه کـوه وروره

که هر لمونځ ته بېل اودس کوې هم ښه ده

خـــو هرومـــرو او ډېــره ضــرور نـــه ده

د اودس غـــړي وينځـــل پرلـــه پـــسې دي

پــه ترتيــب بېــړه کــول پرلــه پــسې دي

د اودس جريـــان کـــې دغـــه دعـــا وايـــه

په تکرار او په بيا بيا يې رب نه غواړه

" اَللّٰهُمّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ وَ وَسِّعْ لِيْ فِيْ دَارِيْ وَ بَارِكْ لِيْ فِيْ رِزْقِيْ"

دا گنــــاوې مــــې راوبــــښه ای ربــــه

او پراخــه کــور هــم راکــړې لــه طلبــه

هــم نــصيب راتــه روزي کــې برکــت کــړې

په بيا بيا وايم نصيب راتـه عـزت کـړې

نـــورې نـــشته دعاگـــانې پـــه اودس کـــې

نه له ځانه جوړول شته د چا وس کې

دا بــه هــم لــه اوداســه نــه وروســته وايــې

پـاک الله بـه رابلـې هـم بـه يـې سـتايې

۱ _ "أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلهَ إِلاّ اللّٰهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ"

زه پــه دې بانــدې گــواه يمــه چــې پرتــه

لــه الله بــل معبــود نــشته دی البتــه

هــم ددې گــواهي کــړم چــې پېغمبــر دی

محمـــد د پـــاک الله چـــې معتبـــر دی

هـــم بنـــده دی د الله چـــې عاليـــشان دی

اخري دی هم بشر دی لـوی انـسان دی

۲ – "اللّٰهُمّ اجْعَلْنِیْ مِنَ التَّوّابِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِیْنَ"

**ای الله مـا توبـه ګـارو کـې حـساب کـړه**
**هم مې پاکو پرهېزګارو کې حساب کړه**
**چـې اودس دې ښـه کـره او ښـه پـوره کـړ**
**ښه پاک نیت او پاک لباس دې ورسره کړ**
**اوس روان شه د لمانځه په نیـت جومات تـه**
**جماعـت بانـدې امـام پـسې صـلات تـه**

❋❋❋

# غسل

**اوس د غــسل احکــام وپېژنــه ګرانــه**
**پـه اسـلام کـې پـاکي ښـه ده مـسلمانه**
**جنابــت نــه غــسل فــرض دی محترمــه**
**چې مني وځي په ټوپ او خوند بې غمه**
**که په ویـښه وي کـه خـوب کـې احـتلام وي**
**بایـد غـسل تـه دې سمدلاسـه پـام وي**
**غـسل فـرض دی هـم لـه حـیض او لـه نفاسـه**
**بایـد وشـي بـې لـه ډیلـه بـې وسواسـه**
**چـې شـهید نـه وي د مـړي غـسل فـرض دی**
**په ژوندیو دغـه حـق د مـړي قـرض دی**
**د جمعــې د ورځــې غــسل هــم واجــب دی**
**څوک یې فرض ګڼي سنت پکې غالب دی**

هـــم ســـنت د اخترونـــو او احـــرام دی
هـم د مـړي پـه غاسـل دا غـسل تـام دی
اوس د غـسل کـول زده کـړه چـې پـاکي ده
غـسل نـه کـول پليتـه بـې بـاکي ده
اول وويـنځـــــه لاســـــونه درې کرتـــــه
پـه يـو ځـل او دوه هـم نـه يـې ملامتـه
بيـا عـورت پـه اسـتنجا کولـو صـاف کـړه
په وينځلـو يـې ښـه پـاک او ښـه شـفاف کـړه
بيـــا پـــه پاکـــه خـــاوره لاس ومـــښه وروره
زما خورې رب دې نـه کـړي تـا سـرتوره
کـه دا نـه وي نـو صـابون هـم کفايـت کـړي
مـسلمان بـه ښـه پـه غـور طهـارت کـړي
هـم بـه وکـړي ښـه کـره پـوره اودس بيـا
پکـې نـه بـه سـپموي لـه ځانـه وس بيـا
بيـا بـه سـر بانـدې اوبـه واچـوي پـاکې
چې يـې وچـوي د زړګـي ټـولې تنـاکې
بيـا پـه ښـی اوږې اوبـه هـم اچـول دي
بيا پـه کيـڼـې اوږې دغـه کـار کـول دي
بيـا د ټـول بـدن وينځـل او پـاکول دي
پـه ترتيـب بانـدې همدغـسې لمبـل دي
بيـا تـر ټولـو پـه آخـر کـې د پـښو وار دی
غسل نه کول لوی شرم دی، لوی عار دی

# تــيمم

کـه اوبـه نـه وي یـا وي خـو تـه نـاروغ یـې
تـیمم ووهـه اودس کـوه چـې روغ یـې
تــیمم هــم لــه اوداســه نــه نیابــت کــړي
هـم بـدن څخـه دې لـرې جنابـت کـړي
چـــې اوبـــه کلـــه پیـــدا شـــي اودس وکـــړه
هــم د غــسل پــه کولــو دې زړه ښــه کــړه
کـــه پـــه ژمـــي کـــې ســـاړه وو او خطـــر و
چـې نـاروغ بـه شـې پـه غـسل دا حـذر و
که اوبه وي هم خو وس دې پرې بـر نـه وي
تـه بنـدي وې اوبـه سـتا پـه مقـر نـه وي
بیـا هـم ووهـه تـیمم او لمـونځ پـوره کـړه
دا دفقهـې مـسائل دي ښـه یـې زده کـړه
تــر هغــې چــې اوبــه نــه وي پیــدا شــوې
تـیمم ووهـه تـر هغـې چـې روغ نـه وې
د تـــیمم لمونځونـــه بـــشپړ او کـــره دي
شــک ونــه کــړې دلیلونــه راســره دي
د تـــیمم لمونځونـــه بیـــا ګرځـــول نـــشته
بـې دلیلـه د خپـل ځـان کـړول نـشته
د تـــیمم وهـــل پـــه پاکـــه ځمکـــه وایـــه
پاکــه لوټــه پاکــه خــاوره لــه پــاک ځایــه

د تـــيمم درې صـــــورتونه دي راغلـــــي
مـــا دي ډېـــرو کتـــابونو کـــې ليـــدلي
يـو صـورت يـې د لاسـو يـو ځـل وهـل دي
په دې ځمکه بيا څنډل يـا پوکـول دي
بيا يې يو ځلې پـه مـخ بانـدې راښـکل دي
مرونـدو پـورې لاسـونه هـم مـښل دي
پـه دويـم صـورت کـې دوه ځلـې وهـل دي
يو د مخ او بـل څنگلـو پـورې تلـل دي
په درېـيم صـورت د مـخ يـو ځـل مـښل دي
او دويـم تـر تخرگونـو يـې کـول دي
چې تـر ټولـو دی اصح لـومړی صـورت دی
دا يـو ځـل وهـل دليـل دی او حجـت دی
دا دويم درېـيم صـورت هـر يـو ضـعيف دی
زمـوږ ديـن د دليلونـو دی حنيـف دی.

❋❋❋

# فاقد الطهورين

کـــه اوبـــه نـــه وي نـــه لوټـــه وي نـــه خـــاوره
نه اودس شي نـه تـيمم شـي دغـه واوره
دا فاقـــد الطهـــورين دی شـــريعت کـــې
بې اودسه لمونځ روا دی دې صورت کې
د تـــيمم والا کـــه لمـــونځ يـــا د فاقـــد وي
پـه ښـه نيـت او پـر آدابـو د عابـد وي

ددې دواړو نـــه قـــضا راګرځـــول شـــته
نـه بـې ځایـه بـې دلیلـه بیـا کـول شـته.

***

# په موزو او جرابو مسح

چې موزې دې په پښو کړې په اودس وي
شـــواروز مـــسح مقـــیم لپـــاره بـــس وي
مـــسافر لپـــاره درې ورځـــې او شـــپې دي
مسح وکړه چې پښو کړې دې موزې دي
چـې جرابـې دې هـم پنـډې وي او پیـړې
راسـره دي دلیلونـه کـه یـې څېـړې
د مـــوزو غونـــدې پـــرې مـــسح ښـــه روا ده
چـــې نـــرۍ وي یـــا شـــکېدلې نـــاروا ده
طریقـــــه د مـــــسحې دا ده محترمـــــه
چـــې لاســـونه دې لامـــده کـــړه مکرمـــه
پـــه یـــو ځـــل دې ګـــوتې راکـــاږه پـــه دواړو
چـې یـې نـه منـي وهـه یـې پـه څوبـاړو
مـسح ماتـه شـي چـې وخـت کلـه پـوره شـي
یا چې مړ شـي او مـسکن دې ادېره شـي
پـــه ایـــستلو د جرابـــې یـــا مـــوزې هـــم
مـــسح نـــه مـــاتېږي وکـــړه دا مـــزې هـــم
خـــو چـــې وباســـې مـــوزه او یـــا جرابـــه
مـــسأله درتـــه کومـــه لـــه کتابـــه

او اودس دې په همدغه وخت کې مات شي

مسح ماته شوه اودس ته التفات شي

***

## په پټۍ مسح

که په زخم یا په درد کومه پټۍ وي

لویه غټه وي او یا وړه کوچنۍ وي

ده روا په دغې مسح شریعت کې

ترڅو ښه نه وي کوه یې په حجت کې

که پټۍ له ځایه لرې شي ماتېږي

او که ټپ ښه شي بیا مسح باطلېږي

***

## حیض

چې بالغه شي جلۍ کومه صغیره

بلل کېږي پېغله دا پخه پتیره

بیا یې هره میاشت راځي یو څلې وینې

او احکام به یې په دې کتاب کې وینې

حیض یې بولي د اسلام په شریعت کې

دا لیکلي دي د ښځو په فطرت کې

چې مبتلې شي بوډۍ شي او زړه شي

بیا یې نه راځي له هرڅه نه مړه شي

نه یې حیض راځي او نه راوړي بچي بیا

په فېرني کې ورته اچوه لاچي بیا

د حيض ورځـو کې پـه ښځو نـه روژه شـته

نـــه مېـــره ســـره دا بلـــه ماملـــه شـــته

نه پرې لمونځ او نه طواف شـته پـه حـرم کـې

بې غلاف بـه قـرآن نـه نيـسي دې دم کـې

د لمانځـه قـضا پـرې نـشته چـې شـي پاکـه

د روژې قـــضا بـــه راوړي پاکـــه ســـاکه

د طـــــواف قــــضا بــــه راوړي محترمــــه

حجيانۍ به کـور تـه لاړه شـي بـې غمـه

د حـيض کمـه مـوده نـشته پـه حجـت کـې

زيــاتې ورځــې دي پــنځلس شــريعت کــې

حائــضې ســره خــوراک او څــښاک روا دی

بې کوروالي يې صحبت هم بې سودا دی

هـره ښـځه يـو عـادت لـري پـه حـيض کـې

خپل جلا جلا صورت لري په حيض کـې

چــې لــه حيــضه کلــه پاکــه خــوارکۍ شــي

غسل فرض شي او مـاموره پـه پـاکۍ شـي

سمدســتي بــه غــسل وکــړي بــې لــه ډيلــه

روا نه دي چې ســتي کـړي بـې دليلـه

بيــا لــه غــسله وروســته ټــول ورتــه روا شــي

ماملـه روژه او لمونځ يـې بـې سـودا شـي

# نفـــاس

کومه وینـه چـې لنګـوال نـه وروسـته راشـي
بلـل کېـږي پـه نفـاس چـې بـرملا شـي
د نفـــاس لـــږه مـــوده ده نامعلومـــه
شپږه هم کېدی شي وروسـته لـه ماشـومه
زیاتې ورځـې تـر څلوېښتو هـم کېـدی شي
طهـارت یـا پـسینه یـا ګړنـدی شـي
خو چې پاکه شي عادت یـې هـم پـوره شي
زر بـه ولامبـي چـې پاکـه او سـتره شـي
دا ناپوهـــه کړمېزنـــې خرامبوګـــانې
نـــاخبرې لـــه احکـــامو جـــاهلانې
تـــر څلوېـــښتو خامخـــا ګرځـــي چټلـــې
عـادت نـه وي غـسل نـه کـوي دا ولـې؟
نـــه لامبـــل او غـــسل منـــع دي نفـــاس کـــې
نه په شپو ورځو د حیض پـه التمـاس کـې
نفاسـې بانـدې نـه لمـونځ او نـه روژه شـته
نـــه دا بلـــه خونـــدوره ماملـــه شـــته
نه حرم کـې لـه کعبـې نـه پـرې طـواف شته
نه نیول پرې د قرآن هم بې غـلاف شـته
د لمانځـه قـضا پـرې نـشته طهـارت کـې
د روژې قـــضا بـــه راوړي نظافـــت کـــې

هـم قـضا پـرې د طـواف شـته لـه کعبـې نـه
ځـان دې وسـاتي د سره اور د لمبـې نـه
بې له ورځو يې نور حيض غوندې احکام دي
گټـــور واړه حکمونـــه د اســـلام دي.

***

## استحـاض

لـــه عادتـــه زياتـــه وينـــه اســتحاض دی
د حيض ورځې په عادت کې انقباض دی
څلـــور ډولـــه حائـــضه مـــستحاضه ده
نـاروغۍ چـې لگـولې پـرې قبـضه ده
چـې عـادت يـې وي معلـوم نـو معتـاده وي
چـې حـيض پيژنـي هغـه مميـزه وي
چـــې بالغـــه شـــي لـــومړی مبتدئـــه ده
پـه دوه ډولـه ده واده تـه ښـه کـره ده
چې همزولې څـوک لـري ذات الاقـران ده
متحيـره حېرانـه پـه خپـل ځـان ده
اوس د هـرې يـوې حکـم تـه غـوږ کېـده
دا بـې گټـې نـاروا سـوچونه پرېـږده
د عـــادت ورځـــې د حـــيض د معتـــادې دي
دا سـربېره استحاض کـې د پـردې دي
چـې تـوپير د حـيض د وينـې شـي کـولی
ځکـــه دا مميـــزه شـــوو مـــونږ بللـــی

دا به بېلې د حـيض ورځـې پـه تـوپير كـړي

بيا به نورې استحاض باندې تعبير كـړي

چــې نـه كومـه معتـاده وي پـه عـادت كـې

او نـــه هـــم مميـــزه وي پـــه صـــفت كـــې

نــوى حــيض يــې وي شــروع مبتدئــه وي

خو په خويندو يـا همزولـو بـه پـوره وي

نو په نـورو بـه قيـاس د حـيض عـادت كـړي

نور به پاک ظاهر باطن صورت سيرت كړي

خـــو دادرې واړه كـــه نـــه وه خـــواركۍ وه

متحيـــــــره حېرانـــــــه گلمكـــــــۍ وه

دا بـه هـر لمانځـه تـه غـسل ښـه كـره كـړي

لمونځ روژه طواف جماع به ښه پوره كړي

يـا بـه لامبـي هـر لمانځـه تـه پـه سهار كـې

بيا به لامبي صلاتين ته په خپل وار كې

بيـا يوځـاى بـه ماسپـښين او مـازيگر كـړي

صـلاتين بـه پـه يـو غـسل برابـر كـړي

دريــيم غـــسل د ماښـــام او ماســـختن دى

پـه دليـل بانـدې روا دى نـه پـه ظـن دى

شـــواروز كـــې شـــو دا درې وختـــه غـــسلونه

پرې به وكړي دا پنځـه وختـه لمونځونـه

دا لامبـــل هـــم د صـــحت لپـــاره ښـــه دي

هـم پـاكۍ او عبـادت لپـاره ښـه دي

# د لمانځه وختونه

فـرض لمونځونـه شـواروز کـې پنځـه وختـه
پـه مونږ فرض دي پـه کولـو شـه نېکبختـه
یــو ســهار بــل ماسپــښین بــل مــازیگر دی
بـل ماښـام، بـل ماسـختن دی مقـرر دی
د ســهار وخــت ســپیده داغ څخــه پیلېــږي
اخر وخت يې لمر خاتـه پـورې رسـېږي
خپــور ســپینوالی پــه افــق فجــر صــادق دی
د کـاذب پـسې لـږ وروسـته او لاحـق دی
که دې هېـر وو یـا ویـده وې نـو معـذور یـې
خو چې یاد شوو یا راویښ شوې نو مجبور يې
لمر نـه مخکـې کـه دې یـو رکعـت راگېـر کـړ
او دويم رکعت دې لمر کـې تېـر و بېـر کـړ
د ســهار لمــونځ دې کــره شــو هــم پــوره شــو
کـه عـادت دې شـو نـو کـار گـره بـره شـو
ماسپــښین وخــت لــه زوالــه شــروع کېــږي
د هر شـي سـیوری مـشرق تـه ورمـاتېږي
اخـري وخـت د هـر سـیوري یـو چنـدي ده
په خپل وخت کې لمونځ کول یوه ښادي ده
مـازیگر لـه یـو چنـدۍ څخـه شـروع شـي
اخري وخت دوچنـدۍ پـورې مـشروع شـي

که په عذر دې هم يو رکعت راګير کړ
او دا نور لمونځ دې غروب نه اخوا تېر کړ
لمونځ دې وشو مازيګر دې په صحت شو
خو سم نه دی که همدغه دې عادت شو
په زيړي لمر مازيګر د منافق دی
د کوتک او د ټوپک سره لايق دی
چې لمر پرېواته اول وخت د ماښام شو
کړي اذان د مؤذن ورته اوس پام شو
چې مشرق کې توره ليکه راښکاره شي
او مغرب کې پرېوتل کره پوره شي
بيا ماښام دی وسوسه مه کوه وروره
رب دې وساته له توره او پېغوره
اخري وخت د شفق پنا کېدل دي
لومړی وخت د ماسختن اوس پيلېدل دي
ماسختن شي چې شفق کله پنا شي
اخري وخت نيمې شپې پورې روا شي
شپه چې نيمې باندې واوړي نو قضا شي
خو دا وتر تر سهاره هم ادا شي

***

## جمع بين الصلاتين

دا لمونځونه وخت په وخت دي شريعت کې
په خپل وخت به يې کوې په خپل صفت کې
د سهار لمونځ به يوائې کوې ګرانه
صلاتين په دې کې نشته مسلمانه

**ماسپښين او مازيگر په يوځای کېږي**
**د ماښام او ماسختن سره غبرگېږي**
**دا په جمع صلاتين باندې يادېږي**
**په سفر او په باران کې روا کېږي**
**کله کله په حضر کې هم روا دي**
**خوف، مرض او په خطر کې هم روا دي**
**پيغمبر زمونږ سفر کې دي هم کړي**
**بې بارانه يې حضر کې دي هم کړي**
**عرفات مزدلفې کې صلاتين دي**
**د مرض په غلبې کې صلاتين دي**
**صلاتين چې کبيره کوم روايت دی**
**بېخي اَضعَفُ شَيءٍ په درايت دی**
**په هغې کې دی حَنَش حسين يې بولي**
**رحبي دی دا نومونه يې غبرگولي**
**دغه نوم چې کوم سند کې کله راشي**
**روايت يې بيا مردود تبا وبا شي**
**احاديث د صلاتينو ډېر صحيح دي**
**په مطلب او مدعا کې ډېر صريح دي**
**هم تقديم پکې روا دی په دې دواړو**
**هم تاخير پکې روا په دغه واړو**
**تقديم دا دی چې رامخکې مازيگر کړې**
**او په وخت د ماسپښين يې برابر کړې**

دواړه جمع کړې په وخت د ماسپښین کې
په دلیل باندې روا دي زمونږ دین کې
تاخیر دا دی چې وروروسته ماسپښین کړې
او په وخت د مازیگر یې په یقین کړې
دواړه جمع کړې په وخت د مازیگر کې
هم روا دي په سفر هم په مطر کې
له زواله څخه وړاندې که سفر کړې
بیا به جمع دغه دواړه مازیگر کړې
او سفر که دې و وروسته له زواله
بیا یې جمع ماسپښین کړه اندیواله
په ماښام او ماسختن کې تقدیم دا دی
ماسختن یې د ماښام وخت کې ادا دی
او تاخیر یې د ماښام دی ماسختن ته
په سفر وې که راغلی وې وطن ته
که د لمر له پرېوتو مخکې سفر وي
بیا ماښام په ماسختن کې برابر وي
او که وروسته له غروبه روانېږې
ماسختن کوه ماښام کې چې خلاصېږې
صلاتینو منځ کې نشته سنتونه
رواتب او زوائد او نه نفلونه
***

# جــامه

پــه لمانځــه کــې پټــول د عــورت فـرض دي
بلکې هر وخت پټول يې فرض او قرض دي
کـــه عـــورت د نارينـــه دی هـــم جـــلا دی
کــه عــورت د ښـځينه دی هـم جـلا دی
غليظـــــه او شـــــرمځای د دواړو يـــــو دی
پام کوه ښکاره يې نه کړې چې ببـو دی
نارينـــه عـــورت نامـــه ځخـــه دی لانـــدې
ان تـر دې چـې زنګانـه څخـه دی بانـدې
د نامـــه او زنګنـــو مـــنځ کـــې عـــورت دی
پـــه ســـاتلو پټولـــو کـــې يـــې پـــت دی
يـو څـادر يـوې جـامې کـې لمـونځ روا دی
په دليل باندې بې شک او بې سودا دی
کـه وړوکـی و څـادر نـو بيـا يـې لنـګ کـړه
د شـيطان لـه وساوسـو څخـه څنـګ کـړه
او کـه لـوی و تېـر و بېـر يـې پـه اوږو کـړه
څټ کې غوټه کړه ورتېر يې له غـوږو کـړه
پـه سـرتوري لمـونځ روا او بـې سـودا دی
که خولۍ وي هـم بـې شـکه ښـه ادا دی
ښــه او غــوره پــه جـامو خــولۍ پګـړۍ دی
په پرتوګ کميس څادر او په شـړۍ دی
پـــه څپليـــو او مـــوزو کـــې لمـــونځ روا دی
پـــه بوټونـــو کـښـــاوو کـــې لمـــونځ روا دی

کــه ناپاکــه وي راکــاږه يــې پــه خــاورو
يا يې پـاکې په اوبـو کړه يـا پـه واورو
خو چې پاکې وي نو لمونځ پکې افضل دی
پـه دليـل بانـدې ثابـت دغـه عمـل دی
لــه ښــنګرو هــم جامــه ښــکته اســبال دی
نارينـــه تـــه نـــاروا دی او وبـــال دی
که پرتوګ دی، که کميس دی، که چپن ده
او که لنګ دی ياشړی.د خپـل وطـن ده
چــې اســبال وي نــو ګــو نــا ده کبيــره ده
په لمانځـه کې هـم دبانـدې ورسـره ده
نـــاروا هغـــه جامـــه ده چـــې وي تنګـــه
او عـورت پکـې معلـوم شـي د بـې ننګـه
د عـــورت ښـــکاره کـــول لويـــه ګونـــا ده
د عـــورت معلومـــول لويـــه ګونـــا ده
لکــه حجــم يــې معلــوم د هنــدوانو شــي
يــا يــې حجــم د انــارو د ســينو شــي
او هــم ســدل نــاروا دی پــه لمانځــه کــې
پــه نفلونـــو، ســـنتونو او پنځـــه کـــې
ســدل ســر يــا پــه اوږو ځوړنــدول دي
دا بــې تــاوه د جــامو ځوړنــدول دي
لکــه واچــوې څــادر پــه اوږو بانــدې
او پلــو پکــې وانــه چــوې لــه وړانــدې

يــا چـــپن او كـــورتۍ واچـــوې اوړو تـــه
او لـــستوني يـــې وانـــه غونـــدې لاســـوتـــه
يــا پــه ســر دســمال بــې تــاوه بــې عقالــه
ســدل مــه كــوه لمانځــه كــې انديوالــه
هـــم رېـــښم دي نـــاروا هـــر نارينـــه تـــه
خـــوروا دي بـــې وسواســـه ښـــځينه تـــه
چـــې جامـــه د نارينـــه وي نـــو ســـاده وي
هم بې ګله، هـم بـې ليكـو هـم درنـه وي
ښـــځينه لپـــاره ټـــول بـــدن عـــورت دى
دا يې پت دا يې عفت دا يې عـزت دى
پــه لمانځــه كــې مــخ لاســونه مــستثنا دي
نـور ټـول غړي پـه پـرده كـې دي پنـا دي
مړونـــدو پـــورې لاســـو او لـــه مـــخ پرتـــه
نـــوره ټولـــه ده عورتـــه نېـــك ســـيرته
پـــرده نـــه كـــوي بـــې پتـــه بـــې عفتـــه
لكـــه ښـــځې د غربيـــانو بـــې غيرتـــه
مـــــــسلمانه وي عفيفـــــــه، محتـــــــشمه
پـــــــرده داره، معـــــــززه، محترمـــــــه.

***

## اذان او اقامت

دې لمونځونـــو تـــه پنځـــه وختـــه اذان دى
د لمانځـــه د خبرېـــدلو ښـــه اعـــلان دى

که يـوائې وې پـه غـره کـې هـم اذان کـړه

پـه جومات او پـه راغه کې هـم اذان کـړه

که پـه دښته کې وې شپون وې هم اذان کـړه

که استاذ د پوهنتون وې هـم اذان کـړه

اذان نـــه دی فقـــط جمـــې جماعـــت تـــه

اذان وګڼـــه قـــرين دې عبـــادت تـــه

مـؤذن بـه پـه قيامـت کـې وي لوړغـاړی

که پښتون وي که عرب وي او کـه شاړی

چـې اذان وشـي شـيطان تـښتي لـه ځايـه

تـر هغـې چـې اذان نـه اوري لـه ورايـه

او پـــه تېـــښته تېـــښته اچـــوي بادونـــه

راخـورې کـړي لـړې خـړې بدبويونـه

د اذان کلمـــې دا دي ښـــه يـــې واوره

لـــه اذانـــه شـــيطانان وباســـي خـــاوره

*الله اکبر الله اکبر، الله اکبر الله اکبر، اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان محمداً رسول الله، اشهد ان محمداً رسول الله، حی علی الصلاة، حی علی الصلاة، حی علی الفلاح، حی علی الفلاح، الله اکبر الله اکبر، لا اله الا الله.*

د ســهار لمانځــه کــې وروســته لــه فلاحــه

دغــه وايــه ځــان خبـر کـړه لـه اصـلاحه

"اَلصَّلاَةُ خَيْرٌ مِّنَ ا لنَّوْمْ، اَلصَّلاَةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمْ"

د ترجيـع اذان کـې دوه ځـل پـه کـراره

دا شـــهادتين يـــې ووايـــه بـــې ډاره

بیا دویم ځل پرې راوګرځه په دواړو
دواړه ووایه په زوره ښه په لواړو
هم قد قامت الصلاة په اقامت کې
دوه ځل ووایه فلاح نه وروسته کت کې
کلمات ټول د اذان دي اقامت کې
ویل کېږي یو یو ځلې یو کرت کې
خو تکبیر او قدقامت یې دوه دوه ځل دی
په دلیل باندې همدغه مکمل دی
که اذان وي د ترجیع نو اقامت بیا
بې ترجیع اذان په څېر یې دی صفت بیا
د فلاح نه وروسته وایي به اذان کې
"الا صلوا فی الرحال" پههر باران کې

***

# له اذان وروسته دعاء

چې اذان واورې نو وایې به دا ذکر
ښه په مینه او په غور او په فکر

"أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ رَضِيْتُ بِاللهِ رَبـًّا وَ بِالإِسْلاَمِ دِيْنًا وَ بِمُحَمَّدٍ رَسُوْلاً."

ګواهي کوم چې نشته کوم معبود هم
له الله پرته او نشته کوم مسجود هم

هــم گــواه يمــه ددې دا مــې قبــول دی
محمد يې هم بنده هم يې رسـول دی
پــه الله بانــدې راضــي يــم زمــا رب دی
او اسـلام دی زمـا ديــن زمـا ادب دی
محمــد بانــدې راضــي يــم پيغمبــر دی
هم نبي دی، هم رسول دی، هم رهبر دی
مــؤذن چــې پــه اذان کــې څنگــه وايــي
اورېــدونکي تــه همغــه ويــل ښــايي
خــو چــې کلــه وايــي حــی علــی وايــه
په دې دواړو کې دا لانـدې ذکـر سـتايه
"لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إلاّ بِاللهِ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمْ"
نــشته چېرتــه اووښــتل لــه معــصيت يــې
نــه توفيــق او قــوت شــته پــه عبـادت يــې
خــو پــه مرسـته د الله شـي چـې اوچـت دی
او هم لوی دی دا لوی والی يې صفت دی
د ســهار پــه مــن النــوم او اقامــت کــې
مؤذن غوندې يې وايـه هـر صـورت کـې
د اقامهــــا اثــــر چــــې دی راغلــــی
ډېــر ضــعيف دی مــا پخپلــه راســپړلی
لــه اذانــه وروســته بيــا درود ويــل دي
محمــد رســول الله تــه يــې لېــږل دي

بيـا دالانـدې دعـا غـواړه چـې مـسنون ده
او راغلــې د حــديثو پــه مــضمون ده

"اَللّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلاَةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَاماً مَّحْمُوْدًا الَّذِىْ وَعَدْتَّهُ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيْعَادْ."

اى الله ددې پـــــوره دعـــــاو ربـــــه
او اى ربـــه د كـــره لمـــونځ لـــه ادبـــه
محمـــد تـــه وســـيله فـــضيلت وركـــړه
پـه مقـام يـې سـتايل شـوي برابـر كـړه
كـوم مقـام چـې تـا وعـده ورسـره كـړې
خلاف نه كړې ستا وعده نـه ده اومـړې
دې كـې نـور چـې خلكـو ايـښي پيوندونـه
ثابت نـه دي هـيڅ پـرې نـشته دليلونـه
لـه دې وروسـته دعـا غـواړه چـې قبلېـږي
د اذان اقامـت مـنځ كـې منـل كېـږي
لـه اذان وروسـته جومـات نـه وتـل نـشته
خـوكـه بېرتـه راسـتنېږي نتـل نـشته
پـه شـرعي عـذر كـه پـاتې شـي لمونځونـه
بيـــا اذان او اقامـــت كـــوه پـــښتونه
كـــه د ډېـــرو قـــضايي وي يـــو اذان دى
اقامت هر يـو تـه بېل بېل پـه ښـه شان دى

اذان يـــو اقامـــت بـــل كـــول روا دي
خو چې يو دا دواړه وكړي ښه همدا دي
كـــه د ښــځو د لمونځونـــو جماعـــت وي
نـو پـه ښـځو نـه اذان نـه اقامـت وي
خـو بـاك نـه لـري كـه وكـړي دغـه دواړه
خـو امامـه بـه صـف مـنځ كـې وي ولاړه
كـه يـا واوره يـا ږلـۍ او يـا بـاران وي
بيا په كور كې لمونځ كـول روا اسـان وي
مـؤذن بـه لـه فـلاح وروسـته دا وايـي
يـا هـم وروسـته لـه اذانـه داسـې ښـايي
الاصـلوا فـى الرحـال بـه ورسـره كـړي
لمونځ په كور كې وكړئ دا به ورپوره كړي

❋❋❋

## په اذان يا لمانځه اجورت اخيستل

پـه اذان او پـه لمانځـه نـه اجـورت شـته
نـه تنخـا او مـزدوري پـه امامـت شـته
دغه لمونځ يو عبادت دی په مونږ فـرض دی
په امام او مقتـديانو يـو شـان قـرض دی
امامـــت د هـــر عـــالم مـــسئوليت دی
او روزۍ لپـــاره كـــار او تجـــارت دی

چــې امــام د مقتــديانو لاس تــه گـــوري
او نه کـار کـوي نـه زيـار باسـي نـه ښـوري
دا د علـــــم ســــــپکاوی او اهانـــــت دی
عـالم دې کـار بانـدې پـر او ملامـت دی
عـــالم بايـــد مـــستغني او بـــې پـــروا وي
تـــل د علـــم او د ديـــن پـــه اعتنـــا وي
کـــوم امـــام چـــې مقتـــديانو تـــه تـــل اړ وي
بيا له حق څخه گونگی وي سر يې ځوړ وي
امامـــــان او علمــــــاء بايــــد ســــخيان وي
لاس يې لاندې نه وي باندې وي عيان وي
امامـــانو تــــه توفيـــق لــــه ربــــه غـــواړم
امامان چې محتـاج نـه وي زه بـه وياړم
کـه تحفـيظ دی د قـرآن کـه يـې تفـسير دی
د حـــــديثو يـــا د فقهـــې پـــه تعبيـــر دی
نــــه روا پـــرې مـــزدوري ده نـــه تنخــا ده
کـــه چـــا واخيـــسته حرامـــه خامخـــا ده
د بـــل علـــم پـــه تـــدريس بانـــدې روا ده
خـو پـه ديـن بانـدې تنخـا تـوره بـلا ده
صرف او نحو ده منطـق دی کـه حکمـت دی
که ادب عروض او طـب دی کـه لغـت دی

معـــاني دي هندســـه کـــه رياضـــي ده
کــه تــاريخ، جغرافيــه کــه بيــالوژي ده
پــه دې ټولــو ښــه حلالــه مــزدوري ده
پــه تنخــا بانــدې روا دغــه خــواري ده

❋❋❋

# جـومـاتـونه

جومـــاتونو جوړولـــو کـــې ثـــواب دی
جومـــاتونو پـــاکولو کـــې ثـــواب دی
جوماتونـــه بايـــد پـــاک وي لـــه ښـــځلو
ښه جارو شي او يا پاک شـي پـه وينځلـو
جوماتونـــه ودانېـــږي پـــه لمونځونـــو
ښــه پــه جمــو، تــلاوت، دعــاء ذکرونــو
پـــه جومـــات کـــې اعلانونـــه نـــاروا دي
د ورک شـوي، کـه د مړي، کـه د غـلا دي
پــه جومــات کــې گــپ شــپونه نــاروا دي
بـــد ويـــل او بـــد شـــعرونه نـــاروا دي
ښـــه صـــحبت ويـــده کېـــدل پکـــې روا دي
جنابـــت کـــې تېرېـــدل پکـــې روا دي
ښـــه شـــعرونه هـــم لوســـتل پکـــې روا دي
د خوراک او څښاک کـول پکـې روا دي

په جومات کې توکول هم ناروا دي
پکې پوزه سونول هم ناروا دي
په کورونو کې هم جوړ کړئ جوماتونه
پاک ځای وټاکئ کوئ پکې لمونځونه
په جومات کې فیصلې کول روا دي
چې د عدل وي جرګې کول روا دي
په جومات کې د بندي تړل روا دي
په جومات کې د تدریس کول روا دي
په جومات کې د جهاد اعداد روا دی
په جومات کې د محتاج امداد روا دی
پاکه ځمکه چې هرځای وي لمونځ پرې کیږي
پاکه ځمکه په جومات باندې یادیږي
ادیرو کې د لمانځه کول حرام دي
د یو قبر او له ډېرو سره عام دي
په جومات روا د مړي ایښودل دي
هم روا په دغه مړي لمونځ کول دي
لمونځ روا دی ځمکې لاندې او هوا کې
چت له پاسه، الوتکه کې فضا کې
په جومات کې خاص د یو ځای ټاکل نشته
له خپل ځایه هم د چا پاڅول نشته
***

# سُــتره

د لمانځــه مخکــې سُــتره هــم مــستحب ده
دا لپــــاره د تهــــذيب او د ادب ده
د ســـترې انـــدازه يـــو ذراع يـــو لاس دی
له څنګلې نـه د ګوتـو پـورې پـاس دی
دا يـــې لـــږ تـــر لـــږه کمـــه انـــدازه ده
لـــه دې لويـــه لا ښـــه غـــوره جـــائزه ده
ستره ښه ده بې سترې لمونځ هـم روا دی
په دليـل بانـدې بې شکه بې سـودا دی
د امـــام ســـتره ســـتره د مقتـــدي ده
چـې دليـل نـه وي خبـره دې ردي ده
د ســـترې هـــم پيغمبـــر نـــه روايـــت دی
بـې سـترې هـم د حـديثو درايـت دی
بـې سـترې د نـه کېـدو چـې کـوم اثـر دی
نـه صحيح دی نـه ثابـت لـه پيغمبـر دی
پـــه دې هکلـــه مـــا ليکلـــې ده څېړنـــه
زمـونږ بـل کتـاب نـه وکـړه دا پوښـتنه[1]
تېرېـــدل د لمانځـــه مخکـــې نـــاروا دي
پـــه حـــديثو کـــې راغلـــي بـــرملا دي
کـه څلوېښت ورځـې اونـۍ مياشـتې کلونـه
انتظـــار وشـــي دي ښـــه نـــه تېرېدنـــه

[1] فقه السنن والآثار وګورئ.

کـه ولاړ وې پــه لمانځــه او څــوک تېرېـږي
ستا په مخکې او نږدې وي نه شرمېږي
اول منــع کـــړه پـــه لاس دغـــه ناپوهـــه
په دليل دې هم عمل وشه هم گروهه
او که نه شـو بيـا يـې ټېل وهـه شيطان دی
او که نه شو بيا يې ووهه چې وران دی
لمــونځ دې نــه مــاتېږي مــه کــوه خبــرې
او لـه خپلـه ځايـه مـه ځـه پـسې لـرې
پـه جومـات کـې لـه ديـوال او سـتنو پرتـه
د سـترې ايـښودل نـشته نېـک سـيرته
د سـجدې لـه ځايـه اخـوا چـې سـتره ده
د يـــــو گـــــز د تېرېـــــدلو فاصـــــله ده
په صحرا کې چې اوبښ چو کړې او ستره شي
پـه دليـل بانـدې دا لمـونځ کـره پـوره شـي
که په مخکې دې څوک پروت وي لمونځ روا دی
که ويده وي او که ويښ وي بې سودا دی
که په مخکې دې کوم کټ وي نـو سـتره ده
بـــې لـــه نېغـــو اړولـــو ښـــه کـــره ده
❋❋❋

## په لمانځه کې روا او ناروا کارونه

پـــه لمانځـــه کـــې اشـــاره کـــول روا دي
د کمکـي ماشـوم پـه غېـږ نيـول روا دي

په سجده کې کېنول یې هم روا دي
چې راپاڅې راخیستل یې هم روا دي
د سلام ځواب په لاس باندې روا دی
د دلیل او د حجت په اعتنا دی
په لمانځه کې مار، لړم وژل روا دي
د سجدې له ځای کوم شی وهل روا دي
که قبلې ته دروازه چا ټکوله
په لمانځه کې وې ولاړ تا اوریدله
نو ورمخکې شه ور بېرته کړه بیا راشه
راروان د لمانځه ځای ته شا په شا شه
که بلغم یا ارخچی دې خولې ته راشي
کیڼې پښې لاندې توکل درته روا شي
یا یې تو کړه په څادر یا په دسمال کې
بیا مښل یې هم روا شي دغه حال کې
په لمانځه کې هم خبرې ناروا دي
هم لیدل له ځایه لرې ناروا دي
د اسمان لور ته لیدل هم ناروا دي
ښي او کیڼ لور ته کتل هم ناروا دي
په لمانځه کې نه بې ځایه خوځېدل شته
نه جامې راټولول نه ګرول شته
لمونځ دې نه کېږي حاضره چې ډوډۍ شي
او رامخ ته دسترخوان وي که کونډۍ شي

يــا در ټينگــې شــي ميتيــازې ډكــې تــشې
لمونځ دې نه كېږي صاحبه سترى مشې

ډكېـــدل او تـــشېدل دواړه پـــوره كـــړه
بيا لمونځ ښه په فارغ زړه باندې كره كړه

كه امام چېرتـه لمانځـه كې بې اودس شـي
دى به لاړ شي او رامخكې به بل كس شي

پـاتې لمـونځ بـه دغـه بـل امـام پـوره كـړي
او په دې ترتيب به دغه كـار كـره كـړي

كــه امــام نــه چېرتــه هېــر وو بــې اودس و
او لمانځـــه تـــه مخكـــې شـــوى دغـــه كـــس و

دغـــه لمـــونځ د مقتـــديانو ښـــۀ كـــره دى
پـــه امـــام يـــې قـــضايي ده، نـــاكره دى

❋❋❋

# لمـونځ

چـــې پنځــه دي بنــسټونه پــه اســلام كــې
يو يې لمونځ دى ښه يې ونيسه په پام كې

پــه اعمــالو كــې تــر ټولــو چــې اول دى
هغه لمونځ دى پنځـه وختـه مكمـل دى

ماشـــومانو تـــه لـــه اوو كـــالو نـــه وړانـــدې
لمونځ ورزده كړه دا يې حق دى په تا باندې

چـــې د اوو کـــالو شـــو وکـــړه ورتـــه امـــر
چې لمونځ وکړي بيا ونه کړې ورته صبر
او چـې شـي د لـسو کـالو لمـونځ ونـه کـړي
بيا يې ووهه تر هغې چې يـې ښـه کـړي
لـه دې عمـر څخـه پورتـه چـې عاقـل وي
لمونځ پرې فرض شي د کولو يې قابل وي
لمـونځ چـې نـه کـوي لـه قـصده نـو کـافر دی
چـې منکـر، تـارک، مقـيم کـه مـسافر دی

❋❋❋

# د جمې لمونځ

لمونځ جومات کې جماعـت سره افـضل دی
له يوائې يو پـه اوه ويـشت مفـضل دی
پيغمبـر وايــي چــې نــه ځــي جماعــت تــه
غواړم کور په اور وروسېځم بې پـت تـه
فـرض لمونځونـه جومـاتونو کـې بهتـر دي
سـنت، نفـل پـه کورونـو کـې بهتـر دي
لمـونځ د ښـځو پـه کورونـو کـې دی غـوره
که جومات تـه ځـي نـو تللـی شـي کـوتره
ځوک حق نه لـري چـې منـع کـړي دا ښـځه
ورته ووايي چې نن جومات تـه مـه ځـه

د ســـړيو لـــومړی صـــف دی يـــا صـــفونه
ورپــــــسې د هلكـــــانو كتارونـــــــه
صـــــف، صـــــفونه اخـــــري د ښـــځينه و
لنـډ امـام تـه لـوی هوښـيار لـه نارينـه و
په سجدو كې ښځې وروسته پورتـه كېږي
لـــه جوماتـــه ښـــځې مخكـــې روانېـــږي
د ســـړيو د لـــومړي صـــف فـــضيلت دی
او د ښځو د وروستي صـف فـضيلت دی
ټـــول صـــفونه بـــه كـــره او مـــنظم وي
پـــه يـــوه ليكـــه بـــه واړه ســـره ســـم وي
يـو تـر بلـه بـه پـښې جـوختې وي پيوسـته
خالي ځای به منځ كې نه پرېږدي د كسته
دا ښـــنگري بـــه ښـــنگرو ســـره ضـــم وي
او اوږې بـــه د اوږو ســـره منـــضم وي
پـــه ښـــنگرو بانـــدې هـــر ســـړی اودرېـــږي
پـــه ښـــنگرو ســـره ټـــول برابرېـــږي
دا پنجـــې او پونـــدې لنـــډې او اوږدې دي
پـروا نـه لـري كـه وچـې كـه لمـدې دي
نـــه پـــه پونـــدو بانـــدې صـــف برابرېـــږي
نه پـه پنجـو د پـښو گوتـو صـف سـمېږي

سـمېدو لپـاره بويـه تـل ښـنگري
چې يې سم کړي يو تر بله خپل ملگري
پـه امـام بانـدې لازم دي چـې رامـخ شـي
مقتـديانو تـه وينـا کـې مخـامخ شـي
ورتـه ووايـي چـې سـووا برابـر شـئ
پښې اوږې مو سره جوختې لـر و بـر شئ
اقامـت چـې کلـه وشـي جماعـت تـه
بيـا روا نـه دي چـې ودرېږي سـنت تـه
کـه ولاړ وې پـه نفلونـو سـنتونو
سـلام واړوه شـريک شـه پـه صـفونو
کـه وړې غټـې ميتيـازې وي درغلـې
يـا حاضـره وي ډوډۍ رارسـېدلې
لمونځ دې نه کېږي اول حاجـت پـوره کـړه
له دې دواړو او بيا لمـونځ وروسـته کـره کـړه
چـې حـافظ وي نـو حقـدار د امامـت وي
چې هم ډېر وي او هم ښه يې قرائت وي
بيـا عـالم چـې د قـرآن او د سـنت وي
بيـا د ټولـو چـې دمخـه يـې هجـرت وي
بيـا چـې مـشر دی او ټولـو کـې اسـن دی
روا هر يـو دی خـو دغـه کـار احسن دی
کـه مېلمـه وې د چـا کـور يـا پـه ديـره کـې
يـا د چـا د سـيطرې پـه دائـره کـې

روا نـه دي چـې مېلمـه يـې او امـام شـې
اجازه چې نـه وي هـسې بـه بـدنام شـې
روا نــه دي كومــه ښــځه شــي امامــه
نارينــه و تــه چــې خاصــه وي كــه عامــه
ښــځه ښــځو تــه امامــه جوړېــدی شــي
مخكې نه شي د صف منځ كې ودرېدی شي
صـف نـه وروسـته بـه يـواځې نـه ودرېږې
يـا ځـوک راكـاږه لـه صـفه كـه پـوهېږې
يــا ورننــه وځــه صــف كــې قاعــده ده
كـه يـواځې دې لمـونځ وكـړ اعـاده ده
مريــي او د غــلام پــسې لمــونځ كېــږي
چې كافر نه وي امام پسې لمـونځ كېـږي
چې بدعت يې نه شـركي وي نـه كفـري وي
مبتدع پسې لمونځ كېږي چې قـاري وي
چـې ماشـوم وي او لـه اوو كـالو نـه بـر وي
خـو قـاري وي او پـه شـرعې برابـروي
امامــت يــې دی روا پــه شــريعت كــې
چې أقـرأ وي شـک يـې نـشته امامـت كـې
چــې امــام بانــدې ناخوښــه مقتــديان وي
نـو امـام بايـد لـه هغـه ځـای روان وي
د امــام لمــونځ بــه پــوره او مختــصر وي
ځكه وروسته ترې ضعيف، ناروغ، مضطر وي

کـه دوه کـسه وي نـو هـم بـه جماعـت کـړي
مـسلمان بـه تـل د جمـې رعايـت کـړي
مقتــدي بــه د امــام ښــي لــور تــه ســم شــي
لکه صف به دواړه يوځای سره ضم شـي
کــه ناپوهــه وي او کينــې خــوا تــه راشــي
اړول يــې ښــي طـرف تــه بيـا روا شــي
مقتــدي چــې لــه امامــه وي لــږ وروســته
دا خبــره پــه دليــل بانــدې ده ســـته
که درېيم راشي راوروسته به ماموم کـړي
خو په خوا به يې له ځان سره منظوم کړي
کــه يــوه ښــځه او دوه يــې نارينــه وي
ښځه وروسته خوا په خـوا بـه نارينـه وي
کـه يـوه يـې ښـځينه او بـل يـې نـر وي
ښـځه وروسـته سړی مخکـې مـستقر وي
کـه يـوه ښـځه او بـل يـې هـم مېـړه وي
خوا په خوا به شي ځوانا ن وي که زاړه وي
مخکې وروسـته هـم کېدی شي دغـه دواړه
لمونځ دې وکړي بيا دې ځي غاړه په غاړه
کــــه ژړا واوري امــــام د ماشــــومانو
په لمانځه کې بـه خيـال سـاتي د مورګـانو
لمـونځ بـه لنـډ کـړي د ماشـوم او مـور لپـاره
چې دا مور يې خپل ماشوم ته شي اوزګاره

په لمانځـه کـه څـوک ولاړ وي او بـل راشـي
ورشريک دې شي دا دوه جمـه روا شـي
کـــه دوه ځلـــې امامـــت وکـــړي روا ده
مفتـــــرض متنفـــــل پـــــسې ادا ده
که لوړ غـږې مېچن نـه وي خلـک ډېـر وي[1]
د امـام لــه اورېــدو نــه تېــر و بېــر وي
وروسـته يـو يـا څـو کـسان بـه ټاکـل کېـږي
د امـام غــږ د هغــوی پــه غــږ رسـېږي
که څوک راشي ځای ونه مومي ځای تنګ وي
ځای ډک شوی وي او خلک ځنګ په ځنګ وي
لـه امـام سـره دې ودرېـږي پـه خـوا کـې
په نښه لوري شک ونه کړې دې ادا کې
او که ډېر وو نښي او کيڼ لور ته به صـف شـي
لمونځ به وکړي د شيطان کار به تلف شـي
چـــې صـــفونه يـــو يـــا ډېـــر برابرېـــږي
مـــوازي بـــه امـــام مـــنځ ســـره ســـمېږي
کـــه امـــام او مقتـــديانو مـــنځ کـــې لار وي
يا دېوال، وياله، کوټه، پول او يا دار وي
پـــروا نـــشته لمـــونځ روا پـــه ضـــرورت دی
ګنـې ګـونې کـې روا دغـه صـورت دی

---

[1] لوړ غږې مېچن: لوډسپيکر.

که جومات کې هم د جمې لمونځ ولاړ وي
که له پیل وي یا رکعت درنه کوم لاړ وي

منــډې مــه وهــه ارام بانــدې وردرومــه
هغه لمونځ دی چې دې ونیوه لـه کومـه

کـه پـه عـذر پـاتې لمـونځ وي یـا لمونځونـه
نــو قــضا یــې ده پــه جمــه ثوابونــه

که څوک راشي لمونځ ترې پاتې وي په جمه
او یـو بـل پـه جمـه کـړی وي بـې غمـه

نو دې بل سره دې ودرېږي چـې جـوړ شـي
دغه لمونځ په جماعت او زړه یې سوړ شـي

د دویـم لمـونځ صـدقه پـه دې لـومړي ده
د ثــواب دغــه کانــه ددې ســړي ده

د فاضـل هـم د مفـضول پـسې لمـونځ کېـږي
مفتــــرض متنفــــل پــــسې رغېــــږي

د بینــــا هــــم د ړانــــده پــــسې روا دی
د اودس والا تــــیمم پــــــسې ادا دی

مــــسافر او د مقــیم یــو بــل پــسې دی
دغــه ټــول روا ادا بــې وسوســې دی

***

# قبلې ته مخ کول

پــه مکــې مکرمــې کــې چــې کعبــه ده
پــه حــرم کــې همغــه زمــونږ قبلــه ده
په مونږ فرض دي چې قبلې تـه بـه ودرېږو
په لمانځه کې بـه حـرم تـه ورمـخ کېږو
کــه تيــاره وه او يــا دښـــته يــا ســـفر و
او قبلــه معلومــه نــه وه يــا کــوم غــر و
او پـــه فکـــر د قبلـــې قبلـــه خطـــا شـــوه
او معلومــه شــوه دا هلــه چــې رڼــا شــوه
لمــونځ ادا دی اعــادې تــه حاجــت نــشته
د بـــې ځايـــه تکلـــف ضـــرورت نـــشته
په سپرلۍ باندې چې هرې خوا تـه مـخ وي
لمونځ يې کېږي چې هر لور ته مخامخ وي

❋❋❋

# لمانځه کې ننوتل

چــې اړيــن شــرط د قبــول او د صــحت دی
د اعمـــالو عبـــاداتو هغـــه نيـــت دی
نيت د زړه يو پټ عمـل او پـټ صفت دی
چې په ژبه يې څوک وايي دا بدعت دی
هم دې وخت په زړه کې شـته هـم رکعتونـه
هــم دې جمــه انفــراد، فــرض، ســنتونه

په تکبیر تحریمه لمونځ کې داخل شه

وایه "الله اکبر" د لمونځ عامل شه

هم لاسونه دواړه پورته تر اوږو کړه

تر سینې هم روایت یا تر غوږو کړه

نه اوږو باندې د ګوتو ایښودل شته

نه غوږو باندې د ګوتو سولول شته

نه د ښځې نارینه لمونځ کې توپیر شته

نه توپیر یې د پاچا او د فقیر شته

بیا لاسونه د سینې له پاسه کېږده

د دنیا ټولې خبرې شاته پرېږده

ښی لاس کېږده کینې له پاسه احترام دی

په مړوند، بازو، څنګلې هر یو تام دی

که چا کېښودل نامه باندې روا دي

لاندې باندې دواړه ښه دي بې سودا دي

بیا دا لاندې دعا دواړه یا یوه ده

دا خبره په دلیل رڼا ډېوه ده

۱ – سُبْحَانَكَ اللهُم وَ بِحَمْدِكَ وَ تَبَارَكَ اسْمُك و تَعَالى جَدُّكَ وَلاَ اِلَهَ غَيْرُكَ .

الله پاک یې او کړه ستاینې ستا دي

ستا نامې برکتناکې برملا دي

لوړ دې شان دی زموږ ربه ډېر اوچت يې
له تا پرته معبود نشته، بې حاجت يې

۲- اَللّٰهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِىْ وَ بَيْنَ خَطَايَاىَ كَمَا بَاعَدْتَّ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اَللّٰهُمَّ نَقِّنِىْ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَاىَ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدْ.

الله راوړې لرې والی زما منځ کې
او زما د ګناهونو په بد پنځ کې
لکه څنګه دې راوستی لرې والی
په ختيز او په لوېديز کې بېرته والی
الله لرې مې ګناوې کړې سنګينې
لکه پاکې شي له خيرو جامې سپينې
الله ووينځې ګناوې، زما ربه
په اوبو واورې، ږلۍ له دې طلبه

# قرائت

بيا ويل د تعوذ او تسميې دي
ورپسې کره لوستل د فاتحې دي
فاتحه لوستل په هر رکعت کې فرض دي
منفرد، امام، ماموم باندې دا قرض دي
فرض سنتو او نفلونو کې لوستل دي
په جهري سري لمونځونو کې لوستل دي

او امـــام صـــاحب ابـــو حنيفـــه وايـــي
چـې مـاموم تـه لـه امام پسې نـه ښـايي
فـــاتحې پـــسې بيـــا ووايـــه آمـــين هـــم
هر لمانځه کې که څه هم وي ماسپښين هم
پـه جهـري کـې يـې جهـري وايـه پـه زوره
پـه سـري کـې يـې سـري وايـه بـې زوره
پـــه دليـــل بانـــدې قـــوي دي دا خبـــرې
د دليـــل خبـــرې تـــل وي بختـــورې
بيـــا آمـــين پـــسې لوســـتل د قرائـــت دي
آياتونـه يـا لوسـتل د کـوم سـورت دي
آياتونـــه لـــږ تـــر لـــږه درې لوســـتل دي
او د ځينـــو رايـــه يـــو آيـــت ويـــل دي
تـــسميه لوســـتل پـــه جهـــر هـــم روا دي
خـــو ســـري لوســـتل راجـــح او ښـــه رڼـــا دي
لـــه تـــوبې پرتـــه د ټولـــو ســـورتونو
پـه شـروع کـې تـسميه پـه دليلونـو
ده راجحـــــه دا خبـــــره ده راغلـــــې
احـــاديثو کـــې مـــا خپلـــه ده لوســـتلې
مقتـــدي بـــه پټـــه لـــولي پـــه جهـــري کـــې
فاتحـــه او قرائـــت هـــم پـــه ســـري کـــې
د جهـــري لمونځونـــو حکـــم منفـــرد تـــه
هـــم جهـــري دی هـــم ســـري روا عابـــد تـــه

ماسپښین او مازیګر یې پټ سري دي
دا نور دري واړه لمونځونه یې جهري دي
خو جهري کې دا لومړي دي دوه رکعته
دا نور یو یا دوه سري دي له صفته
د سهار قرائت اوږد فضیلت دی
لنډ او اوږد روا هر یو قرائت دی
د جمعې د ورځ لمانځه لومړي رکعت کې
د اعلیٰ سورت سنت دی قرائت کې
غاشیه سورت دویم رکعت کې وایه
نور یې هر یو قرائت هم روا ستایه
په سنتو د سهار او د ماښام کې
سنت دوه سورته ونیسه په پام کې
په لومړي رکعت سورت د کافرون دی
په دویم کې د اخلاص سورت مسنون دی
قرائت د هر لمانځه ته کوم حد نشته
لنډ او اوږد دی روا او کوم بد نشته
سورتونه هم روا دي یو رکعت کې
خلاصول هم ضرور نه دي لوی سورت کې
په لومړیو دوه د فرضو کې سورت دی
دا سر بېره فاتحې باندې سنت دی
او وروستي که چېرې دوه یا یو رکعت دی
په لوستلو د الحمد کفایت دی

او کــه ټولــو کـــې يـــوائې فاتحـــه وي
هـم روا ده لکـه تــشه چــې پيــاوه وي

# رکــوع

بيـا بـه پورتـه خپـل لاسـونه تـر اوږو کـړې
يا يې پورته تر سينې يـا تـر غـوږو کـړې
لکـه څنگـه دې پـه پيـل وو پورتــه کـړي
دليلونـــه د عـــدم دي ټـــول اومـــړي
بيـا بـه ووايـــې تکبيـــر او شـــې بـه ښـکته
په رکوع باندې به سم شـې نېک سـيرته
خپــل ورغــوي بــه دې ږدې پــه زنگنونــو
لکـه ونيـــسې کــوم شـــی پــه دې لاســونو
خپـل لاسـونه بـه دې شـخ کـړې لکـه مـزی
د ليندۍ چــې مـستقيم وي نـوی نـوزی
ســر بــه مــلا ســره پــه يــو خــط برابــر وي
معتدل به په خپـل ځـای کـې مـستقر وي
نـــه بـــه پورتـــه لکـــه چـــرگ بـــاران وهلـــی
نـه بـه ښـکته زنگنـو خـوا تـه وي تللـی
زنگنونـــه بـــه وتلـــي نـــه وي مـــخ تـــه
راکـاږه بـه نـه وي لـوري مخـامخ تـه

په رکـوع کـې بـه دا لانـدې دعـا وايـې
پاک الله به پـه دې لانـدې ذکـر سـتايې

۱ – "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمْ"

هم ډېر پاک او هم ډېر لوی دی زما رب دی
چـې دا نـه منـي کـافر دی بـې ادب دی

۲ – "سبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلاَئِكَةِ وَالرُّوْحْ"

هـم ډېـر پـاک دی زمـا رب او هـم سـپېڅلی
پرښـــتو او جبرائيـــل دی رب منلـــی

۳– "سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ".

تــه ډېــر پــاک يــې ای الله زمــونږه ربــه
ثنـــا تاتـــه ده الله زمـــونږ مطلبـــه
راتـــه وبـــښه گونـــاوې گوناهگـــار يـــم
ســـتا د عفـــوې او بـــښنې طلبگـــار يـــم
لـومړی ذکـر لـږ تـر لـږه درې ځـل وايـه
او د ډېـرو بريـد يـې نـشته ډېـر يـې سـتايه
او دا نـور يـې هـم يـو ځـل ويـل روا دي
هـم يـې ډېـر پـه ښـه ادب او اعتنـا دي
بيـا بـه پورتـه لـه رکـوع شـې پـه ولاړه
هم به پورته کړې لاسونه غبرگ دا دواړه
لکـه څرنگـه وو پيـل کـې پورتـه شـوي
همغـسې بـه کـړې پورتـه خپـل ورغـوي

بیـا بـه ځوږنـد کـړې لاسـونه دا ارسـال دی

پـه دلیـل بانـدې قـوي دغـه فِعـال دی

کــه چــا وتــړل لاســونه هــم روا دي

خـو دا نـه تـړل قـوي او بـې سـودا دي

هــم بــه وایــي دا دعــا روانېــدو کــې

پـه دې لاره لـه رکـوع پورتـه کېـدو کـې

۱ –" سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهْ "

پــاک الله د هغــه چــا دي اورېــدلي

چې ستایلی یې دی هـم یـې دي منلـي

"رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدْ"

زمــوږ ربــه همــدا تــا لــره ثنــا ده

سـتا پـه درکـې بـې وسـي زمـونږ دعـا ده

۲ – "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ حَمْداً كَثِيْراً طَيِّباً مُبارَكاً فِيْهِ"

ربــه تــا لــره ســتاینه ده بــې شــکه

چــې هــم ډېــره ده هــم پاکــه مبارکــه

۳– رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلأَ السَّمَاوَاتِ وَ مِلأَ الأَرْضِ وَ مِلأَ مَا بَيْنَهُمَا وَ مِلأَ مَا شِئْتَ مِنْ شَئٍ بَعْدُ أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَ كُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ اَللّٰهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلاَ يَنْفَعُ ذَاالْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ.

زمــوږ ربــه ثنــا تــا لــره ده ډېــره

چې پرې ډک شي اسمانونه او سربېره

پــه ډکــوالي ددې ځمکــې او لا بيــا هــم

چې ډکېږي پرې د دوارو منځ خـلا هـم

لــه دې وروســته پــه ډکــوالي د هغــه شــي

چې ستا خوښه وي سرېږه پرې د څه شي

اى خاونـــــده د ثنــــا او د لــــوى شــــانه

مــونږه ټــول ســتا بنــده ګــان يــو مهربانــه

چــې بنــده تــر ټولــو ښــه وينــا کــړي دا ده

کــه دا ورکــړه ده کــه منــع ده لــه تــا ده

اى الله تــــا چــــې ورکــــړي وي و چاتــــه

نــشته هــيڅ منــع کــوونکى دې ادا تــه

او چـــې تـــا دي منـــع کـــړي زمـــونږ ربـــه

ورکــوونکى يــې څــوک نــشته لــه طلبــه

او د مـــال خاونـــد تـــه نـــه شـــي رســـولى

کومــه ګټــه لــه تــا کــوم يــې چــې ګټلــى

***

## سجـدې

بيــا ورښــکته بــه ســجدې تــه پــه تکبيــر شــې

په سجدې کې به شريک په دې تدبير شې

لومړى کې به ږدې پــه ځمکــه خپـل لاســونه

او بيا کې بــه ږدې خپـل دواړه زنګنونــه

ســر پــه ځمکــه بانــدې کېــده تنــدى پــوزه

پــه اخــلاص او محبــت د زړه لــه ســوزه

لــه پنـــډيو دا ورنونـــه هـــم جـــدا کـــړه

هـم دې خېټـه لـه ورنـو څخـه جـلا کـړه

خپلـې مخـې تـه ور اوږد شـه سـجدو کـې

لنـــډو لنـــډو منځنيـــو او اوږدو کـــې

د پــښو گــوتې دې قبلــې تــه مخــامخ کــړه

او ښنگري سره جوخت او مخ په مخ کـړه

قدمونـه لانـدې بانـدې سـره جوخـت کـړه

په همدې ترتيب سجدو کې ځان وربوخت کړه

پورتـــه نـــه کـــړې پـــوزه ټنـــډه او لاســـونه

او نـه پورتـه کـړې دا پـښې يـا زنگنونـه

که لـه ځمکـې نـه دې پورتـه کـړ کـوم غـړی

لمونځ دې نه کېږي ځان نه کړې هسې ستړی

پــه ســجدو کــې بــه دا ذکــر دعــا وايـــې

بـې وسـي بـه دې الله پـاک تـه ورښـايې

١ –" سُبْحَانَ رَبِّيَ الأعْلَى"

زمـا رب تـر ټولـو پـاک او ډېـر اوچـت دی

پورته والی، اوچتـوالی يـې صفت دی

٢ – "سُبْحَانَكَ اللّهُمَّ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اللّهُمَّ اغْفِرْلِيْ"

٣ – "اَللّهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ كُلَّهُ دِقَّهُ وَ جِلَّهُ أَوَّلَهُ وَ آخِرَهُ عَلاَنِيَتَهُ وَ سِرَّهُ"

ای الله راتـــــه راوبـــــښې گونــــا مـــــې

کــه ورې دي لــږې ډېــرې دي نــاړامې

لومړنۍ دي، وروستنۍ دي كه ښكاره دي
او كه پټې دي دا ټولې ما سره دي
لومړی ذكر لږ تر لږه درې ځل وايه
او د ډېرو بريد يې نشته ډېر يې ستايه
او دا نور يې هم يو ځل ويل روا دي
هم يې ډېر، په ښه ادب او اعتنا دي
نورې ډېرې دعا وغواړه سجدو كې
چې دې ونغاړي د رحم په پردو كې
د قرآن لوستل سجدو كې ناروا دي
په ركوع كې هم دا منع په هر چا دي
بيا د دواړو سجدو منځ كې كېناستل دي
او دا لاندې دعا دې ځای كې لوستل دي

۱ــ "رَبِّ اغْفِرْلِيْ، رَبِّ اغْفِرْلِيْ"

زما ربه راته وبښې گوناوې
زما ربه راته وبښې گوناوې

۲ــ رَبِّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَ عَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَ ارْزُقْنِيْ وَاجْبُرْنِيْ وَارْفَعْنِيْ.

زما ربه راته وكړې ته بښنه
او په ما باندې هم وكړې پېرزوينه
زما ربه راته راكړې عافيت هم
په خپل فضل راته وكړې هدايت هم

او روزي هــم راتــه راکــړې زمــا ربــه
هــم مـې اړ باسـې طاعـت تـه لـه طلبـه

هـم مـې پورتـه کـړې ای ربـه درجـو کـې
چــې ونــه نــښلم هیڅکلــه لانجــو کــې

بیـا دویمــه سـجده هـم لکـه لـومړۍ ده
پـه تکبیـر بانـدې ورځـه غاړه غـړۍ ده

هر رکعت کې دوه سجدې دي په هر حال کې
هر لمانځـه کې هـرې نـوعې هـر مهال کـې

بیـا راپورتـه پـه تکبیـر شـه بـل رکعـت تـه
دې کــره پــوره لمــانځنې عبــادت تــه

د لـومړي او د دریـیم رکعـت پـه پـای کـې
له سجدو وروسته لږ کېنه په دې ځای کې

دا دویــم رکعــت بــه لنــډ وي لــه اولــه
اوږدول یــې هــم روا دي کلــه کلــه

د دویــم ادا لــومړي غونــدې کــول دي
په ترتیب کې د لومړي په لاره تلـل دي

❋❋❋

## د تلاوت سجدې

چـې سـجدې دي د قـرآن پـه تـلاوت کـې
نــو پــنځلس دي راغلــي روایــت کــې

پیغمبـر نــه پــه مرفــوع کــې دي راغلــي
د حـــدیثو کتـــابو کـــې مـــا لیـــدلي
ښــه یــې زده کــړه درتــه شــمېرم آیاتونــه
مــا لیــدلي د هــر حکــم دلیلونــه
پــه اعـراف کـې آیـة دوه سـوه شـپږم دی
او د رعــد چــې آیــت دی پنځلــسم دی
او نهــه څلوېــښت د نحــل یــې آیــت دی
د اسـراء یـو سـل او اوه پـه روایـت دی
پــه مــریم کــې بیــا اتــه پنځوســم گــوره
حــج اتلــس او هــم اوه اویــادي وروره
بیــا شــپیتم آیــت د ســورت الفرقــان دی
او د نمـل یـې پنځـه ویـشتم اسـان دی
د ســجدې پنځلــسم څلرویــشت صــاد دی
او بیا اوه دېرشـم د فُصِلت هـم یـاد دی
بیــا د نجــم دوه شــپېتم آیــت مطلــق دی
یویــشتم د انــشقاق نــولس علــق دی
چې یې اوري یا یې لـولي پـرې سجده ده
فاصــله کـــه د چـــا لنـــډه کـــه اوږده ده
چــې دعــا ده پــه ســجدې د تــلاوت کــې
هغــه دا ده چــې راغلــې روایــت کــې
"سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهُ وَ شَقَّ سَمْعَهُ وَ بَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَ قُوَّتِهِ".

سجده وکړه زما مخ هغه لوی ذات ته
چې پیدا یې کړ همدغه التفات ته

خپلو کړو او په خپل ځواک یې ځیري کړي
دا غوږونه او دا سترګې د پیاوړي

په سجدې د تلاوت کې چې اودس وي
ضرورنه دی خودا ښه ده که دې وس وي

نه د لاس پورته کول شته نه ولاړه
تشهد دی که سلام دی نشته دواړه

خو تکبیر ښکته کېدو کې هم سنت دی
له سجدې راپاڅېدو کې هم صحت دی

***

# لومړي کېناستل

چې له دوه رکعتو وروسته کېناستل دي
په لومړۍ قعده یادېږي دا کول دي

رکعتونه چې یا درې وي یا څلور وي
دا قعده پکې لومړۍ وي دا یې کور وي

او که نه نو بیا قعده یې آخري ده
لومړۍ نشته او همدغه یې خواري ده

کینې پښې باندې به کېنې په لومړۍ کې
ښۍ به ودروې ښه نېغه دې ګړۍ کې

د ښۍ ګوتې به قبلې ته مخامخ وي
کومې لوري ته چې ستا د لمانځه مخ وي

او ورغـــوي دواړه کېــــده پــــه ورنونــــو
گــوتې شــکته کــړه پــه لــور د زنگنونــو

❋❋❋

# اشــاره

اشـــاره پـــه سُـــبا بـــې گـــوتې ســـنت ده
کېناستو کې په ښي لاس باندې صحت ده
لاس دې مــوټی کــړه او پورتــه ســبابه کــړه
کتــه گوتــه د منځــی گــوتې ســره کــړه
يـــا د کتـــې او منځـــی گـــوتې ســـرونه
سره يوځای کړه کره دې کړه لمونځونـه
يــا دکتــې ســر پــه بــېخ د مــسواکی کــړه
يــا دا کتــه منځــه غــاړه پــه غــړی کــړه
درې صـــورته دي حـــديثو کـــې راغلـــي
د حـــديثو کتـــابو کـــې دي ليکلـــي
مـــسواکی بــه پورتــه وي خــو ځــه مائلــه
ديــن کــې مــه کــوه پوښــتنه لــه جاهلــه
پــــه قعـــدو کـــې لـــه اولـــه تـــر آخـــره
اشـــاره کـــول ســـنت دي مبـــصره
پـــه يـــوائې اِلاالله چـــې اشـــاره کـــړي
بـــې دليلـــه بـــې حجتـــه نـــاکره کـــړي

حرکـــت او خوځـــول د ګـــوتې هـــم شـــته
او ســکون او ودرول د ګـوتې هـم شـته
دليلونــــــــه ددې دواړو برابـــــــــر دي
پــه قــوت کــې دواړه يــو شــان معتبــر دي

***

# تَورُ ک او اخري ناسته

آخــري قعــده چــې کــومې کــې ســلام وي
تــورک تــه دې بايــد ښــه پــوره پــام وي
رکعتونــه چــې هــر څــو وي خــو قعــدې کــې
چې سلام وي تورک وي په همدې کـې
چې څوک بـولي يـې يـوائې څلـوريز کـې
کوم دليل اوحجت نـشته دې تميـز کـې
تـــــورک د کېناســــتلو يــــو صــــورت دی
چــې راغلــی پــه حــديثو کــې ســنت دی
ښــی پښه ودروه او کيڼـه کـړه تـرې لانـدې
د ښی لانـدې نيمـه کيڼـه کـړه دبانـدې
او پـــه کـــيڼ کونـــاټي کېنــه تـــورک شـــو
پـــه ســـنتو بانـــدې دغـــه تمـــسک شـــو
دليلونـــــه مـــــا ليکلـــــي بـــــل کتـــــاب کـــــې
حديثونــه هلتــه وګــوره دې بــاب کــې[1]

---

[1] فقه السنن والآثار وګورئ.

د ســړي ښــځې لمانځــه کــې تــوپير نــشته
هــم تــوپير يــې د صــغير او کبيــر نــشته

# تشهــد

پــه قعــدې کــې تــشهد کــره لوســتل دي
دغــه لانــدې عبــارت پکــې ويــل دي

"اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلاَمُ عَلَيْكَ أَيُّهَاالنَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ اَلسَّلاَمُ عَلَيْنَا وَ عَلَى عِبَادِاللهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ".

کـــه د ژبــــې عبـــادت کـــه د بـــدن دی
يا په مال ښه عبادت د کـوم يـو تـن دی
دغـــه ټـــول کـــره پـــوره د الله حـــق دی
شــريک نــه لــري هغــه لــره مطلــق دی
پېغمبــــره وي پــــه تــــا دې ســــلامونه
رحمتونـــــــــه، د الله برکتونـــــــــه
هــم ســلام دې وي پــه مــونږ مــسلمانانو
د الله پـــــه بنـــــدګانو صـــــالحانو
ګـــــواهي کـــــوم ددې زه موحـــــد يـــــم
لــه الله پرتــه معبــود نــشته عابــد يــم
هــم ګــواه يــم محمــد زمــونږ رهبــر دی
هــم بنــده دی د الله هــم پېغمبــر دی

پــه لــومړۍ قعــده همــدومره کفايــت دی
کــه درود دې کلــه ووايــه صــحت دی
اخـــري کـــې تـــشهد او هـــم درود دی
هــم دعــاوې لــه الله دي چــې معبــود دی
پــه تکبيــر بانــدې دريــيم رکعــت تــه لاړ شــه
دا لاســونه دې کــړه پورتــه او ولاړ شــه
ودريــدل کــه لــه قعــدې کــه لــه رکعــت دي
پــه لاســونو پاڅيــدل پکــې ســنت دي

***

# درود

تـــشهد نـــه وروســـته ووايـــه درود بيـــا
پــه اخــلاص بانــدې راوبلــه معبــود بيــا
د درود الفـــاظ پـــه دې ډول راغلـــي
پــه صــحيحو احــاديثو کــې ليکلــي

"اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَّ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيْمَ وَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَّ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيْمَ وَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ."

ای الله پـــه محمـــد کـــړې رحمتونـــه
او پـــه کـــور د محمـــد هـــم درودونـــه

لکــه تــا چـــې ابــراهیم بانــدې وو کـــړي

او پــه کـــور د ابـــراهیم دې وو لېږلـــي

تــه بــې شــکه ســتایل شــوی یــې خالقــه

د لــوی شــان والا یــې ای زمــونږ رازقــه

ای الله پـــــه محمـــــد برکـــــت کېـــــږدې

او په کــور د محمــد یــې هــم ورپرېــږدې

لکــه تــا چـــې ابــراهیم بانــدې و کـــړی

او پــه کـــور د ابـــراهیم دې و لېږلـــی

تــه بــې شــکه ســتایل شــوی یــې رحیمــه

د لــوی شــان والا الله یــې ای کریمــه.

***

# دعــاوې

بیــا دعـــاوې لـــه درووده وروســـته غـــواړه

عـــاجزي کـــوه الله تـــه او یـــا ژاړه

اوس چې هره دعا غـواړې سـتا اختیـار دی

خـــو یـــواځې عربـــي کـــې اعتبـــار دی

چې روا وي هـر شـی غـواړه سـتا ده خوښـه

دا دعـــا د عبـــادت ده لویـــه نـــښه

خـــو دا لانـــدې دعاگـــانې یـــې مـــسنون دي

برابـــرې د حـــدیثو پـــه قـــانون دي

"اَللّٰهُمَّ إِنِّىْ أعُوْذُبِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَ أَعُوْذُبِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ أَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ وَ أَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ اَللّٰهُمَّ إِنِّىْ أَعُوْذُبِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ".

**ای الله زه پنــــاه غـــــواړم بــــې حـــــسابه**
**پـه تـا بانـدې د دوزخ لـه سـخت عذابـه**
**او پنـــا غــــواړم پـــه تـــا ای مهربانـــه**
**لـــه عـــذاب څخــه د قبــر ای رحمانــه**
**او پنــاه غـــواړم پـــه تـــا بانـــدې حکیمـــه**
**د چــوکړ دجـال فتنــې نــه ای حلیمــه**
**او پنـــا غـــواړم پـــه تـــا بانـــدې رحیمـــه**
**لــه فتنــې د ژونــد او مرگــه ای کریمــه**
**ای الله زه پنـــا غـــــواړم لــــه پیغـــــوره**
**پـه تـا بانـدې د گـونـا، قـرض او لـه پـوره .**

"اَللّٰهُمَّ إِنِّىْ ظَلَمْتُ نَفْسِىْ ظُلْماً كَثِيْراً وَّلاَ يَغْفِرُالذُّنُوْبَ إِلاَّ أَنْتَ فَاغْفِرْلِىْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِىْ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ".

**الله مــا کــړی پـــه ځــان ظلــم بــې شــانه**
**گونـا نـه شـي څـوک بـښلی بـې لـه تانـه**
**لــه خپــل لــوري راتــه وکــړې ښـۀ بــښنه**
**او هــم رحــم پــه مــا وکــړې پیرزوینــه**
**تـــه بـــې شـــکه ډیــر بـــښونکی یـــې خالقـــه**
**خـــورا ډیــر زیـات لـوروونکی یـې رازقـه**

"اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَ مَا أَعْلَنْتُ وَ مَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّیْ أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَ أَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ".

**الله وبـــښي گونـــاوې راتـــه ربـــه**
**چې مې کړي مخکې وروسته بې ادبه**
**او هغــه هــم چــې مــا کــړي کــومې پټــې**
**يــا ښـکاره مــې بــه وهلــي ورتــه متــې**
**او هغه چې تـه پـرې ډېر پـوه يـې لـه مانـه**
**تــه هــم يــې وړانــدې کــوونکی مهربانـه**
**او هــم تــه وروســته کــوونکی يــې قــديره**
**لــه تــا پرتــه بــل معبــود نــشته بـصيره .**
**پــه دې نــورې هــم کــولی شــې ســربېره**
**دعاگـــانې دا خبـــره نـــه کـــړې هيـــره**

# د سلام گرځول

**لــه دې وروســته گرځــول بيــا د ســلام دي**
**ښي او کيڼ لور ته په مينه او په پـام دي**
**الـــــسلام علـــــيکم ورحمـــــة الله**
**الـــــسلام علـــــيکم و رحمـــــة الله**
**هـــم پـــه تاســو دې ســلام ســلامتيا وي**
**هــم لورېنــه د الله دې پــه بيــا بيــا وي**
**لمـــونځ دې بـــشپړ او کـــره شـــو مـــسلمانه**
**پــه دليــل بانــدې پــوره شــو پــه مــا گرانــه**

**اوس مـــسنونې دعاګـــانې او اذکـــار دي**

**چې له فرض لمانځه نه وروسته په هر وار دي**

**چـــې هيئـــت اجتمـــاعي پـــه التـــزام دی**

**او د ځينـــو امامـــانو ورتـــه پـــام دی**

**کـــه لـــه فرضـــونه وي وروســـته يـــا ســـنت نـــه**

**حـــسابيږي ضـــلالت او لـــه بـــدعت نـــه**

***

# دعاوې او اذکار

**چې د فرض لمانځه نه وروسته کوم اذکار دي**

**يـــا دعـــاوې د دليـــل پـــه اعتبـــار دي**

**هغـــه دا دي چـــې راغلـــي پـــه حجـــت دي**

**او صـــحيحو احـــاديثو کـــې ســـنت دي**

**لـــه ســـلامه وروســـته يـــو ځلـــې تکبيـــر دی**

**پـــه اللهُ اکبـــر شـــوی يـــې تعبيـــر دی**

**بيـــا اســـتغفرالله درې ځلـــه ويـــل دي**

**بيـــا پـــه ذکـــر دعـــاء دغـــسې ســـتايل دي**

۱ – "اَللّهُمَّ أَنْتَ السَّلاَمُ وَ مِنْكَ السَّلاَمُ تَبَارَكْتَ يَا ذَاالْجَلاَلِ وَالإِكْرَامْ".

**ای الله ســتا نــوم ســلام دی تــه ســلام يــې**

**لــه عيبونــو نــه ســالم علــی الــدوام يــې**

**لـــه تـــا ده ســـلامتيا برکتنـــاک يـــې**

**د لـوی شـان والا يـې ربـه عزتنـاک يـې.**

٢- "لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَئٍ قَدِيْرٌ. اَللّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلاَ يَنْفَعُ ذَاالْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ".

**لــه الله پرتـــه اِلـــه او معبـــود نـــشته**
**د لمـانځنې وړ خـالق او مـسجود نـشته**
**هغـه يـو دی شـريک نـه لـري احـد دی**
**پاچـايي ثنـا هغـه تـه دي صـمد دی**
**پـه هـر شـي بانـدې برلاسـی دی قـدير دی**
**هم بصير دی، هم عليم دی، هم خبير دی**
**نـــشته کـــوم منـــع کـــوونکی بنـــدوونکی**
**چـې تـا ورکـړل د هغـو ايـساروونکی**
**او نـه کـوم منـع کـوونکی شـته خالقـه**
**د هغـو چـې منـع کـړي تـا رازقـه**
**او نـه ګټـه رسـولی شـي بـډای تـه**
**بډايتوب يې ستا نيولو نه کـوم ځـای تـه .**

٣- "اَللّهُمَّ أَعِنِّيْ عَلَى ذِكْرِكَ وَ شُكْرِكَ وَ حُسْنِ عِبَادَتِكَ".

**الله وکـړې زمـا مرسـته سـتا پـه ذکـر**
**سـتا پـه ښـکلي عبـادت او سـتا پـه شـکر.**

٤- "لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَئٍ قَدِيْرٌ لاَ حَوْلَ وَ لاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَ لاَ نَعْبُدُ إِلاَّ إِيَّاهُ.

لَهُ النِّعْمَةُ وَ لَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ لاَ إِلهَ إِلاَّ اللّٰهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَ لَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنْ".

**لــه الله پرتــه اِلٰــه او معبــود نــشته**

**د لمـانځنې وړ خـالق او مـسجود نـشته**

**هغـه يـو دی شـريک نـه لـري احـد دی**

**پاچـايي ثنـا هغـه تـه دي صـمد دی**

**په هـر شـي بانـدې برلاسـی دی، قـدير دی**

**هم بصير دی، هم علـيم دی، هـم خبيـر دی**

**نــشته منــع اوړيــدل لــه گنــاهونو**

**او نـه ځـواک پـه عبـادت او طـاعتونو**

**خـو دا ټـول بـه د الله پـه مرسـته کېـږي**

**بـل معبـود لـه الله پرتـه نـه پنځيـږي**

**مـونږ يـواځې همغـه تـه عبـادت کـړو**

**اعتـراف يـې پـه ښـېگړه او نعمـت کـړو**

**دي يــواځې د هغــه ښــکلې ســتاينې**

**مونږ منـوو هغـه بـې شـک او بـې پوښـتنې**

**لــه هغــه پرتــه اِلٰــه او معبــود نــشته**

**د لمـانځنې وړ خـالق او مـسجود نـشته**

**د هغــه نــږه طاعــت او عبــادت کــړو**

**که يې بد گڼـي کـافر هـم دا غيـرت کـړو.**

۵- "اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ أَعُوْذُبِكَ

مِنْ أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ أَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ عَذَابَ الْقَبْرِ".

**الله تــا بانـــدې پنــا غـــوارم خالقـــه**

**بې زړه تـوب، بخـل، بـد عمـر نـه رازقـه**

**او پنـا غـــوارم پـــه تـا لـــه هـــر ازمېـــښته**

**د دنيـا، مـا کـړه جـلا لـه دغـه سلېـښته**

**لـــه هـــر شـــره پنـــا غوارمـــه وهابـــه**

**هـــم پنـــا غـــوارم د قبـــر لـــه عذابـــه .**

٦ـ "اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَ تَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَ حُبَّ الْمَسَاكِيْنِ وَ إِذَا أَرَدْتَّ بِقَوْمٍ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِيْ إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ".

**اى الله زه لـــه تـــا غوارمـــه چـــې وكـــړم**

**ښـه کارونـه او بـد پرېږدمـه بـد نـه کـړم**

**او هـــم غـــوارم بـــې وزلانـــو ســـره مينـــه**

**پاكـــه ســـاكه تـــا لپـــاره تكـــه ســـپينه**

**كـــه غوښـــتل دې پـــه كـــوم قـــوم عذابونـــه**

**مـــا دروا خلـــه بـــې عذابـــه نـــا مفتونـــه .**

**درې دېـرش ځلـه بيـا "سُـبحان الله" ووايـه**

**درې دېرش ځله هـم "الحمـدلله" سـتايه**

**بيـــا څلـــور دېـــرش ځلـــه "الله اکبـــر" دى**

**يـا يـې درې دېـرش ځلـه دا هـم برابـر دى**

**كـه دې ووايـه تكبيـر هـم درې دېـرش ځلـه**

**بيـــا دا لانـــدې ذكـــر ووايـــه پخپلـــه:**

لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَئٍ قَدِيْرٌ".

بيــا ويــل د آخــري دوه ســورتونو
د "فلـق" او د "النـاس" دي پـه نومونـو
د سهار ماښام نـه وروسـته چـې لا ناسـت يـې
د لمانځه پـه هيئـت هغـسې لا راسـت يـې
د لمانځـه هيئـت لا مـه بـدلوه وايـه
دغـه لانـدې ذکـر لـس کرتـه سـتايه :

"لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ يُحْيِيْ وَ يُمِيْتُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَئٍ قَدِيْرٌ".

لـه الله پرتـه الٰـه او معبـود نـشته
د لمـانځنې وړ خـالق او مـسجود نـشته
هغـه يـو دی شـريک نـه لـري احـد دی
پاچـايي ثنـا هغـه تـه دي صـمد دی
د هغـه پـه لاس کـې خيـر دی او ښـېګړې
همغه ژوندي کـول کـړي بـې لـه سـتړې
مـړه کـول هـم همغـه کـوي بـصير دی
پـه هـر شـي بانـدې برلاسـی دی قـدير دی
لـه سـهار او لـه ماښـام نـه وروسـته وايـه
چې له فرضو تللی نـه يـې لـه دې ځايـه

پــوره اوه ځــل دغــه ووايــه ثــواب دی
چې راغلی یو حدیث په دغه باب دی

" اَللّٰهُمَّ أَجِرْنِیْ مِنَ النَّارِ".

ای الله ماتـــه پنـــا راکـــړې لـــه اوره
مـا محفـوظ کـړې د دوزخ لـه بـد پيغـوره .

❋❋❋

# د فرض لمونځونو رکعتونه

د پنځـــه وختـــه د فرضـــو رکعتونـــه
اول زده کـــړه بيـــا نفلونـــه ســـنتونه
د ســـــهار دوه رکعتونـــــه معتبـــــر دي
او څلـور څلـور ماپښين او مـازيگر دي[1]
درې ماښـام دي او څلــور د ماسـختن دي
دا په خپل کور او کاله په خپل وطن دي

❋❋❋

# د سنتو رکعتونه

ســنت دوه ډولــه دي يــو يــې رواتــب دي
زوائــد يــې کلــه کلــه پــه طالــب دي
ســـــنتونه نوافـــــل تطوعـــــات دي
چــې کــول يــې ثوابونــه درجــات دي
رواتبــو کــې تاکيــد او ټــه ټينگــار دی
زوائــد ورڅخــه لانــدې اعتبــار دی

[1] ماپښين : ماسپښين (د کندهار او خواوشا سيمو لهجه ده.)

د سـنتو پرېـښودل څـه ګـونـا نـه ده
خـو پـړه ده او پرېـښودل يـې رښـا نـه ده
د سـنتو پرېـښودل مناسـب نـه دي
لـه ثـواب محرومېـدل څـه جالـب نـه دي
د سـنتو رواتبـو رکعتونـه
پـه دې لانـدې ډول وګـڼـه لمونځونـه
د سـهار فرضـونه مخکـې دوه رکعتـه
سنت وکړه چې دې رب کړي نېک سيرته
ماسپـښين فرضـو نـه مخکـې هـم څلـور دي
او له فرضو څخه وروسته بيا دوه نور دي
او دوه وروسـته لـه ماښـامه ادا کيـږي
او دوه وروسـته ماسـختن نـه حـسابيږي
ځينـې فـرق د رواتـب زوائـد نـه کـړي
او کـول د ټولـو يـو ډول او ښـه کـړي
زوائـد لـه مـازيګر مخکـې څلـور دي
له ماښام مخکې دوه خوښه نه په زور دي
ماسـختن فرضـو نـه مخکـې څلـور کيـږي
ثوابونـه او اجرونـه پـرې زيـاتيږي
هـر اذان او اِقامـت پـه مـنځ کـې دوه دي
په اخـلاص او پـه اميـد او پـه توبـه دي
ماسپـښين کـې سـنت څـو ډولـه روا دي
څلـور مخکـې څلـور وروسـته هـم ادا دي

او دوه مخکـې او دوه وروسـته هـم راغلـي
مـوږ حـديثو كـې ليـدلي او لوسـتلي

***

# نور مسنون نفلونه

د جومـات تحِيَـه دوه رکعتـه کېـږي
کېناسـتو نـه مخکـې خامخـا يـادېږي
د اودس تحيـه هـم دي دوه رکعتـه
ثوابونـه دي کـوه يـې لـه حجتـه
دوه هـم وروسـته لـه طوافـه د کعبـې دي
ځان دې وژغوره دوزخ نه چې لمبې دي
دوه هـم کلـه چـې راسـتون شـې لـه سـفره
په جومات کـې؛ چـې ماندينـه شـي خبره
دوه د څاښت په وخت کې کېږي يا څلور دي
په جومات کې يا سفر کې يـا پـه کـور دي
چـې لمـر وخېـژي يـوه نېـزه رالـوړ شـي
دغـه وخـت يـې د ادا لپـاره وړ شـي
تـر زوالـه دا ټـول وخـت ددې عمـل دی
خو زوال څخه لږ مخکې يې افضل دی
د اشـراق او د ضـحیٰ چـې کـوم تـوپير دی
دا د يـو مهـال پـه دوه ډولـه تعبيـر دی
په توپير کې روايات يې ټول ضعيف دي
عبـادات د دليلونـو پـه توقيـف دي

ســــنتونه زوائـــد کـــه رواتـــب دي
او یــا نـــور مـــسنون نفلونـــه مناســـب دي
نــه قــضا لــري چــې پــاتې شــي لــه چانــه
نــه گونــا لــري چــې ونــه شــي لــه تانــه
د ســــهار ســـنت او وتـــر راگرځېـــږي
خــو کــه ویــې نــه کــړل نــه گوناهگــارېږي
خــو ســتي او بــې غــوري پکــې ونــه کــړې
روغ یې وکړه او سوري پکـې ونـه کـړې
رواتـــب او زوائـــد کـــوه ثـــواب دی
ســستي مــه کــوه لیــدلی مــا کتــاب دی

❋❋❋

# وتر، تهجد او تراویح

وتــر طــاق تــه د هــر شــي وایــي لغــت کــې
او د شپې نفلـو تـه وایـي پـه سـنت کـې
وتــر فــرض او واجــب نــه دي او ســنت دي
خو تاکید پکـې راغلـی دي صـحت دي
پـــه کالـــه او پـــه حـــضر کـــې ادا کېـــږي
پـه صـحرا او پـه سـفر کـې ادا کېـږي
چــې پــه فرضــو دي ســربېره کــوم نفلونــه
او د شــپې کېــږي دا ډېــر لــري نومونــه
تهجـــد قیـــام اللیـــل، تطوعـــات دي
رمــضان کــې تــراویح دي باقیــات دي

ددې ټولـو نـوم پـه وتـرو هـم يـادېږي
فـرض نـه وروسـته تـر سهاره ادا کېـږي

خـو تـر ټولـو چـې دي غـوره او بهتـر دی
اخـري شـپه پيـشنمي وخـت د سـحر دی

وتـر يـو رکعـت راغلـی هـم حجـت کـې
درې، پنځه، اوه او نهه هم په سنت کې

تـــر يوولـــسو او ديارلـــسو راغلـــي
د حـــديثو کتـــابو کـــې دي ليکلـــي

درې پـه يوځـای هـم راغلـي او روا دي
خـو اولـه قعـده نـه لـري همـدا دي

او دوه يوځـای او يـو بېـل شـې هـم کـولی
د هـر يـو ډول حجـت دی مـا ليـدلی

ددې نـــورو ښـــه او غـــوره لاره دا ده
چـې حـديثو کـې راغلـې بـرملا ده

دوه دوه وکـړه پـه آخـر کـې يـو رکعـت دی
پـه حـديثو کـې راغلـی دا صـفت دی

يا دوه دوه کوه اخـر کـې يـې بيـا درې دي
چې لمونځ نه کوي، بې دينه، بې اسرې دي

تـر خپـل وسـه رکعتونـه يـې روا دي
په دليـل او پـه حجـت او بـې سـودا دي

دغـه وتـر، تـراوېح، قيـام الليـل دي
چې يې نه کوي اخته په وير او ويـل دي

بــې لـــه وتـــرو ركعتونـــه يـــې اتـــه دي
په دليل كې نه شل، دېرش او نه شپېته دي
او يـــوولس يـــې لـــه وتـــرو ســـره شـــمېره
دوه سـنتو سـره ديـارلس دي بـې هېـره
پـــه صـــحيحو احـــاديثو كـــې همـــدا دي
روايات يې نور ضعيف او بې لـه سـا دي
تـــراوېح، تهجـــد هـــم پـــه جماعـــت شـــي
خو بې جمې كور كې ډېر پـه فضيلت شي
تـــراوېح، تهجـــد بېـــل او جـــلا نـــه دي
دوه نومونه د يو شـي دي، جـدا نـه دي
چې هر څومره وي اوږده او پـه ترتيـب وي
همغـــومره ثوابونـــه يـــې نـــصيب وي
پـــه ترتـــر او پـــه زرزر هـــسې خـــواري ده
ځـان بـې ځايـه كـړول دي بـې لاري ده
نـــه ختمونـــه پكـــې شـــته او نـــه ضـــرور دي
نـه د خـتم پـه كولـو څـوك مجبـور دي
د يـــوې شـــپې شـــبينه پكـــې هـــم نـــشته
پټاســـې او تلبينـــه پكـــې هـــم نـــشته
پـــه پيـــسو بانـــدې ختمونـــه نـــاروا دي
پـــه پيـــسو عبادتونـــه نـــاروا دي
قـرآن خپلـه ډېـر ډېـر لولـه چـې ثـواب دى
ډېر ختمونـه يـې كـوه د رب كتـاب دى

تــراويح او پــه نفلونــو كــې يــې وايــه
كور، جومات او په لمونځونو كې يې وايه
پــه تجويــد پــه غــور فكــر تــلاوت كــړه
ځـان خبـر يـې پـه معنـا او حـلاوت كـړه

***

# د قنوت دعاء

چــې پــه وتــرو كــې دعــا ده او قنــوت دى
او راغلـى يـې حـديثو كـې ثبـوت دى
پـه مرفـوع حـديث كـې داسـې دى راغلـى
د حـــديثو كتـــابو كـــې مـــونږ ليـــدلى

"اَللّٰهُمَّ اهْدِنِىْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَ عَافِنِىْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَ تَوَلَّنِىْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَ بَارِكْ لِىْ فِيْمِا أَعْطَيْتَ وَ قِنِىْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَإِنَّكَ تَقْضِىْ وَلاَ يُقْضَى عَلَيْكَ إِنَّهُ لاَ يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ وَلاَ يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَ تَعَالَيْتَ نَسْتَغْفِرُكَ وَ نَتُوْبُ إِلَيْكَ".

الله ماتـــــه هـــــدايت وكــــــړه خالقـــــه
او هـــم ماتــــه عافيـــت راكـــړه رازقـــه
تـــه پـــه مـــا شـــې مهربانـــه اى رحيمـــه
مـــا لـــه هغـــو څخـــه وګڼـــه كريمـــه
چــې تــا كــړى هــدايت دى و هغــوى تــه
تــا وركــړى عافيــت دى و هغــوى تــه

ســـتا دوســـتي سرپرســـتي غـــواړم ودوده
مـــا لـــه هغـــو څخـــه وګڼـــه معبـــوده
چـې تـا کـړې لـه هغـوی سـره دوسـتي ده
او تـــا کـــړې د هغـــوی سرپرســـتي ده
برکــت راتــه پــه هغــو کــې عطــا کــړه
چـې روزي دې لـه کرمـه راتـه راکـړه
د هغـــه شـــر نـــه مـــې وســـاته رحمانـــه
چـــې تـــا کـــړې فیـــصله ده مهربانـــه
ځکـه تـه پخپلـه پریکـړې کـړې احـد یـې
ستا خلاف فیصلې نـه کیـږي، صـمد یـې
تـا چـې چـا سـره دوسـتي کـړې کریمـه
هغــه نــه خــوارېږي هیڅکلــه حکیمــه
او چـــې چـــا ســـره دې کـــړې دښـــمني ده
هغــه نــه مــومي عــزت دا یقینـــي ده
زمـــونږ ربـــه همـــدا تـــه برکتنـــاک یـــې
او ډېر پورته، لوړ اوچت سپیڅلی پاک یـې
مـــونږ بـښنه لــه تــا غـــواړو ګوناهګـــار یـــو
او مـــونږ تاتـــه راســـتنېږو توبـــه ګـــار یـــو.
چـې مرسـل یـو روایـت دی کـوم راغلـی
مراســیل ابـــو داود کـــې دی لیکلـــی

پــه هغــه کــې قنــوت داســې روايــت دی
خــو ضـعيف دغـه اثـر پـه درايـت دی

اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَ نَسْتَغْفِرُكَ وَ نُؤْمِنُ بِكَ وَ نَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَ نُثْنِیْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ وَ نَشْكُرُكَ وَ لاَ نَكْفُرُكَ وَ نَخْلَعُ وَ نَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ. اَللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَ لَكَ نُصَلِّیْ وَ إِلَيْكَ نَسْعَى وَ نَسْجُدُ وَ نَحْفِدُ وَ نَرْجُوْا رَحْمَتَكَ وَ نَخْشَى عَذَابَكَ إِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ.

ای الله مــــونږه مــــدد غــــواړو لــــه تانــــه
او بــــښنه لــــه تــــا غــــواړو مهربانــــه
او پــه تــا ايمــان راوړو پــه تــا ځــان ســپارو
او پــه تــا د خيــر ثنــا وايــو ځــان ځــارو
مــونږ ســتا شــکر کــوو ســتا ناشــکري نــه کړو
چې لـه تـا سـر غړوي هغـه بـه څـه کړو
مــونږ پرېــږدو هغــه چــې ســر غــړوي تانــه
مونږ يـوائې سـتا لمانځنـه کړو رحمانـه
مــونږ يــوائې تاتــه لمــونځ کــوو معبــوده
تاتــه هڅــې او ســجدې کــوو مــسجوده
ســتا طاعــت او عبــادت تــه مــونږ تيــار يــو
ستا رحمت ته هيله مند يو، ستا پـه لار يـو
ســتا عــذاب څخــه وېرېږو شــان دې لــوړ دی
ســـتا عــذاب د کــافرانو ســره وړ دی.

د قنــوت پــه دعاگــانو کــې اختيــار دی

چې روا دعا کوي هر څوک مختار دی

دا د وتــرو آخــري رکعــت کــې وايــه

هيڅ کار مه کړه بې دليله او بې ځايه

قرائـت نـه چـې فـارغ شـې لوستل کېږي

لـه رکـوع څخـه دا مخکـې جـوتيږي

نه تکبير شته، نه د لاس پورتـه کـول شته

نـه قنـوت کـې د لاسـونو لـوړول شـته

***

# وتر په آخر کې

وتــر ټولــو نــه اخــر کــې ادا کېــږي

تهجــدو پــه اخــر کــې حــسابيږي

تهجــد لــه وتــرو وروســته کــول نــشته

بـې دليلـه د خپـل ځـان کـړول نـشته

کـه لـه شـپې نـه وتـر پـاتې شـو سـبا تـه

تــر زوالــه قــضايي راوړه رڼــا تــه

***

# نازله قنوت

نازلــه وايــي څــه پيــښې مــصيبت تــه

چـې راپيـښه وي زمـونږه دې امـت تـه

لکـه رنـگ چـې اسـلامي لـوی خلافـت شـو

او نـازل پـه مـونږه ټولـو لـوی آفـت شـو

يا څـوک بلوسـه او يرغـل پـه اسـلام وکـړي

د اسلام په خاوره گـوابښ ناتمـام وکـړي

يـا پـه لاس د کـافرانو څـوک اسـير شـي

مؤمنــان د دښــمنانو پــه زنځيــر شــي

په دې وخـت کـې نازلـه قنـوت لوسـتل دي

فرض لمانځه کې يې په جمه کې بلـل دي

آخـري رکعـت کـې وروسـته لـه رکـوع نـه

قنـوت ووايـه خبـر شـه دې شـروع نـه

پــه پنځــه وختــه لمانځــه کــې نازلــه دی

پـه جهـري او پـه سـري کـې فيـصله دی

دا پنځــه وختــه پــه جهــر لوســتل کيــږي

پــه زاريــو پــاک الله رابلــل کيــږي

امـام وايــي بــه قنـوت پــه عــاجزۍ کــې

مقتديان به آمـين وايـي بې وسـۍ کـې

پورتــه کــړي بــه وي ټولــو خپــل لاســونه

پـه قنـوت بـه ښايـسته کـړي خپـل لمونځونـه

پــه قنــوت کــې دعاگــانې کــوه ډېــرې

پــه آثــارو کــې راغلــو هــم ســربېرې

دا د وتـرو قنـوت هـم پکـې لوسـتی شـي

نـور لفظونـه مـنظم پکـې لوسـتی شـي

د بېلگــې پــه توگــه څــو دعــاوې دا دي

چې ښې پـاکې د اخـلاص او د صـفا دي

اَللّهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُوْلُ بِهِ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ مَعَاصِيْكَ وَ مِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهِ جَنَّتَكَ وَ مِنَ الْيَقِيْنِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مُصِيْبَاتِ الدُّنْيَا وَ مَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا وَ أَبْصَارِنَا وَ قُوَّاتِنَا مَا أَحْيَيْتَنَا وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلَى مَنْ ظَلَمَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى مَـــنْ عَادَانَا، اَللّهُمَّ لاَ تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ هَمِّنَا وَلاَ مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلاَ تُـــسَلِّطْ عَلَيْنَـــا مَـــنْ لاَّ يَرْحَمُنَا، اَللّهُمَّ انْصُرْنَا وَلاَ تَنْصُرْ عَلَيْنَا وَامْكُرْلَنَا وَ لاَ تَمْكُرْ عَلَيْنَا وَ زِدْنَا وَلاَ تَنْقُـــصْنَا وَآثِرْنَا وَلاَ تُؤْثِرْ عَلَيْنَا.

اَللّهُمَّ رَحْمَتَكَ نَرْجُوْا فَلاَ تَكِلْنَا إِلَى أَنْفُسِنَا أَوْ إِلَى أَحَدٍ مِّنْ خَلْقِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ وَأَصْلِحْ لَنَا شَأْنَناَ كُلَّهُ.

اَللّهُمَّ اسْتُرْعَوْرَاتِنَا وَءآمِنْ رَوْعَاتِنَا، اَللّهُمَّ انْصُرِ الإِسْلاَمَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَاخْذُلِ الْكَفَرَةَ وَالْمُشْرِكِيْنَ، اَللّهُمَّ انْصُرِ الْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ كُلِّ مَكَانٍ وَاجْعَلْنَا مِنْهُمْ، وَاخْذُلِ الْكَفَرَةَ وَ مَنْ يُّوَالِيْهِمْ فِيْ كُلِّ مَكَانٍ وَ لاَ تَجْعَلْنَا مِنْهُمْ، اَللّهُمَّ عَلَيْكَ بِأَمْرِيْكَـــا وَ مُتَّحِـــدِيْهَا وَ أَعْوَانِهَا وَ جَوَاسِيْسِهَا وَ عُمَلاَئِهَا، اَللّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِيْ نُحُوْرِهِمْ وَ نَعُوْذُبِـــكَ مِـــنْ شُرُوْرِهِمْ، اَللّهُمَّ شَتِّتْ شَمْلَهُمْ وَ فَرِّقْ جَمْعَهُمْ وَ زَلْزِلْ أَقْدَامَهُمْ وَ خَرِّبْ تَدَابِيْرَهُمْ، وَ مَزِّقْهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ، وَخُذْهُمْ أَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرْ، اَللّهُمَّ احْصِهِمْ عَدَداً وَاقْتُلْهُمْ بَدَداً وَلاَ تُبْقِ مِنْهُمْ أَحَداً.

اَللّهُمَّ انْزِلْ بِهِمْ بَأْسَكَ الَّذِىْ لاَ تَرُدُّهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ وَأَنْجِنَا مِنْ بَيْنِهِمْ سَـــالِمِيْنَ غَانِمِيْنَ. اَللّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَيْهِمْ. اَللّهُمَّ انْجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ، اَللّهُـــمَّ فُكَّ أَسْرَ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّهُمَّ فُكَّ أَسْرَ الْمُجَاهِدِيْنْ. اَللّهُمَّ عَلَيْكَ بِطَوَاغِيْـــتِ الْعَـــرَبِ وَالْعَجَمْ. اَللّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ بِأَنَّنَا نَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لاَ إِلهَ إِلاَّ أَنْتَ الأَحَـــدُ الـــصَّمَدُ الَّذِىْ لَمْ يَلِدْ وَ لَمْ يُوْلَدْ وَ لَمْ يَكَنْ لَّهُ كُفُواً أَحَدْ. وَ صَلىَّ اللهُ عَلَى النَّبِيِّ مُحَمَّدْ.

" ای الله زمـــونږه برخـــه راتـــه راکـــړه
ستا له وېرې مـونږ تـه هغـومره عطا کـړه
چې پرده کړې تـه هغـه زمـونږ پـه منځ کـې
او د ســر د غړولــو پــه بــد پــنځ کــې
او هـم راکـړې دومـره برخـه لـه طاعـت سـتا
چې روزي کړې په هغې مونږ ته جنت ستا
او هــم راکــړې دومــره برخــه لــه یقینــه
چــې اسـان مـصیبتونه کـړې پــه مینـه
مــونږ تــه گټــه راکــړې بــې لــه تــاوانونو
پـه غوږونـو زمـونږ سـترگو او ځواکونـو
چې ترڅو مونږه ژوندي پرېږدې دا راکړې
او وارث یې مونږ نه جوړ کړې مونږ رضا کـړې
او زمونږ غچ زمـونږ زیـان پـه هغـه چـا کـړې
چې په مونږ یې ظلم کړی دا رسوا کـړې
زمـونږ مرسـته مـدد وکـړې هغـوی بانـدې
چې یې کړې دښمني مونږ سره وړانـدې
ای الله دا دنیـا نــه کـړې لـوی مقـصد مـو
او د پـوهې علـم نـه کـړې دغـه حـد مـو
او پـه مـونږ مـسلط نـه کـړې چـې انـسان وي
خو پـه مـونږه رحـم نـه کـړي ظالمـان وي
ای الله زمـــونږه مرســـته مـــدد وکـــړې
او زمونږ خلاف یـې چـا سـره ونـه کـړې

او تــدبير دې مــونږ لپــاره کــړې نــصيره
او زمونږ خلاف يې نه کړې ای بصيره
مونږه زيات کړې کم مو نه کړې مونږ کړې غوره
او په مونږه غوره نه کړې څوک له بره
ای الله مونږ ستا رحمت ته هيله من يوو
مونږ زمونږ ځانو ته مه سپاره غمجن يو
ستا مخلوق کې مو هم هيچا ته مه سپاره
لکــه رپ د ســترګې ای زمــونږ بــاداره
ټــول کارونــه او حالونــه زمــونږ سم کــړه
پټ رازونه زمونږ پټ وېرې مو تم کړه
دا اسـلام مـسلمانان پـه مرسـتې ښـاد کـړه
کــافران او مــشرکان مــات او بربــاد کــړه
ای الله چــې پــه هرځــای مجاهــدين وي
لــوړوونکي د اســلام د ښــکلي ديــن وي
مرســـته وکـــړې لـــه هغـــوی ســـره نـــصيره
مـونږ هغـوی سـره ملګـري کـړې بـصيره
کــافران او ټــول ملګــري يــې ناکــام کــړې
مونږ ونه ګڼې هغوی څخه مونږ عام کړې
ای الله دا امريکـــا او مرســـتيالان يـــې
دا ملګري، جاسوسان او ګوډاګيان يې
ټــول ناکــام تبــا وبــا مــات او رســوا کــړې
د هغـــوی مـــاتې او شـــرم بـــرملا کـــړې

د هغــوى مخــه پــه تــا نيــسو رحمانــه
لــه شــرونو يــې پنــا غــواړو لــه تانــه
اى الله شان او شوکت يې مات او رنگ کړې
او يووالى يې جلا او جنگ په جنگ کړې
قدمونــه يــې لــړزان تــدبير خــراب کــړې
او ټوټه ټوټـه شلېدلي يـې عـذاب کـړې
الله ونيــسې دوى ټينــگ او ســخت اى ربــه
کــافران دي، مــشرکان دي، بــې ادبــه
پـــه نيولـــو د غالـــب ذات اى خالقـــه
د برلاســـي مقتـــدر ذات اى رازقـــه
الله وشـــمېره دوى يـــو يـــو اى خبيـــره
او دوى ووژنـــه پـــه گڼـــه اى قـــديره
له دوى هيڅ يو کس پرې نه ږدې په دې ځمکه
چې نامه يې شي ذليلـه خـواره سپکه
کــړې هغــه عــذاب نــازل پــه کــافرانو
چــې يــې نــه ستنوې تــه لــه مجرمـانو
مــونږ د دوى لــه منځــه وژغــوره رحيمــه
روغ رمــټ لــه غنيمــت ســره کريمــه
الله سخت کړه هلاکت ستا پـه دوى بانـدې
الله وژغـــوره کمـــزوري مؤمنـــان دې
اى الله مـــسلمانان لـــه بنـــد ازاد کـــړه
او ازاد مجاهـدين بنـديان او ښـاد کـړه

د عربـــو طاغوتـــان هـــلاک بربـــاد کـــړه
د عجمــو طاغوتــان هــلاک ناښــاد کــړه
الله غــواړو مــونږ لــه تــا، مــونږ عــاجزان يــو
وســيله نيــسو ددې چــې گواهــان يــو
تـــه الله يـــې لـــه تـــا پرتـــه معبـــود نـــشته
ته يـو ذات يـې لـه تـا پرتـه مـسجود نـشته
تـه بـې نيـاز يـې زمـونږ ربـه هغـه ذات يـې
چې يې نه دي زېږولـي بـې زوزات يـې
او نـــه هغـــه زېږېـــدلی تـــه غنـــي يـــې
هيڅوک سيال درسره نشته، مـستغني يـې
رحمتونـــــــه د الله دې وي احـــــــد دی
پيغمبر باندې چې نـوم يـې محمـد دی"

***

# د مسبوق احکام

مـسبوق هغـه چاتـه وايـي چـې تـرې تللـی
وي څه لمونځ جمې ته وروسته وي راغلـی
جماعـــت تـــه پـــه ارام وقـــار راتلـــل دي
نـه پـه بيـړه، بيـړه منـډې راوهـل دي
چې هرځای کې امام گېر کړې ورشريک شـه
ددې نورو لمونځ کوونکيو په سرليک شه
کـه رکـوع وي، کـه سجده وي، ورسـره شـه
انتظـار مـه کـړه د اجـر پـه اسـره شـه

پــه ولاړه فاتحـــه کـــه دې پـــوره کـــړه
چــې امــام وي لا ولاړ او تــا کــره کــړه
دا رکعــت پــه رکعتونــو کــې حــساب دی
پـه دلیـل او پـه حجـت او پـه کتـاب دی
خــو رکــوع ســجده رکعــت نــه ګڼــل کېــږي
او کــول يــې پــه ثــواب کــې حــسابېږي
د رکــوع مــدرک د رکعــت نــه دی
چې مدرک بولي ولاړ په حجت نـه دی
چې امام کله ښـي کيـن لـور تـه سـلام کړي
او خپل لمونځ کره پوره او ښه تمام کړي
ســلام مــه ګرځــوه پاڅــه بيــا ودرېــږه
د لمانځـــه پـــوره کولـــو تـــه پـــاڅېږه
هغـه پـاتې تللـی لمـونځ ځانتـه پـوره کـړه
پـه احکـامو او ارکـانو يـې کـره کـړه
تللـی لمـونځ اوس پـه دوه ډولـه ادا کېـږي
دواړه ډولـه پـه صـحت کـې حـسابېږي
پـه حـديث کـې پـه دوه ډولـه عبـارت دی
او صـحيح هـر روايـت پـه درايـت دی
يــو "مــا فاتــک فاقــضوا" دی هــم راغلــی
بـل حـديث کـې "اتمـوا" دی هـم راغلـی
د لـومړي حـديث "فاقـضوا" معنـا بـه دا وي
چـــې ادا وي همغـــسې بـــه قـــضا وي

چـــې تـــا ونيـــول هغـــه دې ورو‌ســـتني دي
او چـــې تللـــي دي هغـه دې لـومړني دي
نــو کــه راغلــې دوه دې ونيــول دوه تللــي
نــو دوه تللــي بيــا پــه ډکــو کــې ګڼلــي
کــه دې يــو رکعــت راونيــو نــور قــضا وو
هسې نه چې ستا پـه خوښـه پـه رضا وو
نــو چــې پاڅېــدې دا دوه رکعتــه ډک کــړه
او قعدې نه وروسته يو تش او بې شک کړه
کــه ماښــام کــې دې يــو ونيــو دوه وو تلــي
نـو دا دوه بيـا ډک پـه يـوځـای دي ګڼلـي
پــه همــدې ترتيــب يــې نــور دي صــورتونه
پـــه قيـــاس ددې يـــې کېـــږي رکعتونـــه
د دويـــم حـــديث "اتمُـــواْ" معنـــا دا ده
چې اتمـام يـې پـه اخـر بانـدې ادا ده
اوس پـــه عکـــس د اول دغـــه صـــورت دی
د لـومړي غونـدې دا هـم روا صـحت دی
چـــې تـــا ونيـــول هغـــه دې لـــومړني دي
او چې تللـي دي هغـه دې وروسـتني دي
نــو کــه راغلــې دوه دې ونيــول دوه تللــي
نــو دوه تللــي بيــا پــه تــشو کــې ګڼلــي
کــه دې يــو رکعــت راونيــو نــور قــضا وو
هسې نـه چـې سـتا پـه خوښـه پـه رضا وو
نــو چــې پاڅېــدې يــو ډک وکــړه بيــا کېنــه
او دوه تش وکړه چې پاڅې له قعدې نـه

کـه ماښـام کـې دې یـو ونیـو دوه وو تللـي
نو یو بل وکړه چې دوه شـي ډک ګڼلـي
بیـا لـومړی قعـدې نـه پاځـه یـو تـش وکـړه
لمونځ کره پـوره ادا شـو سـودا مـه کـړه
صـورتونه نـور پـه دې صـورت قیـاس دي
په ښه نیت او ښه ترتیب او ښه احساس دي

# سهـــوه

چـــې د ســـهوې صـــورتونه د لمانځـــه دي
ښـه یـې وګڼـه دا ټـول واړه پنځـه دي
لـومړی دا چـې لـومړنی قعـده شـي هېـره
او په لار کې درته یاد شي مه کـړه وېـره
کېناســتو تــه کــه نـږدې وې نـــو زر کېنــه
او په دې وخت کې پانه څې له قعدې نه
کـــه ولاړې تـــه نـــږدې وې نـــو ودرېـــږه
بېرته مـه کېنـه پـه دې وخـت کـې پـاڅېږه
او دویم صورت د شک دی چې حېران شـې
چې پوره دي او که کم دي او پرېشان شې
چې په کومې خوا دې زیـات قـوي بـاور وي
همغـــه بـــه پـــه ګڼلـــو معتبـــر وي
خـــو کـــه دواړه طرفونـــه برابـــر وو
لږ او ډېر یې سره شک کـې سـر پـه سـر وو

بیـا پـه کمـو فیـصله ده چـې پـوره شـي
پـه بـاور او پـه یقـین بانـدې کـره شـي
اوس د سـهوې سـجدې دواړو صـورتو کـې
لـه سـلامه مخکـې کېږي پـه وتـو کـې
تـــشهد، درود، دعـــاوې بـــه پـــوره کـــړې
له سلام نه مخکې لمونځ بـه ټـول کـره کړې
اوس به دوه سجدې کـوې سـلام نـه مخکـې
د لمانځـه نـه د وتـو تمـام نـه مخکـې
لـه سـجدو نـه چـې راپـاڅې متـصل بیـا
سلام وګرځوه لمونځ دې شو حاصـل بیـا
درېیم دا دی چې په سهوه زیات رکعت شـي
څلورم منځ کې سلام په دې صورت شـي
چې اتمام نـه مخکـې ګرځـوي سـلام څـوک
او سلام نه وروسته وکړي ورتـه پـام څـوک
که په دې وخـت کـې یـې کـړې وي خبـرې
یـا وتلـی وي جوماتـه څخـه لـرې
چې رایاد یې شو نو لمونځ به خپل پوره کړي
هغـه پـاتې بـه لـه خپـل ځایـه کـره کـړي
اسـتیناف او د ټـول لمـونځ ګرځـول نـشته
بـې دلیلـه مـسألو پـسې تلـل نـشته
دا درېـیم او څلـورم چـې کـوم صـورت دی
اوس د سهوې د سجدو یې دا صفت دی

چې سلام نـه وروسـته دوه سجدې کـره کـړه
او خپل لمونځ دې په همدې ترتيب پوره کړه
پـه دريـم صـورت سـجدو پـسې سـلام دی
څلـورم کـې بيـا سـلام نـشته تمـام دی
چـې سـربېره پـه څلـورو کـوم صـورت وي
نو د سهوې د سجدو يـې دا صـفت وي
دا پـنځم دی څلـورم غونـدې يـې شـمېره
درې حکمونـه دي خبـره نـه کـړې هېـره
يـا نقـصان بانـدې صـفت لـومړی دوهـم دی
او زيـادت بانـدې صـفت د څلـورم دی
او يا دا چې لمـونځ لـه سره بيـا پـوره کـړه
پـــه ســننو فرائـــضو يـــې کـــره کـــړه

❋❋❋

# امام ته فتحه ورکول

کـه امـام لمانځـه کـې سـهوه شـي خطـا شـي
او دا ســهوه مقتـــدي تــه بــرملا شــي
کـــه دا ســـهوه قرائـــت کـــې وه نـــو دا ده
چـــې لوســـتل د مقتـــدي ســـمه ادا ده
او کــه ســهوه وي هــم پرتــه قرائــت نــه
نو خبر کړه ځان د فتحې دې صفت نـه

مقتــدي بــه فتحــه ورکــړي نارينــه وي
او کـه وروسـته مقتـدۍ وي ، ښـځینه وي
نارينــه تــه د "ســبحان الله" ويــل دي
ښځینه تـه د يـو لاس پـه بـل وهـل دي
نـه ويـل شـته د "الحمـد" نـه تکبيـر شـته
نـه ويـل "التَحِيـاتُ"، نـه بـل تـدبير شـته

***

# د لمانځه قضاء

نــه د کــسته د لمانځــه قــضا کــول شــته
نه مؤمن ته د لمانځه هم پرېښودل شـته
که پـه عـذر لمـونځ شـي پـاتې يـا ويـده وې
يا دې هېر وو يا بـې سـده بـې ليـده وې
نو چې کله بيا راويښ شـې يـا دې يـاد شـي
يا په سد شې هوښ دې سرته راشي ښاد شې
لمـونځ راوګرځـوه زر همـدا يـې وخـت دی
که لمونځ نه کوې عذاب دی او ډېر سخت دی
کــه پــه عــذر درنــه پــاتې شــي لمونځونــه
نو قـضاء يـې پـه ترتيـب کړه لـه سـمونه
چـې قـضا عمـري يـې بـولي دا بـدعت دی
دا اټکـل دی بـې دليلـه بـې حجـت دی
چـې لمـونځ نـه کـوي د کـسته نـو کـافر دی
که پـه کـور کـې دی کـه لـرې مـسافر دی

***

# ممنوع وختونه

درې وختونو کې کوښښ د لمانځـه مه کـړه
له دې پرته يې په هر وخت کې بيا وکړه
يــو د لمــر د ختــو بــل وخــت د زوال دی
بل د لمر د پرېوتو وخت کـې وبـال دی
بل سهار لمانځه نـه وروسـته هـم ممنـوع دی
تر ختو د لمر دې وخت کې نامشروع دی
مــازيگر لمانځــه نــه وروســته تــر غروبــه
نــاروا دي ټــول لمونځونــه، نــا مطلوبــه
د جمعــې يــې لــه زوالــه مــستثنی دی
د اســـبابو لـــه وبالـــه مـــستثنی دی

***

# ذوات الاسباب

هغــه لمــونځ چــې ســبب ولــري روا دی
پــه همــه واړو وختونــو کــې ادا دی
يــو حــرم کــې د مکــې هــر وخــت روا دی
د طواف وي که کوم بل وي بې سودا دی
بــل تَحِيَــة المــسجد هــر وخــت روا دی
کېناستو نه مخکې هر وخـت خامخـا دی
يا په عـذر کـوم يـو لمـونځ وي پـاتې شـوی
لکــه هېــر ورتــه رايــاد شــي زوړ يــا نــوی

يــا ســـهار ســـنت وي پـــاتې نـــو روا دي
د طلـــوع پـــورې ادا پـــه اعتنـــا دي

***

# د سفر لمونځ

د ســـفر لمانځـــه کـــې قـــصر دی صـــاحبه
څلـور فـرض پکـې دوه کېـږي مواظبـه
لکــه فــرض د ماسپــښين يــا مــازيگر شــو
يا څلـور د ماسختن چـې پـه حـضر شـو
قـــصر نـــشته پـــه ســـهار او پـــه ماښـــام کـــې
مـــسائل د ســـفر ونيـــسه پـــه پـــام کـــې
د ســـنتو کـــول نـــشته پـــه ســـفر کـــې
لکـــه څنگـــه ادا کېـــږي پـــه حـــضر کـــې
د ســـهار ســـنت او وتـــر بيـــا مـــشروع دي
او نفلونـــه ټـــول روا او نـــاممنوع دي

***

# د سفر فاصله

اخـــتلاف دی د ســـفر پـــه فاصـــلې کـــې
مـذاهب دي مختلـف دې سلـسلې کـې
خـو تـر ټولـو چـې قـوي دليـل دی، دا دی
چې په درې ميلو کې هـم قـصر روا دی
په صحيح مرفـوع کـې نـشته لـه دې لانـدې
او پيښ شوي وقـايع دي لـه دې بانـدې

حـد او بریـد یـې لـږ تـر لـږه حـسابېږي
دا بنـسټ دی فیـصله پـه همـدې کېـږي.

***

# د سفـر ورځـې

انــدازې د شــپو او ورځــو د ســفر کـــې
اخـتلاف دی اقامـت او پـه حـضر کـې
خـو کـره چـې پـه دلیـل او پـه حجـت دی
عبــدالله بــن عبــاس نــه روایــت دی
بخـــاري او نـــورو ډېـــرو دی راوړی
هــم متونــو هــم شــروحو ذکــر کـړی
هغــه وایــي نــولس ورځــې پــه ســفر کــې
مونږ شوو پاتې پـه صـحبت د پیغمبـر کـې
پــه دې ټولــو کــې د قــصر وو لمونځونــه
پــه یوځــای کــې مــو کــول جماعتونــه
نــو بیــا مــونږه صــحابه و تــه دا بریــد شــو
پــه عمــل د پیغمبــر دغــه تحدیــد شــو
پــه یوځــای کــې مــو تــر نولــسو ســفر و
او له دې به چې بیا زیات شـو نـو حـضر و
عبــدالله د "نحــن" جمــع صــیغه وایـــي
او پـــه دې د صـــحابه و عمـــل ښـــایي
اوس مرفـــوع دی روایـــت د بخـــاري دی
او هــم فهــم اســتنباط د صــحابي دی

نــو لــه دې قــوي دليــل پکــې بــل نــشته
او لــه دې پرتــه بــديل پکــې بــل نــشته
پــه ســفر کــې قــصر ښــه او عزيمــت دی
او رخـصت پکـې اتمـام يـو روايـت دی
کــه ټــول عمــر هــم روان يــې مــسافر يــې
قصر وکړه خو چې لمونځ نه کړې کافر يې
اقامـــــت لپـــــاره يـــــو شـــــرط اراده ده
په خپل واک او خپلې خوښې د بنده ده
چــې پــه خپلــې ارادې نــه پــاتې کېــږي
لکــــه چېرتــــه زنــــدانونو کــــې اوســــېږي
کــه ټــول عمــر يــې هــم پــاتې مــسافِر يــې
تــه پــه قــصر نــه مجــرم نــه مقــصِر يــې
يـا پـه داسـې ځـای ايـسار شـې راچـاپېر شـې
چې په نن سبا کې ، نن سبا کې ګېر شې
مــسافر يــې کــه څــه تېــر شــي هــم کلونــه
بــې دليلــه کلــه مــه کــوه بحثونــه
مــسافر بــه د مقــيم پــسې پــوره کــړي
د هغــه پــه اقتــدا بــه يــې کــره کــړي
چـــې امــام وي مـــسافر مـــاموم مقـــيم وي
د مـاموم بـه وي پـوره د امـام نـيم وي

***

# د جمعې د ورځې احکام

د جمعـــې د ورځ دي ډېـــر فـــضيلتونه
پــه دې هکلــه دي ثابــت روايتونــه
پيــدا شــوی دی آدم پــه دغــه ورځــې
هم قيامت راځي يو دم په دغه ورځې
پـــه دې ورځ آدم جنـــت تـــه ننـــوتی
پـه دې ورځــې لـه جنتـه دی راوتــی
هـم دې ځمکـې تـه راغلـی په جمعې دی
هم لـه دې نړۍ نـه تللی په جمعې دی
هم جمعې ته حضور فرض په مسلمان دی
چې بې غوره حاضر نه شي بې ايمان دی
فرضـيت يـې نـه پـه ښځې نـه غلام شـته
پـه نـاروغ او مـسافر نــه اهتمـام شـته
نـه ماشـوم بانـدې جمعـه نـه پـه اسير شـته
له دې پرته يې په ټولـو ښـه تـدبير شـته
د جمعې لمونځ هم په کلي هم پـه ښار شـته
هم په غره او په بانډې او پـه بـازار شـته
نـه د مـصر جـامع شـرط شـته پـه سـنت کـې
نــه هـم اِذن د اميـر شـته روايـت کـې

# د جمعې لمونځ

د جمعـــې د ورځ حکمونـــه دي ځـــانګړي
کتـــــــابونو دليلونـــــــــه دي راوړي
د جمعې په شپه نه خاص کـوم قرائـت شـته
نه په دې هکله صحيح کوم روايت شـته
د جمعـــې د ورځ ســـهار چـــې قرائـــت دی
فرض لمانځه کې چې راغلی او سنت دی
د سـجدې سـورت لـومړي رکعـت کـې وايـه
پـه دويـم کـې هـم د دهـر سـورت سـتايه
د جمعې په ورځ کـې داسـې يـو سـاعت دی
چـې دعـاء پکـې قبلېـږي روايـت دی
پـــه منبـــر لـــه کېناســـتو بيـــا تـــر ســـلامه
چـې ونـه غورځـوې دا سـاعت لـه پامـه
يـــا پـــه مـــنځ د مـــازيګر او د ماښـــام کـــې
دا سـاعت درسـره ونيـسه پـه پـام کـې
اخـري سـاعت کـې ډېـر زيـات احتمـال دی
لټول يـې ټـولې ورځـې کـې کمـال دی
د جمعـې پـه ورځـې غـسل هـم واجـب دی
ددې ذکـر مخکـې شـوی مناسـب دی
هـم ښـې پـاکې جـامې واغونـده روان شـه
خوشبويي هم استعمال کړه په ښه شان شـه

د جمعــې لمانځــه تــه يــو اذان ســنت دی
دا دويــم يــې لــه عثمانــه روايــت دی
چــې اذان وشــي پلــورل هــم نــاروا شــي
تجــارت او اخيــستل هــم نــاروا شــي
چې جومات ته شي حاضر لومړي ساعت کې
لکه اوښ چې کړې خيرات په دې صورت کې
پــه دويــم ســاعت ثــواب د يــوې غــوا دی
پــه درېــيم د يــو پــسه ثــواب ادا دی
څلــورم کــې د يــوې چرگــې ثــواب دی
او پنځم کې د هگۍ ثـواب صـواب دی
چــې خطبــې تــه بيــا حاضــر کلــه امـام شــي
دا زيـاتي ثـواب پـوره شي او تمـام شـي
چــې جومـات تــه شــي داخـل نـو دوه رکعتــه
کېناســتو نــه مخکــې وکــړه نيــک ســيرته
د خطبــې نــه مخکــې هــم دا دوه ســنت دي
د خطبې په وخت کې هم دا دوه صحت دي
له دې پرته فـرض نـه مخکـې نـه سـنت شـته
نه په دې هکله صحيح کوم روايت شـته
د خطبې په وخت به غوږ کېدې خطيـب تـه
د اســـلام د مـــسائلو عنـــدليب تـــه
نــه لــه پــښو نــه د لاســو راتــاوول شــته
نــه خبــرې نــه چنــده راټولــول شــته

نه هم چاته چوب ويل شته په دې وخت کې
نه د بل کوم کار کول شته په دې وخت کې
نــه خنــدا نــه د لاســونو اشــارې شــته
نـه پـه خپلـو کـې خبـرې مـشورې شـته
نــه د خلکــو پــه اوږو وراووښــتل شــته
نه د بل چـا لـه خپـل ځايـه پـاځول شـته
نــه د دوه نــږدې کــسانو بېلــول شــته
نـه کـوم بـل عبـث او لغـو کـار کـول شـته
پـه يخنـۍ ژمـي د وختـه لمـونځ پـه کـار دی
پـه گرمـۍ اوړي لـږ وروسـته انتظـار دی
خطبه لنډه لمونځ چـې اوږد کـړي فقيـه دی
چې لمونځ لنډ خطبه اوږده کوي سفيه دی
پـه خطبـو کـې نـصيحت کـول پـه کـار دي
مــسائل د شــريعت ويــل پــه کــار دي
انگــازې او تــرنم نــشته خطبــه کــې
هــم د ټوکــو تکلــم نــشته خطبــه کــې
په خطبه کـې "ق" سـورت لوسـتل سـنت دي
هم امسا ، تـوره پگـړۍ وهـل سـنت دي
د لمانځه نه مخکـې دوه خطبـې مـشروع دي
د بدعت کول په هر وخت کې ممنوع دي
نه خطبـو نـه مخکـې وعـظ او نـصيحت شـته
نه په ناسـته دا تقريـر او دا بـدعت شـته

خطبـــې دواړه پـــه ولاړه دي راغلـــي
کېناسـتل د دواړو مـنځ کـې دي لـږ غلـي
نـه د دواړو لاسـو يـو بـل خـوا وهـل شـته
نه يې مخکې اخوا دېخوا غورځـول شـته
سُـبابه کـه چېرتـه پورتـه کـړي سـنت دي
نــور نـاوړه حرکـات کـول بـدعت دي
لــه خطبــې وروســته پــه جهـر اقامــت دی
بيـا پـه جهـر دوه رکعتـه جماعـت دی
په لومړي کې د "اعلیٰ" سـورت لوسـتل دي
په دويم کـې "غاشـيه" سـورت ويـل دي
د جمعـې لـه فرضـو وروسـته چـې سـنت دي
که جومات کې يې کوې څلور صحت دي
او کـه کـور کـې يـې کـوې نـو دوه رکعتـه
دي ثابـــت لـــه روايـــت او درايتـــه

❋❋❋

# د اخترونو احکام

د واړه اختـــر لـــومړۍ ورځ د شـــوال ده
دغه ورځ د خوشحالۍ ده په هر کـال ده
د نـاري خـوړل يـا طـاق خورمـا سـنت دي
د اختر لمانځه نه مخکـې دا صـحت دي
غـسل ښـه دی د لمانځـه پـه دې تابيـا کـې
او يـا نـوې جـامې واغونـده يـا پـاکې

د عیـدګاه پـه لـور بـه درومـي نارینـه هـم
او بایـد چـې شـي حاضـرې ښـځینه هـم
حائـضې بـه هـم عیـدګاه تـه حاضـرېږي
لـه عیـدګاه نـه بـه دبانـدې شـریکېږي
لمونځ بـه نـه کړي تکبیرونـه خـو بـه وایـي
پـاک الله بـه پـه دعـا او ذکـر سـتایي
پـه عیـدګاه کـې نـه اذان نـه اقامـت شـته
نه نفلونـه، نـه راځـئ راځـئ بـدعت شـته
لـه خطبـې څخـه لمـونځ مخکـې ادا کېـږي
دوه رکعتـــه بـــه پـــه جهـــر بـــشپړېږي
تحریمـــه پـــسې زیـــاتي اوه تکبیرونـــه
ویـل کېـږي پورتـه کېـږي هـم لاسـونه
روایـت رفـع الیـدین کـې صـریح نـه دی
او صـریح یـې لـه اسناده صـحیح نـه دی
خـو عمـوم کـې د مـسلم یـو روایـت دی
دلالـت نـه معلـوم دغـه درایـت دی
بیـا د عـام لمانځـه پـه څېـر دغـه رکعـت دی
تـوپیر نـه لـري همدغـه یـې صـفت دی
پـه دویـم رکعـت کـې مخکـې قرائـت نـه
زوائـــد دي تکبیرونـــه روایـــت نـــه
دا پنځـه دي چـې حـدیث کـې دي راغلـي
کتـــابونو د حـــدیثو دي لیکلـــي

لمونځ چې وشي نو بيا وروسته ترې خطبه ده
دا خطبــه پــه احــاديثو كــې يــوه ده
چــې عيــدگاه تــه يــې پــه كومــه لار راغلــی
بايــد بېرتــه يــې پــه بلــه لاره تللــی
چــې لمـر وخېـژي او لـږ غونـدې رالـوړ شـي
دغه وخت د لمـونځ كولـو تـه بيـا وړ شـي
د واړه اختـــر لـــږ وروســـته ادا كېـــږي
خـو د لـوی اختـر لـږ مخكـې حسابېږي
نـــور تـــوپير د دواړو نـــشته پـــه كولـــو
نه لمانځه كې، نـه خطبـې نـه پـه ورتللـو
خـو د لـوی اختـر د ورځـې دا تـوپير دی
چې خوراک كې قرباني پورې تاخير دی
او واړه كـــې بيـــا د فطـــر صـــدقه ده
لــه لمانځــه مخكــې ادا ده سرســايه ده
لـه لمانځـه مخكـې يـا مخكـې لـه اختـره
پـــه نـــر ښـــځې لـــوی واړه ده برابـــره
پـاو كـم دوه كيلـو طعـام دی پـه هـر چـا دی
د غنمـــو يـــا وربـــشو يـــا خورمـــا دی
يـــا پنيـــر او يـــا مميـــز او يـــا اوږه دي
او يا وريجې او يا نـور طعـام خـواړه دي
پكـې ښــه دي كــه كلچــې يــا مټايــان وي
دي حقدار ددې هغـه چـې مـسكينان وي

دليـــــل نـــــشته ددې نغـــــدو وركولـــــو
سـړي سـر يـو صـاع طعـام دی پـه تللـو
سرســـايه حـــق د بـــې وزلـــو غريبـــانو
د محتـــــاجو، مـــــسكينانو، فقيرانـــــو
سرســـايه وركـــول نـــشته امامـــت كـــې
نه حساب ده د كوم كار پـه اجـورت كـې
چې يې وس وي وركول يې ثابـت حـق دی
پـــه شـــتمنو وس لرونكيـــو دا مطلـــق دی
او د لـــوی اختـــر نـــه وروســـته قربـــاني ده
د لمانځه نه وروسـته دا پـه هـر غنـي ده
غـــوا او مېـــښه اوښ پـــه اوو كـــسانو كېـــږي
روايـت كـې اوښ پـه لـسو هـم سـمېږي
خـو ضـرور نـه ده چـې خامخـا دې اووه وي
پروا نشته كه دوه درې وي يا پنځـه وي
پـــه يـــوائې هـــم څـــاروي قربانېـــدی شـــي
اوزه، مېږه په يـو كـس بانـدې كېـدی شـي
نـه پـه خـوار څـاروي او نـه پـه گـوډ روا ده
په ړانـده، چـوكړ، غـوږ غـوڅي نـاروا ده
خـــو څـــاروی بـــه دوه غاښـــی او مُـــسِنه وي
ښـــه پـــوره بـــه يـــې د عمـــر زمانـــه وي
اوښ پـــه غـــاښ بـــه د پنځـــو كلـــو پـــوره وي
او دا نور بـه دوه كلـن پـه غـاښ كـره وي

خــو ورى پــسه يــو كلــن چــاغ روا كېــږي
دا نور درې چې له دوه كم وي نه سمېږي
دې نه كم به نـه وي زيـات يـې هـم روا دى
چې كره وي بې سـودا او بـې پـروا دى
پــه خــصي څــاروي روا هــم قربــاني ده
پــروا نــشته دا خــو لا كــره ځــواني ده
نــه د غوښــې يــا څرمنــې خرڅــول شــته
نه دا دواړه مـزدورۍ كـې وركـول شـته
غوښــه ســتا او ســتا د كــور او مېلمنــو ده
د خپلوانــو، گاونــډيانو، بــې اســرو ده
د تقــسيم د انــدازې كــوم دليــل نــشته
كــومې برخــې د كثيــر او قليــل نــشته
څومره ډېره چې خېرات شي ډېر ثـواب دى
په هر ډول چې تقسيم شي دا صواب دى
د ســــلفو صــــالحينو بــــه دا كــــار و
چې پـه درې برخـو وېـشل يـې ابتكـار و
يــوه برخــه يــې د كــور بيــا د خپلوانــو
او درېيمــــه د بــــې وزلــــو گاونــــډيانو
خـو مرفـوع حـديث كـې دغـه وېـشل نـشته
خاصـې برخـې او حـصې وركـول نـشته
د محتــاجو بــې وزلانــو خيــال يــې ســاته
د غريبــو يتيمــانو خيــال يــې ســاته

د ســـــيالۍ او افتخـــــار قربــــاني نـــــه ده
لــه لمانځــه مخکــې تلــوار قربــاني نــه ده
کــه چـا مخکـې لــه لمانځـه نــه قربـاني کــړه
ځـان لپـاره يــې د غوښــې اســاني کــړه
لــه لمانځــه وروســته بــه بلــه قربــاني کــړي
مــسلمان بــه پــه دليــل مــسلماني کــړي
لـــوبې مـــوبې هـــم روا دي پـــه اختـــر کـــې
نـــاروا ټـــول نـــاروا دي پـــه اختـــر کـــې
د هګيـــــو جنګـــــول هـــــم نـــــاروا دي
نـــاروا ميلـــې کـــول هـــم نـــاروا دي
ښــې بــدلې، ښــې ســندرې هــم روا دي
جــواري او ټنــګ ټکــور يــې نــاروا دي
لـــوی اختـــر د ذوالحجـــې دی پـــه لـــسمه
او ايـــام تـــشريق دي تـــر ديارلـــسمه
کــه څــوک غــواړي قربــاني وکــړي ســنت دي
دا نوکان وېښتان به نـه اخلـي صـحت دي
لـــه اول د ذوالحجـــې بيـــا تـــر لـــسمه
ترڅــــو وکـــړي قربـــاني دا بـــه منمـــه
ورځـــې درې د قربـــانۍ دي چـــې لـــسمه
ورســـــــره يوولـــــــسمه دولـــــــسمه
قربــاني پــه هغــه چــا ده چــې غنــي وي
پور پرې نه وي او د ژوند پرې اساني وي

قربـــانۍ لپـــاره نـــه راقرضـــول شـــته
نه غریب بانـدې یـې خامخـا کـول شـته
د اختـــر مبـــارکي ویـــل ســـنت دي
خو دا غېږې ضروري ګڼـل بـدعت دي
پـه یـوه ورځ کـه جمعـه او هـم اختـر شـي
دا اختـر پـه دغـې نـور هـم بختـور شـي
د جمعې لمونځ بیا ساقط شي ستا اختیار دی
که جمعې ته ځوک راځي که نه خپل کار دی
کـه چـا وکـړ د جمعـې لمـونځ هـم ده سـمه
او کـه نـه د ماسپـښین بـه کـړي بـې غمـه

## د ذوالحجې د لومړیو لسو فضیلت

دا د لوی اختر چې میاشت د ذوالحجـې ده
دا د حـــج او د ثـــواب او درجـــې ده
لومړۍ لس ورځـې یـې ډېرې د ثـواب دي
ذکـر کـړي د حـدیثو هـر کتـاب دي
دې کې هر یو نېک عمل شي پـه څـو چنـده
عبـادت کـې ګټـه واخلـه لـه دې ژونـده
دا ایـــام معلومـــات دي پـــه قـــرآن کـــې
د تهلیل تکبیر تحمیـد دي هـر زمـان کـې
ښـــه پـــه زوره تکبیرونـــه پکـــې وایـــه
پاک الله پـه دې ذکرونـو بانـدې سـتایه

د اختـــر چـــې تکبیرونـــه دي کـــوم يـــاره
دا د ورځ لـــه عرفـــې دي لـــه ســـهاره
د اختـــر تـــر څلـــورمې ورځ يـــې وايـــه
په هر وخت پاکو ځايونو کې يې ستايه
ديارلـــسم د ذوالحجـــې تـــر مـــازيګره
تکبيرونـــه ډېـــر ډېـــر وايـــه معتبـــره
نه خاص وخت او ځای په دې کې دی ټاکلی
سـره يـو دي نـر او ښـځه کـور او کلـی
ځانتـه ځانتـه يـې ويـل دي هـم راغلـي
پـه يـو غـږ شـريک لوسـتل هـم مـا ليـدلي
يـو چـې وايـي او دا نـور يـې پـسې وايـي
پـاک الله پـه تکبيرونـو داسـې سـتايي
دا ثابـت دي پـه جومـات او پـه بـازار کـې
په هر ځای او په هر وخت کوڅو او لار کې

***

## د تکبیرونو الفاظ

چـــې الفـــاظ د تکبيرونـــو دي راغلـــي
هغـه دا دي پـه درې ډولـه مـونږ ليـدلي

۱ـ اَللّٰهُ اَکبَرْ اللّٰهُ اَکْبَرْ الله اکبر کبیراً

۲ـ الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله والله اکبر الله اکبر ولله الحمد.

۳ـ الله اکبر کبیراً والحمد لله کثیراً و سبحان الله بکرةً و اصیلًا.

دا هـر يـو ويـل پـه بيـا بيـا او تكـرار دي
نه په خاص كوم يو عدد دي نه په شمار دي

❋❋❋

# د وېرې لمونځ

كـه څـه وېـره خـوف او ډار وي لـه دښـمنه
او جهـاد كـې وي سـفر كـې بـې وطنـه
نــو صــلاة خــوف كــول دي مــسلمانه
د لمانځـه پرېـښودل نـشته پـه مـا گرانـه
پــه حــديثو كــې څــو ډولــه دي راغلــي
چـې پـه هـر ډول دې وكـړل دي منلـي
جماعــت بانــدې بــه كېــږي دا ډولونــه
دي په اصل كې پـه جمـه ټـول لمونځونـه

❋❋❋

# لومړۍ طريقه[1]

لومړى دا چې موجود خلـك شـي دوه ډلـې
او پـــوره پـــه اوداســـه وي مكملـــې
يـــوه ډلـــه بـــه امـــام پـــسې ودرېـــږي
او دا بلـه بـه دښـمن تـه پـه څـو كېـږي
دا يـوه چـې يـو ركعـت وكـړي پـه جمـه
دا بـه لاړه شـي دښـمن طـرف تـه سـمه

[1] رواه البخاري و مسلم.

د امــــام پــــسې بــــه بلــــه اقتــــدا کــــړي
یـــو رکعـــت بـــه د امـــام پـــسې ادا کـــړي
دا امـــام بـــه دواړو خـــواو تـــه ســـلام کـــړي
او خپل لمونځ به په همدې ترتیب تمام کړي
بیا به دواړه ډلې پاتې لمـونځ پـوره کـړي
هر یو کس به یو رکعت ځانتـه کـره کـړي
په هر وخت کې بـه وسله ځـان سره ساتي
په لمانځه کې دې هم نه شي ورنـه پاتې

***

# دویمه طریقه[1]

دویم دا چې موجـود خلـک شـي دوه ډلـې
او پـــوره پـــه اوداســـه وي مکملـــې
یـــوه ډلـــه بـــه امـــام پـــسې ودریـــږي
او دا بلـه بـه دښـمن تـه پـه څـو کېـږي
دا یــوه چــې یــو رکعــت وکــړي پــه جمــه
نــو امــام بــه انتظــار وکــړي بــې غمــه
دغــه ډلــه بــه دویــم رکعــت پــوره کــړي
او یــواځې بــه یــې ځانتــه ښــه کــره کــړي
بیــا بــه دا ډلــه څــوکۍ تــه شــي دبانــدې
هغـه بلـه بـه لمانځـه تـه شـي راوړانـدې

[1] رواه البخاري و مسلم والترمذي و ابو داود و النسائي و احمد و البیهقي .

| | |
|---|---|
| دوی شریک بـه یـو رکعت کې د امام شـي | |
| | او امـام بـه انتظـار کـې د سـلام شـي |
| دوی به هم دویم رکعت ځانتـه پـوره کړي | |
| | او یواځې به یې هر یو کس هرکره کړي |
| دوی شریک بـه یـو رکعت کې د امام شـي | |
| | او د ټولـو پـه شـریکه لمـونځ تمـام شـي |

## دریمه طریقه[1]

چـــې دریمـــه طریقـــه ده هغـــه دا ده
یـــوه ډلـــه د امـــام پـــه اقتـــدا ده
او دا بلـــه پـــه څـــوکۍ بانـــدې ولاړه
جماعت باندې به لمونځ کړي دغه دواړه
لـــه امـــام ســـره بـــه وکـــړي دوه رکعتـــه
دوی به وروسته شي څوکۍ ته له همته
دغـــه بلـــه بـــه هـــم وکـــړي دوه رکعتـــه
د امـــام ســـره پـــه جمـــه لـــه ښـــه نیتـــه
د امـــام بـــه شـــي څلـــور دا رکعتونـــه
مقتـــدیانو تـــه بـــه دوه دوه لـــه ســـمونه

❋❋❋

---

[1] رواه البخاري و مسلم و ابو داود والنسائي و احمد.

# څلورمه طريقه[1]

چـې قبلـې تـه مخـامخ کلـه دښـمن وي
او دا نـور اطـراف د امـن لـه وطـن وي
نـو امـام پـسې بـه جـوړ کـړي دوه صـفونه
او امـام پـسې بـه وکـړي ټـول نيتونـه
دواړه صـفه بـه شـريک وي پـه قيـام کـې
او هم دواړه د قومې پـه ښـه اتمـام کـې
اول صـف بـه ځـي امـام سـره سـجدې تـه
د الله د عبـــادت ښـــې ارادې تـــه
او دويـم صـف بـه شـي پـاتې پـه ولاړه
د دښمن په لور به ګوري خير يې غـواړه
اول صـف چـې لـه سـجدو نـه راولاړ شـي
نو دويم صف به سجدو ته ښکته لاړ شي
دويم صف چې دوه سجدې کله پوره کړي
او راپـاځي پـه ولاړه ځـان کـره کـړي
اول صف به شي راوروسته دويم وړاندې
مـساوات بـه برابـر شـي پـه دې بانـدې
دا دويـم رکعـت بـه هـم پـه هغـه شـان وي
چې يې کړی دا اول پـه کـوم بيـان وي

[1] رواه مسلم والنسائي و ابن ماجه والبيهقي.

ټول شريک بـه پـه قعدې او پـه سـلام شـي
او په دې ترتيب به لمونځ پوره تمام شي

## پنځمه طريقه[1]

او پنځمـــــه طريقـــــه د لمانځـــــه دا ده
يـــوه ډلـــه د امـــام پـــه اقتـــدا ده
يــو رکعــت بــه د امــام ســره تمــام کــړي
او دويمه بـه هـم يـو ورپسې تـام کـړي
د امــام لمــونځ دوه رکعتــه ښــه کــره شــو
او د نــورو پــه يــو يــو رکعــت پــوره شــو
بــې لــه خوفــه بــې لــه جنګــه روا نــه دی
يـــو رکعـــت کـــول د فرضـــو ادا نـــه دی
نـــه د نفلـــو او ســـنتو يـــو رکعـــت شـــته
يو د خوف او بل د وترو دا صـورت شـته

## شپږمه طريقه[2]

او شــــپږمه د خـــــوف دغــــه طريقــــه ده
او راغلـــې روايـــت بانـــدې ثقـــه ده
چــې دوه ډلــې بــه امــام پــسې ودرېــږي
اقتـــدا کـــې بـــه دا دواړه شـــريکېږي

[1] رواه مسلم و ابو داود و احمد والنسائي .
[2] رواه ابو داود والنسائي و احمد.

يــوه ډلــه يـــې ځـــوکې تـــه شـــاته لاړه
او يـــوه بـــه وي امـــام پـــسې ولاړه
دا يــوه بــه يــو ركعــت وكــړي پــه جمــه
بيـا بـه لاړه شي ځـوكې تـه ښـه بـې غمـه
هغــه بلــه بــه يــواځې يــو ركعــت كــړي
او امام بـه انتظـار پـه دې صـورت كـړي
او دا ډلــه بــه دويــم ركعــت كــره كــړي
د امــام پــه اقتــدا بــه دا پــوره كــړي
دې دويـــم كـــې دا امـــام او دغـــه ډلـــه
ښــه شــريک شــو او ادا شــوه مكملــه
دغــه ډلــه او امــام بــه انتظــار كــړي
او اوله به راوړاندې شي چې ځـار كـړي
يــو ركعــت بــه دغــه وكــړي ځانتــه ځانتــه
دوه ركعته به پوره كړي پاک رحمـن تـه
په سـلام كـې بـه شـريک سـره دا ټـول شـي
دا دوه ډلـې او امـام بـه پـه يـو تـول شـي

✵✵✵

# د ډېرې سختې وېرې

كــه ډار وېــره ډېــره زياتــه وي او ســخته
څـه بمبـار وي منـډه تـرړه وي نېكبختـه

بیـا بـه ځانتـه هـر یـو کـس کـوي لمونځـونـه

فـرض بـه وکـړي او پـرې نـشته سـنتونه

لمونځ به کاندي چې په هر ترتیب يې وس وي

که تـیمم یـې وي وهلـی کـه اودس وي

پـــه ولاړه وي دا لمـــونځ کـــه پـــه روانـــه

کـــه پـــه ملاســـته وي پـــه منـــډه مـــسلمانه

پـه سـپرلۍ وي کـه پیـاده کـه اشـاره وي

که قبلې ته یـا بـل خـوا تـه وي کـره وي

پـــه دې ټولـــو صـــورتونو لمـــونځ روا دی

پـه حـدیث کـې بـې لـه شـکه بـرملا دی

قضاء نشته لمـونځ پـه هـر ترتیـب پـوره دی

ښـه اداء دی بـې لـه شـکه ښـه کـره دی

❋❋❋

# د باران غوښتلو لمونځ

کـه بـاران شـي کلـه وروسـته وچکـالي شـي

او بـاران تـه ضـرورت وي بـدحالي شـي

یـــوه ورځ بـــه ســـره وتـــاکي معلومـــه

چې بـه وځـوو استـسقاء تـه پـه موسـومه

چـې لمـر وخېـژي يـوه نېـزه رالـوړ شـي
دغـه وخـت بيـا د وتـو لپـاره وړ شـي
نـو عيـدگاه تـه بـه حاضـر مـسلمانان شـي
پـه زړو جـامو او عجـز بـه عيـان شـي
د منبـر ايـستل عيـدگاه تـه هـم سـنت دي
د خطبـې د عبـادت پـه مـصلحت دي
چـې امـام کلـه عيـدگاه تـه راحاضـر شـي
پـه منبـر بانـدې بـه پورتـه مُـستَقِرْ شـي
لـــومړی الله اکبـــر تکبيـــر بـــه وايـــي
بيا به پـاک الله حمـدونو بانـدې سـتايي
بيـا بـه وايـي تاسـو کـړی شـکايت و
د قحطی، او نـه بـاران تـه مـو حاجـت و
او الله دی امـــــر کـــــړی د بللــــو
هـم يـې کـړې ده وعـده د قبلولـو
بيـا بـه وايـي پـه اخـلاص او هـم پـه هيلـه
دي ثابــت د احــاديثو لــه دليلــه:

"اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنْ اَلرَّحْمنِ الرَّحِيْمْ مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنَ لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدْ، اَللّٰهُمَّ أَنْتَ اللهُ لاَ إِلهَ إِلاَّ أَنْتَ أَنْتَ الْغَنِيُّ وَ نَحْنُ الْفُقَرَاءُ أَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ وَاجْعَلْ مَا أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَ بَلاَغاً إِلى حِيْنْ".

نـــه حمدونـــه د الله دي پـــه صـــفاتو
هغـــه رب دی ددې ټولـــو مخلوقـــاتو

هم رحمـن دی هغـه ډېـر زيـات مهربـان دی
هـم رحـيم دی لـوروونکی مـستعان دی
هــم مالــک دی د جــزا د ورځ واکــدار دی
بـل معبــود نـشته الله زمــونږ بـادار دی
څه چې وغواړي کوي يې چې خپلواک دی
لـه عيبونــو نقـصانونو څخــه پـاک دی
ای الله تـــه خـــو الله يـــې لـــه تـــا پرتـــه
بـل معبـود نـشته يـو تـه يـې بـې حاجتـه
تـه غنـي يـې بـې پـروا مـونږ بـې وزلان يـو
ښه باران پـه مـونږ وکـړه محتاجـان يـو
او بيــا مـــونږ لپـــاره دا ښـــه کفايـــت کـــړه
تـر يـو وختـه يـې سامان د معيـشت کـړه
بيـا بـه پورتـه کـړي دعـاء تـه خپـل لاسـونه
تر هغې چې يـې څرگنـد شـي تخرگونـه
خـو لاسـونه بـه پـه څـټ نيـسي دعـاء کـې
چې په څټ شي وچکالي په دې رجاء کې
بيـا بـه مـخ د قبلـې لـور تـه پـه منبـر کـړي
او اوړو باندې په څټ به خپل څادر کړي
او لاســـونه بـــه دعـــاء لپـــاره لـــوړ کـــړي
په زارۍ باندې به ځان د باران وړ کـړي
دغــه لانــدې دعاگـــانې هـــم ســـنت دي
چــې راغلــي د حــديث پــه روايــت دي

"اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَ بَهِيْمَتَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَاحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتْ".

**ای الله خپـــل بنـــدگان دې کـــړه خړوبـــه**

**او څـاروي دې هـم اوبـه کـړه بې عيوبـه**

**خپل رحمت دې په دې ځمکې باندې خپور کړه**

**او دا مړ وطن ژوندی او ښه سمسور کړه**

"اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثاً مُّغِيْثاً مَرِيْئاً مُرِيْعاً نَافِعاً غَيْرَ ضَارٍّ عَاجِلاً غَيْرَ آجِلْ".

**"ای الله مـونږ پـه بـاران بانـدې اوبـه کـړه**

**او ماړه مو په اورښت باندې ځاربـه کـړه**

**ښــــه اســـــانه تېرېـــــدونکی او ښـــــېرازه**

**بـــاران غـــواړو ای کريمـــه بـــې نيـــازه**

**گټـــــور او بـــــې ضـــــرره او چـــــې زر وي**

**وروسته نه وي ښه پـه بيـړه بختـور وي"**

**بيـا بـه خلكـو تـه رامـخ كـړي لـه منبـره**

**بـه راښـكته شـي لمانځـه تـه بې خطـره**

**ښــه پـــه جمـــه او پـــه جهـــر دوه ركعتـــه**

**لمـونځ بـه وكـړي د سـنت لـه هدايتـه**

**لمونځ چې وكړي بيا به ځي خپلـو كـورو تـه**

**حاجــت نـــشته بـــدعتونو او نخـــرو تـــه**

***

# د خسوف او كسوف لمونځ

د سپوږمۍ تندر خسوف باندې يادېږي

او د لمر تندر كسوف باندې بيلېږي

كله يو د بل په ځاى استعمالېږي

يو د بل په اصطلاح نومول كېږي

نه د چا په ژوند يا مړينې باندې كېږي

نه په بلې كومې پېښې څرګندېږي

د الله د قدرت نښې ظاهرېږي

وېروي پرې بندګان چې غافلېږي

چې خسوف او يا كسوف كله واقع شي

مسلمان به عبادت باندې تابع شي

هم به ذكر هم دعاء هم صدقات كړي

غلام وينځه به آزاد هم به صلات كړي

نور بې ځايه رواجونه او دودونه

ناروا دي ناروا دي بدعتونه

د لمانځه اعلان به وشي چې حاضر شئ

لمونځ په جمه باندې كېږي منتظر شئ

دوه ركعته به په جهر جماعت وي

هر ركعت كې دوه ركوع دوه قرائت وي

هم به اوږد قرائت او هم قيام وي

هم ركوع سجده اوږده په اهتمام وي

نــه اذان شــته د لمانځــه نــه اقامــت شــته

نــه تکــرار د اعلانونــو نــه بــدعت شــته

نارینــــه او ښـــځینه بــــه رابهـــر شــــي

پــه جومـات کــې بــه صـفونه برابـر شـي

نیت د زړه دی نه د ژبې کوم یـو نیـت شـته

د الفاظو نــه دلیـل نــه کـوم حجـت شـته

لــه تکبیــر، دعــاء نــه وروســته قرائــت دی

فاتحه ده نور قـرآن یـا کـوم سـورت دی

بیـا رکــوع ده بیـا دویــم قرائــت بیـا دی

دغــه هریوښــه پــه جهــر هویــدا دی

بیــا رکــوع ده بیــا رکــوع نــه ده ولاړه

بیا سجدې دي دوه ، دعـاوې پکـې غـواړه

بیـا دویـم رکعـت لـومړي غونـدې ادا کـړه

تــر ســلامه دغــه لمــونځ پــه اعتنــا کــړه

بیا امام صـاحب خطبـې کـې نـصیحت کـړي

ښـې خبـرې بـه د پـت او د عفـت کـړي

وېــرول بــه لــه گونــا او معــصیت کــړي

تېــزول بــه پــه ښــېگړو عبــادت کــړي

## د استخارې لمونځ

چــې هرکلــه کــوم روا او مبــاح کــار کــړې

پرېــښودلو او کولــو د شــک چــار کــړې

او پـه وکـړم او ونـه کـړم کـې ګـډوډ يـې
او پـه شـک او تـردد بانـدې ورګـډ يـې
نـو پـه دې کـې بيـا مـسنون اسـتخاره ده
ددې شـک لـرې کولـو دا چـاره ده
چې هـر لـور درتـه راجـح بيـا راښـکاره شـو
بيـا پـه دې اسـتخارې هغـه کـره شـو
نـه د خـوب ليـدل بيـا شـته اسـتخارې کـې
نه يې دې پورې تړل شته دې چارې کې
چـې کـوې اسـتخاره نـو دا يـې لار ده
ښـه مـسنونه طريقـه ورتـه پـه کـار ده
دوه رکعتـه لمـونځ بـه ښـه کـره پـوره کـړې
ورپـسې بـه دا دعـاء اسـتخاره کـړې:

"اَللّٰهُمَّ إِنِّىْ أَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَ أَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَ أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمْ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَ لاَ أَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَلاَ أَعْلَمُ وَ أَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوْبْ اَللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ خَيْرٌ لِّىْ فِىْ دِيْنِىْ وَ مَعَاشِىْ وَ عَاقِبَةِ أَمْرِىْ، فِىْ عَاجِلِ أَمْرِىْ وَ آجِلِهِ فَاقْدِرْهُ لِىْ وَ يَسِّرْهُ لِىْ ثُمَّ بَارِكْ لِىْ فِيْهِ وَ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ شَرٌّ لِىْ فِىْ دِيْنِىْ وَ مَعَاشِىْ وَ عَاقِبَةِ أَمْرِىْ، فِىْ عَاجِلِ أَمْرِىْ وَ آجِلِهِ فَاصْرِفْهُ عَنِّىْ وَ اصْرِفْنِىْ عَنْهُ وَاقْدِرْلِىَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ ارْضِنِىْ بِهِ".

"ای الله زه ستا د علم له کبله
تانه خیر غواړمه ربه زه پخپله
ستا قدرت باندې له تانه زه وس غواړم
ستا لوی فضل تانه غواړم په دې ویاړم
ته بې شکه وس قدرت لرې قدیره
او زه وس نه لرم زه یم بې تدبیره
ته پوهېږې او زه نه پوهېږم ربه
ته په پټو ډېر ښه پوه یې بې سببه
ای الله که ستا په علم کې دا کار هم
ماته ښه وي زما دین زما په چار هم
دې زما د کار دا پایلې ماته ښې وي
سمدستي وي او که وروسته خیر پکې وي
نو دا کار ماته مقدور کړه هم اسانه
ماته کېده برکت پکې رحمانه
او که ستا په علم شر وي ماته دا کار
زما دین زما ژوندون کې شر وي دا چار
او زما د کار بیا پایلې وي هم بدې
سمدستي او وروسته چار مې وي بې ودې
نو دا کار له مانه واړوه خالقه
او ما هم له دې نه واړوه رازقه

او چې هرځای کې کوم خیر وي زما ربه
هغه ماته کړه مقدور له ښه سببه
ما راضي بیا په دې کار کړه زما ربه
ښاد ودان مې په دې چار کړه زما ربه"
عادي لمونځ دی نه ځانګړی قرائت شته
نه څه خاصه طریقه او نه هیئت شته
نه بیا بیا استخاره شته په یو کار کې
نه لیدل شته د کوم خوب په انتظار کې
هذاالامر سره یاد به خپل حاجت کړي
که په خوله نه وي معلوم به یې په نیت کړي

❋❋❋

# د حاجت لمونځ

که حاجت لرې اړتیا څه ضرورت وي
نو باید چې وسیله دې عبادت وي
دوه رکعته لمونځ ښه بشپړ او کره کړه
بیا دعاء وکړه حاجت په دې پوره کړه

❋❋❋

# د شکر سجده

که کوم زېری یا خبر د خوشحالۍ وي
ته یې واورې د خوښۍ او سوکالۍ وي

نـو د شـکر سـجده وکـړه چـې سـنت ده
دا ثابتـه پـه حـديث او پـه حجـت ده

## د څاښت لمونځ

چـې لمـر وخېـژي يـوه نېـزه رالـوړ شـي
دغـه وخـت بيـا د لمانځـه لپـاره وړ شـي
لـه دې وختـه بيـا لـږ مخکـې تـر زوالـه
د ضـحیٰ د لمانځـه وخـت دی اندېوالـه
اخـري وخـت کـې تـر ټولـو بيـا افـضل دی
دا "صـلاة الاوابـين" د ښـه عمـل دی
په "اشراق" او پـه "ضـحیٰ" کـې تـوپير نـشته
په اشراق يې کوم حديث کې تعبيـر نـشته
دغـه لمـونځ دی لـږ تـر لـږه دوه رکعتـه
له دې زيات يې هم کېدی شي له حجته

***

## د تسبيح لمونځ

د تـسبيح لمـونځ دی راغلـی روايـت کـې
روايت يې دی ضعيف پـه درايـت کـې
ځينـې ځينـې موضـوعي هـم ورتـه وايـې
دا لـه ځانـه راجـوړ شـويو څخـه سـتايي
دا څلـور دي رکعتونـه هـر رکعـت کـې
فاتحه او يو سورت دی دې صـورت کـې

**خـو پـه هـر رکعـت کـې وروسـته قرائـت نـه**

**دي پـنځلس ځـل ویـل لـه عبـادت نـه**

"سبحان الله والحمد لله و لا اله الا الله والله اکبر".

**"الله پـاک دی هـم کـره پـوره سـتاینې**

**د الله دي ډېـرې مـه کـوه پوښـتنې**

**لـه الله پرتـه بـل نـشته کـوم معبـود هـم**

**الله ډېر لوی دی او نشته بل مسجود هم"**

**بیـا رکـوع او لـه رکـوع نـه ودرېـدو کـې**

**هم سجدو او هم په منځ د دوه سجدو کې**

**دغــه ذکــر لــس لــس ځلــه پکــې وایــه**

**دې هر ځای کې په دې ذکر الله ستایه**

**پـه همـدې ترتیـب د هـر رکعـت کـول دي**

**دا تـسبیح پنځـه اویـا ځلـه لوسـتل دي**

**خو ثابت نه دی حدیث نو هیڅ یې مه کړه**

**ځـان دې مـه کـړوه نـور نقلونـه وکـړه**

✵✵✵

# د جنازې احکام

**جنــازې پــورې تړلــي ډېــر احکــام دي**

**گټــور او ښــه حکمونــه د اســلام دي**

✵✵✵

# ناروغي

نــاروغي وي يــا كــه پيــښې، اندېــښنې وي
يــا زنــدان او زنځيرونــه زولنــې وي
مــــسلمان لپـــاره ټـــول دي ثوابونــــه
ښه په ورين تنـدي او صبر دي اجرونـه
نـــــاروغي د گونـــــاهونو كفـــــاره ده
د مـــؤمن لپـــاره هيلـــه او اســـره ده
خطاگـــانې گوناهونـــه پـــرې رژيـــږي
ثوابونـــه او اجرونـــه پـــرې زيـــاتيږي

***

# د ناروغۍ درملنه

نــاروغۍ كـــې درملنـــه هـــم پكـــار ده
د طبيب او د روغتـون چاره يـې لار ده
يــو دعــا او بــل درمــل او بــل پرهيــز دى
بل مسنون دم په دې هريو كې اغيـز دى
فاتحـــــه او د اخــــلاص دوه ســــورتونه
د كرســـي آيـــة، فلـــق او نـــاس دمونـــه
يــا هــم نــور چــې احــاديثو كــې راغلــي
مــوږ او تاســو پــه صــحاحو كــې ليــدلي
پيغمبــر نـــه ټـــول امـــت تـــه اجـــازه ده
نــر او ښـځه كــه روژه ده كــه بــوزه ده

موحـــد او نېــک عمــل چـــې مـــسلمان وي
دا دمونــه شـــي كــولی چـــې ايمـــان وي
نـــــور دمونـــــه اجـــــازې او منترونـــــه
نـــاروا دي نـــاروا دغـــه دودونـــه
دا كــــونجكې تعويذونـــه كـــه مـــرۍ دي
كـه بندونـه كـه ځابـښتونه يـا كـړۍ دي
كفر شرک دی خير او شر ګڼـل پـه دې كـې
د ابليس او د شـيطان منـل پـه دې كـې
زيارتونــــه كــــه جنـــډې او ملنګـــان دي
منجاور دی كه پې پير دی ټـول ټګـان دي
شرک او كفر دی كه خير او شر تـرې غـواړې
كـه دې وكـړل د شـيطان پـه لاره لاړې
كــه پيــری وي هغــه هــم پــه دم رغېــږي
كـــه نظـــر وي نظـــر هـــم پــه دم رژېـــږي
نظرمـــاتي تـــه لـــوګي هـــم نـــاروا دي
زيـــارتونو كـــې مـــوګي هـــم نـــاروا دي

❋❋❋

# د ناروغ پوښتنه

د نــــاروغ پوښـــــتنه وكــــړه مـــــسلمانه
ثوابونـــــه پكـــــې وګڼـــــه اســــانه
د مـــسلم پـــــه مـــسلمان دي اوه حقونـــه
كتــــابونو كــــې راغلــــي حديثونــــه

یـــو پوښـــتنه د نـــاروغ ده عيـــادت دی
بل يې تلـل د جنـازې پسې همـت دی
که پرنجـي پسې څـوک حمـد وايـي وروره
تــه بــه "يرحمــک الله" وايــې پــه زوره
بــل ســلام او د ځــواب ورکــول حــق دي
بـل ډوډۍ تـه د دعـوت منـل احـق دي
بــل قــسم نــه خلاصــول د غــاړې بويــه
بـل مظلـوم سـره مـدد کـول دي زويـه
چــې پوښــتنې د نـاروغ تــه کلــه ورشــې
اجــازې ســره پــه کــور وربرابــر شــې
ســلام واچــوه او وکــړه تــرې پوښــتنه
کــړه مــه وړه هلتــه مـا غونـده بړســتنه
هـم يـې دم کـړه هـم ډاډېنـه ورتـه ورکـړه
ډېـرې ناستې او خبـرو ، نـه حـذر کـړه
کـه دې وس و او ډالـۍ دې ځـان سـره کـړه
د نــاروغ د زړه غوښــتنه دې کــره کــړه
دغــه کــار هــم پــه ســنتو کــې ثــواب دی
هـم لامـل د محبـت او هـم صـواب دی
پـــه بـــستر د مړينـــې هيلـــه نـــاروا ده
تمنـــــا د شـــــهادت ښـــــه او روا ده

❋❋❋

# ځنکدن

ځنکــدن کــه چاتــه راشــي ورتــه وايــه
لا الـــــه الا الله ورتـــــه وربښـــــايه
پــه هغــه بانــدې يــې مــه وايــه پــه زوره
هسې نه چې بل څه ووايي بې سوره
تــه لــه ځــان ســره بيــا بيــا کلمــه لولــه
او هغـــه تـــه يـــې وراوروه اکملـــه
کــه نــاروغ پــه ځنکــدن پــه ځــان پــوهېږي
پـــه ســـفر د آخـــرت چـــې روانېـــږي
بايــد ځــان لپــاره وکــړي ښــې دعــاوې
چې يې قبر ښايسته شي لکه ناوې
هــم بــه پاکــه کلمــه وايــي پــه مينــه
پـه دې لاره د سـفر شـي تکـه سـپينه
چې سا ورکړي سلګۍ ووهي او مړ شي
سترګې رډې شي او سپين د سترګو خړ شي
ورته ناست به د مړه سترګې کړي ورپټې
هـم بـه ونغـاړي خـدمت لپـاره متې
هــم بــه زنــه ورتــه وتــړي لــه ســره
هم به ټول بدن جُثه کړي برابره
هم په صبر او په زغم به داسې وايي
پاک الله به يادوي هم به يې ستايي

"إِنَّا للهِ وَ إِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنْ، اَللّٰهُمَّ أَجِرْنِيْ فِيْ مُصِيْبَتِيْ وَاخْلُفْ لِيْ خَيْراً مِّنْهَا".

"مـــونږ بـــې شـــکه د الله یـــو او بـــې شـــکه
همغـــه تـــه ورســـتنیږو بـــې درکـــه
ای الله زمـــا د پیـــښې اجـــر راکـــړې
او له دې غـوره خلـف راتـه عطا کـړې"
بیـا بـه وکـړي دغـه لانـدې دعـا مـړه تـه
زغم او صبر به دننه کړي خپـل زړه تـه
دې خـالي ځـای کـې د مـړي نامـه وایـه
هـم دعـاء کـوه نـږدې او هـم لـه وړایـه

"اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِــ........... وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِيْ الْمَهْدِيِّيْنَ وَاخْلُفْهُ فِيْ عَقِبِهِ فِيْ الْغَابِرِيْنَ وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِيْنَ وَافْسَحْ لَهُ فِيْ قَبْرِهِ وَ نَوِّرْ لَهُ فِيْهِ".

"ای الله بـــښنه وکـــړې دې فلانـــي تـــه
هم ښـه لـوړه درجـه کـړې دې فـاني تـه
لار مونـدونکو کـې یـې لـوړه کـړې سـاتنه
خلیفـــه شـــې د بچـــو وکـــړې پالنـــه
هـم بـښنه مـونږ تـه وکـړې هـم دې مـړه تـه
زمـــونږ رب العالمینـــه دغـــه پـــړه تـــه
هـــم یـــې قبـــر کـــړې پراخـــه هـــم روښـــانه
پـه خپـل رحـم او کـرم کـړې دا اسـانه"

بیا په مړي به اوار کوم یو څادر کړي
یا شړۍ برستن کوم شی پرې برابر کړي

## ویر او ژړا

پروا نشته که د زړه له درده ژاړې
او دې مړي ته دعاء ښېنه غواړې
خو شمارې او ویر او ساندې ناروا دي
اوښکې خیر دی خو د ژبې د بلا دي
د سینې او مخ وهل هم ناروا دي
ګرېوانونه څیرول هم ناروا دي
کومه ښځه چې شمارې او ساندې وایي
ترنم کې دغه مړی پکې ستایي
پېغمبر پرې لعنت وایي دغه سپۍ ده
په دوزخ کې به غپېږي غپېږي غپاپی ده
نه د مړي بل وطن ته نقلول شته
نه په کور د مړي ډېر ایسارول شته
په تجهیز تکفین تدفین یې وکړه بیړه
جنازه په کور کې مه پرده هسې ویره

***

## غسل او کفن

سرشته اول د غسل او کفن ده
ورپسې د جنازې او د دفن ده

مــړی واچــوه تختــې او یــا پــه کــټ کــې
توپیر نشته په ماشوم او یا پـه غـټ کـې
جــامې اوباســه لــه مــړي دغــه زده کــړه
پـه عـورت بانـدې اواره یـې پـرده کـړه
هــم اوبــو کــې پــاڼې واچــوه د بېــرې
د حــدیثو دا خبــرې نــه کــړې هېــرې
هــم کــافور ورســره وســاته پــه خــوا کــې
ښې خبرې کـړه خـو مـه کـوه بـې بـاکې
اســتنجا ورتــه پــردې لانــدې پــه کــار ده
د اســـلام د شـــریعت همدغـــه لار ده
بیــا کــره پــوره اودس وربانــدې وکــړه
خولـه او پـوزه کـې دننـه ورتـه مـه کـړه
لــومړی ښــي اړخونــه ومینځــه ســنت دي
بیا د کیڼ اړخ مینځل په خپل صفت دي
ښه یـې ومینځـه چـې طـاق ځلـه پـوره شـي
درې، پنځه او یا یـې اوه ځلـه کـره شـي
ددې بېـرې پــه اوبــو دا نــور مینځــل دي
خــو آخــر یــې پــه کــافورو پــاکول دي
بیــا پــه غــړو د ســجدو کــافور مــښل دي
په همـدې ترتیـب د غـسل ورکـول دي
هــم مېــره ښــځې تــه غــسل ورکــوی شــي
هم دا ښځه خپل مېړه ښـه لمبـوی شـي

باک یې نشته په حدیثو کې راغلي
په دلیل باندې عمل وي د ښاغلي
بیا کفن ورته د درې جامو په کار دی
نه پګړۍ شته، نه کمیس نه بل سینګار دی
درې څادرو کې راونغاړه دا مړی
بدعتونو باندې نه شي سترې، سترې
د کفن ټوکر هم سپین او هم ارزان وي
مسلمان به په دلیل باندې روان وي
که یې نه لري یوه جامه هم بس ده
چې نیت ښه وي نو بدله یې یو په لس ده
نه کفن د نر او ښځې کې توپیر شته
نه له درې لفافو زیات کوم یو تدبیر شته
که کوم عذر وي تیمم د مړه روا دی
دا ژوندی به یې وهي ورته ادا دی
لکه نه وي څه اوبه یا سړی مړ وي
او نر نه وي دا د ښځو منځ کې پړ وي
یا وي ښځه د نرانو منځ کې مړه وي
فرق یې نشته چې دا ځوانه که زړه وي
***

## د جنازې لمونځ

بیا به پورته جنازه شي او روانه
په اوږو باندې به یوړل شي اسانه

نــه څېــرې پــه جنــازې نــه غــاړکۍ شــته

نـــه کتبـــې او کلمـــې د نـــاوکۍ شـــته

جنـازه بـه د لمانځـه ځـای کـې شـي بـکته

او صــفونه بــه شــي جــوړ لــه شــریعته

نارینــه تــه بــه ســینې تــه امــام ســم شــي

ښـځینه تــه بــه د لنــډې ســره تــم شــي

و لمانځـــه د جنـــازې تـــه نـــه اذان شـــته

نه لمانځه تـه اقامـت پـه دې مکـان شـته

جنـازې کـې نـه رکـوع او نـه سـجده شـته

نـه پـه دې کـې تـشهد او نـه قعـده شـته

پـــه لمانځـــه د جنـــازې کـــې تکبیرونـــه

څلـــور بویـــه پکـــې نـــشته رکعتونـــه

هــم پـــه جهـــر لمـــونځ روا د جنـــازې دی

هــم پــه پټــه لمــونځ ادا د جنــازې دی

پـه لـومړي تکبیـر کـې پورتـه کـړه لاسـونه

تـــر ســـینې، اوږو، غـــوږو دي دلیلونـــه

بیـا یـې وتـړه کـېنږ لانـدې ښـې لـه پاسـه

پـــه ســـینې نامـــه ورپورتـــه بـــې وسواســـه

بیـــا لوســـتل د فـــاتحې بیـــا د ســـورت دي

بیا تکبیـر بیـا د لمانځـه درود سـنت دي

بیـــا درېـــیم تکبیـــر نـــه وروســـته دعاګـــانې

دي راغلـــي احـــادیثو کـــې اســـانې

څلـورم تکبیـر نـه وروسـته بیـا سـلام دی
دغه لمونځ د جنـازې پـه ښـه اتمـام دی
دعاګـــانې لـــه دریمـــه وروســـته دا دي
کـه یـوه وایــې کـه واړه هـم روا دي

١ – "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَ عَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ وَ أَكْرِمْ نُزُلَهُ وَ وَسِّعُ مُدْخَلَهُ وَ اغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدْ وَ نَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَ أَبْدِلْهُ دَاراً خَيْراً مِّنْ دَارِهِ وَ أَهْلاً خَيْراً مِّنْ أَهْلِهِ وَزَوْجاً خَيْراً مِنْ زَوْجِهِ وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ مِنْ عَذَابِ النَّارْ".

ای الله بـــښنه وکـــړه دغـــه مـــړ تـــه
رحـم وکـړه عـا فیـت ورکـړه دې پـړ تـه
تاتـــه درغـــی تـــرې تېـــر شـــه مهربانـــه
د عــزت مېلمــستیا ورکــړه لــه احــسانه
هــم یــې قبــر ښــه پراخــه کــړه معبــوده
هـم یـې ومینځـه اوبـو بانـدې مـسجوده
هــم یــې ومینځــه پــه واورې او ږلــۍ هــم
هم یې پاکـه کـړه ګونـاو نـه ځـولۍ هـم
لکــه څنګــه دې لــه خیــرو پاکــه کــړې
تکــه ســپینه جامــه پاکــه نومــوړې
له خپـل کـوره یـو ښـه کـور ورتـه عطـا کـړه
هم له خپلو یې ښه خپل ورته پیدا کـړه

لـه دې ښـځې هـم ښـه ښـځه ورتـه ورکـړه
هـم دننــه پــه جنــت يــې مــستقر کــړه
هـــم د قبـــر لـــه عذابـــه پنـــا ورکـــړه
هـم د اور لـه بـد شـهابه پنـا ورکـړه .

۲- اَللّهُمَّ أَنْتَ رَبُّهَا وَ أَنْتَ خَلَقْتَهَا وَ أَنْتَ هَدَيْتَهَا إِلىَ الإِسْلاَمِ وَ أَنْتَ قَبَضْتَ رُوْحَهَا وَ أَنْتَ أَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَ عَلاَنِيَتِهَا جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْلَهُ. ۱

" ای الله تــه دده رب يــې تــا پيــدا کــړ
د اسـلام دې هـدايت ورتـه عطـا کـړ
هـم دې روح لـه ده اخيـستی تـه اسره يـې
ته ډېر پوه دده په پټـو پـه ښکاره يـې
مــونږ راغلــي شــفاعت کــوونکي وايــو
چــې بـښنه ورتــه وکـړه تـا بـه سـتايو "

۳- اَللّهُمَّ إِنَّ فُلاَنَ بْنَ فُلاَنَ فِيْ ذِمَّتِكَ وَ حَبْلِ جِوَارِكَ فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ عَذَابَ النَّارِ وَ أَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ اَللّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَ ارْحَمْهُ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمْ. ۲

" ای الله فلانی چې زوی د فلانـي خـان دی
ستا ذمې کې ستا تـړون کـې د امـان دی
هـــم يـــې وســـاته د قبـــر لـــه عذابـــه
هــم يــې وســاته د اور لــه بــد تبابــه

[1] رواه ابو داود.
[2] رواه ابو داود و ابن ماجه .

هــم تــه اهــل د وفــا او هــم د حــق يــې
پـه طاعـت او عبـادت بانـدې احـق يـې
اى الله هـــم ورتـــه وكـــړې ښـــه بـــښنه
هـم پــرې وكــړې لورېينــه پېرزوينــه
يــاالله تــه يــې بــې شــكه ډېــر بــښونكى
ته بې شـكه خـورا ډېـر يـې لـورونكى"
پـه فـلان بـن فـلان كـې بـه هـم يـاد كـړي
د مړه نوم او د پلار نوم به يې پرې ښاد كړي

٤ – اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَ مَيِّتِنَا وَ شَاهِدِنَا وَ غَائِبِنَا وَ صَغِيْرِنَا وَ كَبِيْرِنَا وَ ذَكَرِنَا وَ أُنْثَانَا اَللّٰهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الإِسْلاَمْ وَ مَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الإِيْمَانْ اَللّٰهُمَّ لاَ تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَ لاَ تَفْتِنَّا بَعْدَهُ.[1]

" اى الله زمـــونږ ژونـــديو تـــه بـــښنه
وكــړه هــم زمــونږه مــړو تــه تېرېدنــه
دا حاضــر هـــم زمـــونږ وبـــښه رحيمـــه
او غائـــب هــم زمــونږ وبــښه كريمــه
دا كــشران مــو هــم راوبــښه مــشران هــم
نارينـــه او ښـــځينه مـــسلمانان هـــم
اى الله چــې تـا لـه مـونږ وي ژونـدى كـړى
نو ژوندى يې پـه اسـلام كـړې نومـوړى
او لـه مـونږ دې چـې مـړ كـړى وي حليمـه
په ايمان باندې يـې مړ كړې اى حكيمـه

[1] رواه الترمذي و ابو داود و ابن ماجه و احمد والنسائي.

ای الله مونږ یې له اجره محروم نه کړې
په فتنې مو له ده وروسته مذموم نه کړې"
له سلام وروسته به پورته جنازه شي
د اسلام ښکلي حکمونه به تازه شي
التزام نه د دعاء اجتماعي شته
نه کارونه بې دلیله او بدعي شته
نه ټوټونه مصلې شته د مشرانو
نه اسقاط او دائرې د ملایانو
د لمانځه او د روژې فدیه هم نشته
هدیرې کې دا وېشل تحفه هم نشته

***

# دفن

جنازه به هدیرې کې شي راښکته
کوم ملا به وعظ وکړي نېک سیرته
د پښو لوري ته د قبر به کښې کېږدي
دوه به قبر ته شي ښکته نور به پرېږدي
ددې قبر د پښو لوري نه به مړی
کړي ورښکته شق لحد ته دغه سترې
چې په قبر کې یې ږدي نو دا به وایي
پاک الله به ښو نومونو باندې ستایي
"بِسْمِ اللهِ وَ بِاللهِ وَ عَلَى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ"

"د الله پــه نـــوم زه ږدمـــه دغـــه مــړی

او پـــه مرســـته د الله دا نومـــوړی

او پــه ديــن د پيغمبــر يــې دلتــه ســپارم

هــم بــښنه پــاک الله نــه ورتــه غــواړم"

قبــر ښــه ژور پــه کــار دی يــا لحــد دی

يا په منځ کې شق خاکی د مړه په قد دی

بيــا بــه کېــدي پــرې تبــزې خــامې خــښتې

مــړي لانــدې څــه ســرگړی يــا اوبــښتې

څه سوري موري بـه ختهـو بانـدې بند کـړي

خــښوونکي ثوابونــه پــه څــو چنــد کــړي

بيـــا د قبـــر خـــاورې واړوه پـــه قبـــر

مــصيبت کــې پــاک الله نــه غــواړه صبر

قبــر بايـــد مُـــسنم پـــه داســـې شـــان وي

لکــه شــا بانــدې د اوښ څنگــه بوکــان وي

دا د قبــر خپلــې خــاورې يــې پــوره دي

نــورې مــه راوړه همــدا ورتــه کــره دي

قبـــر بايـــد ښـــه پراخـــه او ژور وي

د ژور قبـــــر والا بـــــه بختـــــور وي

کــه ډېــر مــړي وي يــو قبــر کــې روا دي

چې دوه درې پکې دفن شي بې سودا دي

نــه پــه قبــر څــه ليکــل او نــه مرمــر شــته

نه دوه شناختې شته بدعت کې لوی خطر شته

يــوه شـــناخته ده روا خـــو ضـــرور نـــه ده
دا د ديـــن معاملـــه پـــه غـــرور نـــه ده
څــه کاڼکــاڼي خپــرول پــرې هــم روا دي
د اوبـو شـيندل پـرې هم ښـه بـرملا دي
د اوبـــو شـــيندل د ســـر څخـــه پيلېـــږي
او بيا ښـکته يـې تـر پښو پـورې رسـېږي
چـې اوبـه شـيندي د قبـر کـين طـرف تـه
به ودرېږي چې يې سر شي ښي هدف ته
نـــه د قبـــر پخـــول او لـــوړول شـــته
نه گومبزې او جنـډې پـرې ودرول شـته
پـــه قبرونـــو کېناســـتل هـــم نـــاروا دي
د ټـوکر پـرې خپـرول هـم نـاروا دي
پـــه قبرونـــو ودرېـــدل هـــم نـــاروا دي
منجـاور، ملنـگ کېـدل هـم نـاروا دي
چې محرم وي حاجي ومري پـه احـرام کـې
خوشـبويي سـر پټـول نـشته اسـلام کـې

## تعزيت

د مـړه کـور تـه تعزيـت کـول سـنت دي
دا ډاډېنـه ورکـول پـه ښـه صـورت دي
پـــه ســـنتو کـــې الفـــاظ داســـې راغلـــي
پـــه صـــحيحو احـــاديثو کـــې پيلـــي

"إِنَّ للهِ مَا أَخَذَ وَ لَهُ مَا أَعْطَى وَ كُلٌّ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى فَاصْبِرُوْا وَاحْتَسِبُوْا".[1]

"چې یې واخیسته بې شکه د الله و
دا ورکړی هم په کلکه د الله و
پاک الله سره دا هرڅه په نېټه دي
په معلومې دي ژوندي دي که وټه دي
باید وکړئ مصیبت باندې ښه صبر
او الله نه هیله ولرئ د اجر"
تعزیت ته نه بلل شته او نه غونډې
نه لوستل شته د قرآن او نه دا پنډې
نه دا پورته کړئ لاسونه یو دوه بیا شته
نه اختر کې تعزیت په خامخا شته

❋❋❋

## مړو پسې خیراتونه

دا خوړل د یتیمانو د مالونو
په نامه د صدقې او خیراتونو
دا په خېټو کې سور اور دی ناروا دي
دا چې خوري یې دغه ټول تبا و با دي
غریبان او یتیمان په ویر اخته وي
خېټور یې په مالونو اموخته وي

[1] روا البخاري و مسلم.

غريــــب يـــو پلـــو د مـــړي پـــه ژړا وي

بلـې خـوا تـه د خيـرات پـه واويـلا وي

ســـود او پـــور بانـــدې رااخلـــي مبلغونـــه

خــو كـوي پـرې د دودونـو خيراتونـه

د رواج خيـــرات كـــې نـــشته ثوابونـــه

پـــه اســلام كـــې نــاروا دي بدعتونـــه

بـــې رواجـــه د اولاد صـــدقه ښـــه ده

خــو تـاكلې ورځ بــدعت دى روا نــه ده

هـم تـرې حـج كـول روا دي اضـحيه هـم

او كــولى شــي دعــا هــره شــېبه هــم

نـــه ثـــواب د تـــلاوت ورتــــه رســـېږي

او نـه لمـونځ بـل عبـادت ورتـه رسـېږي

و "ان لـيس للانـسان" دي پـه قـرآن كـې

"اِلا مـا سـعىٰ" راغلـي پـه بيـان كـې

د بــل چــا عمــل هيچــا تــه نــه رســېږي

چــې عمـل وي بـې دليلـه نـه قبلـېږي

***

## د قبرونو زيارتونه

زيـــارت وايـــي ملاقـــات تـــه او ليـــدو تـــه

له نـږدې نـه د ژونـدي يـا مـړه كتـو تـه

نـږدې قبـر هـديرې تـه تلـل سـنت دي

خــو قبـرو پـسې سـفر كـول بـدعت دي

د سفر لپاره درې دي جوماتونه
د مکې او مدینې دي حرمونه
بل مسجد دی د اقصیٰ په فلسطین کې
بل جومات ته سفر نشته زمونږ دین کې
نږدې قبر ته چې ورشې نو ثواب دی
چې په لاره د سنت وي نو صواب دی
هم ترې پند واخله هم مړه ته دعاء وکړه
هم الله نه وېره هیله رجاء وکړه
دغه لاندې الفاظ ووایه سنت دي
خرافي دودونه مه کوه بدعت دي

"اَلسَّلاَمُ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَ إِنَّا إِنْ شَاءَاللّٰهُ بِكُمَ لَلاَحِقُوْنَ نَسْأَلُ اللّٰهَ لَنَا وَ لَكُمُ الْعَافِيَةَ". [1]

" خاوندانو د کورونو مؤمنانو
وي په تاسو دې سلام مسلمانانو
که الله وغواړي مونږ هم در روان یو
رسېدونکي یو مونږ تاسو ته کوچیان یو
مونږ هم تاسو ته روغتیا عافیت غواړو
له الله نه هم خپل ځان ته صحت غواړو"

❋❋❋

---

[1] رواه مسلم .

## په شهید جنازه

شــهیدانو تــه نــه غــسل نــه کفــن شــته
په شهید باندې نه لمونځ نه يې وطن شته
کــه پــرې لمــونځ د جنــازې وشــي روا دی
خو نه فرض نـه ضـروري نـه خامخـا دی
شـــهیدان خپلـــو جـــامو ســـره خـــښېږي
په قیامت کې به سرو وینو کـې پـاڅېږي
خـــو دا هغـــه شـــهیدان چـــې د جهـــاد وي
دا نور نه دي چې مرض کې په دې یاد وي
لکه ډوب چـې پـه اوبـو یـا پـه طـاعون شـي
د دوی حکم د عادي مړه په سمون شـي

***

## د ماشوم جنازه

چې مورزیان وکړي ماشوم وشـي بـې وختـه
او خبـره شـي لـه غمـه ډېـره سـخته
چـې پـه غـږو وي پـوره ژونـدی کـه مـړ وي
لمونځ پرې وکړه چې يې نه کړي هغه پړ وي
هــم بــه غــسل ورکــاوه شــي او کفــن هــم
هم به لمونځ ورباندې کېږي او دفن هـم
او کـــه هـــسې وه ټوټـــه د غوښـــې وینـــې
لمونځ پـرې نـشته زه خبرې کـوم سـپینې

لمونځ همغه دی چې مخکې مو بیان کړ
په تفصیل مو ښه پوره کره عیان کړ
خو دعا یوه همغه څلورمه
نوري نشته خو دا لاندې یادومه
"اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفاً وَ فَرَطاً وَ ذُخْراً وَ أَجْراً". ۱
" ای الله دغه ماشوم مونږ ته تیار کړه
مخکې تلونکې سرشتې ته دا یې کار کړه
هم یې مونږ ته ذخیره کړه ثوابونه
هم یې راکړه مونږ ته ښه ښکلي اجرونه "

# د مړي کور ته ډوډۍ وروړل

د مړه کور ته د ډوډۍ وروړل سنت دي
گاونډیان به یې وروړي دا په ښه نیت دي
یوه ورځ یې دي وروړل په محبت دي
په ټینگار یې پرې خوړل په ښه صورت دي
د مړه کور ته رابلل نشته ډوډۍ ته
د مړه کور کې غونډېدل نشته ډوډۍ ته
نابللي مېلمانه که چېرته راشي
باید ښه خدمت یې وشي او رضا شي

[1] رواه البخاري معلقا عن الحسن .

د مــړه کــور کــې د پخلــي کــول روا دي
چې بلـل نـه وي خـوړل ښتهل روا دي
دا چــې وايــي د پخلــي کــول حــرام دي
تـر درې ورځـو د لـوګي ختـل حـرام دي
دا خبـــره بـــې دليلـــه ده دوســـتانو
پــه دليــل بانــدې بــه ځــو مــسلمانانو

## زکات

بل بنــسټ زمـونږ پـه ديـن کـې د زکـات دی
په اسلام کې خير ښېګړه ده خيرات دی
بـــډايانو بانـــدې فـــرض دي زکاتونـــه
د بې وزلـو حـق دی قـرض دي زکاتونـه
د زکـــات نـــه ورکـــول لويـــه ګونـــا ده
پــه نــصوصو کــې راغلــې هويــد ا ده
ابـــوبکر پـــه اول د خلافـــت کـــې
د زکـــات د مـــانعينو بغـــاوت کـــې
مرتــدان وګڼــل څــوک چــې مــانعين وو
د زکــات نــه ورکــوونکي مــسلمين وو
ابــوبکر پــه جهــاد بانــدې راســم کــړل
ورکوونکــو د زکــات ســره يــې ضــم کــړل

❋❋❋

# د زکات نصابونه

د مـــــالونو نـــــصابونه دي معلـــــوم دي
په څو ډوله حـديثونو کې موسـوم دي
زکـات نــه لــري چــې کــم وي لــه نــصابه
درتـــه وايـــم دليلونـــه لـــه کتابـــه

❋❋❋

# د نقدو زکات

پـــه نقـــودو پـــه نقـــدينو چـــې يـــادېږي
پـه پـښتو کـې دا پـه نغـدو بلـل کېـږي
سره او سپين زر په نقـدينو بانـدې يـاد دي
دا لوټونـــه ســـندونه دي اســـناد دي
د ســـرو زرو نـــصاب شـــل مثقالـــه کېـــږي
چې تولې پوره اوه نيمې ترې جـوړېږي
شـــل مثقالـــه شـــل دينـــاره ســـره يـــو دي
تــول يــې يــو لــه اعتبــاره ســره يــو دي
چـــې نـــصاب تـــه کلـــه ورســـېږي وروره
بيـا زکـات يـې څلوېـښتمه پکـې گـوره
او پنځـه او قيـې سـپين زر هـم نـصاب دی
چې څلوېښت درهمه کېږي دا حساب دی

دا چـــې هـــم کلـــه نـــصاب تـــه ورســـېږي
ځلوېـــښتمه پکـــې ورکـــړه نـــو ســـمېږي
دا لوټونــه یــا پــه ســرو زرو حــساب کــړه
یا یې جوړ د سپینو زرو پـه نـصاب کـړه
د نقــدینو چـــې نـــصاب کلـــه پـــوره شـــي
او یو کال وربانډې واوړي ښه کـره شـي
بیــا زکــات وربانــدې فــرض شــي ادا کېــږي
لــه کــال مخکــې زکاتونــه، نــه فرضــېږي
له کـال مخکـې چـې لګېـږي حـساب نـه دی
په هغـو کـې زکـات نـشته نـصاب نـه دی

❋❋❋

## د غلو دانو زکات

کـــه غـــنم دي کـــه وربـــشې کـــه جـــوار دي
یا که وریجې دي غلو کې دغه شمار دي
او دا نـــورې پـــه دانـــو کـــې ګڼـــل کېـــږي
او زکـــات یـــې پـــه غلـــو کـــې حـــسابېږي
د غلـــو دانـــو حـــساب پنځـــه وســـقه
دا خبـــره پـــه دلیـــل ده موثقـــه

يـو وسـق دى شـپېته صاعه او يـو صـاع دى

پـاو كـم درې كيلـو پـوره پـه اتبـاع دى

دا پنځـــه وســـقه درې ســـوه دي صـــاعه

پــه كيلـــو زر ســل پنځـــه اويــا متاعــه

زر او ســـل دي او پنځـــه اويـــا كيلـــو دي

دا ثابـــت پـــه احـــاديثو دليلـــو دي

خـو اجناسـو كې كمـى زيـاتى كېـدى شـي

د اسلام حكـم چـې نـه منـي پـردى شـي

نبه خو دا ده چې پـه صـاع يـې برابـر كـړي

چې هر څومره وي زكات به پكې وركړي

كــه صــاع نــه وي مــا ســره د مــدينې دى

بې وسواسه بې سـودا بـې انديـښنې دى

د افغـان پـه منـه يـو سـل او شـپاړس منـه

او پنځـــه كيلـــو دپاســـه دي وطنـــه

لـــه دې كـــم كـــې زكـــات نـــشته مهربانـــه

چـــې پـــوره وي بيـــا دى عُـشر مـــسلمانه

چـــې نـــصاب كلـــه پـــوره شـــي بيـــا لـــسمه

بـــې وزلانـــو تـــه پـــه ســـر ســـترگو منمـــه

د غلـــــو دانـــــو عـــــشرونه زكاتونـــــه

وركول دي چې راټـول شـي درمندونـه

په کښتونو کې د کال تېرېدل نشته
مزدورۍ کې د زکات ورکول نشته
چې اوبه يې يا د خوړ يا د باران وي
يا چينې يا کارېزونه بې تاوان وي
په هغو کې همدا عشر دی لسمه
زکات ورکړه نصيحت درته کومه
که اوبه يې په ارټ يا په ماشين وي
په اوبو مصرف کړاو وي زړګی شين وي
په هغو بيا نصف العشر دی شلمه
مسألې به په دليل درته ليکمه

❋❋❋

# د څارويو زکات

په څارويو کې بېل بېل دي نصابونه
کتابونو کې راغلي دي بابونه

# د اوښانو زکات

چې پنځه اوښان څوک ولري نصاب دی
له دې کم کې زکات نشته د احساب دی
چې پنځه اوښان پوره شي يو پسه دی
لکه لمونځ چې ښه کړه په اوداسه دی

تر نهو پورې دا يو دی خو چې لس شي
بيا زکات کې دوه پسونه ورته بس شي
بيا تر څوارلسو دا دوه دي خو پنځلس
چې پوره شي درې پسونه دي تر نولس
بيا تر نولسو دا درې دي خو چې شل شي
بيا څلور پسونه ورکړه کار يې بل شي
تر څلرويشتو څلور پسونه بويه
خو پنځه ويشت کې جونګۍ ده زما زويه
دا جونګۍ بنت مخاض د پوره کال ده
په دويم کې ننوتې په کمال ده
تر پنځه دېرشو همدا يوه جونګۍ ده
خو په شپږ دېرشو د دوه کالو اوښګۍ ده
دا د دوه کالو ته بنت لبون وايي
د عربو په لغت يې داسې ستايي
تر پنځه څلوېښتو دا بنت لبون ده
خو په شپږ څلوېښتو اوښه په سمون ده
دغه ځوانه ده حقه څلور کلنه
تر شپېتو پورې همدا ده ګلبدنه
خو له يو شپېته پنځه اويا تر شمېره
جذعه پنځه کلنه نه کړې هېره

بيـا لـه شـپږ اويـا نـوي پـورې حـساب کـې
دوه لبـونې دوه کلنــې دي کتــاب کـې
بيـا لـه يـو نـوي تـر يـو سل او شـل پـورې
دوه حِقې دي تېرېدو تـه دي دا جـوړې
لـه دې پورتــه هـر څلوېـښتو کـې لبـون ده
هر پنځوسـو کـې حقـه پـه ښـه تـړون ده
کـه پـه چـا بانـدې زکـات کـې جذعـه وي
جذعـــه ورســـره نـــه وي او حقـــه وي
دې حقــې ســره بــه دوه پــسونه ورکـــړي
يـا قيمـت بـه شـل درهمـه برابـر کـړي
او کـه چـا بانـدې زکـات کـې هـم حِقـه وي
خـــو حِقــه ورســره نــه وي جذعــه وي
جذعــه بــه د زکــات مــامور تــه ورکـــړي
او مـامور بـه شـل درهمـه ورپـه سر کـړي
يــا بــه دوه پــسونه ورکــړي دا مـامور هـم
چې خپل حق يې ورپوره شي د مجبور هم
او کـه چـا بانـدې حقـه وي خـو دا نـه وي
ورسـره بنـت لبـون وي ښــه درانــه وي
نـــو يـــوه بنـــت لبـــون او دوه پـــسونه
بــه مــامور ورځخــه واخلــي لکــه ورونــه

یا به شل درهمه واخلي چې قېمت دی
ددې دوه پسونو دا هم یو صورت دی
او که فرض پرې د زکات بنت لبون وي
خو لبون نه وي حقه وي په سمون وي
نو حقه به مامور واخلي او له پاسه
به کوچي ترې دوه پسونه کړي ترلاسه
اویا شل درهمه حق د کوچي بویه
هر یو کار به کړې په عدل زما زویه
که په چابنت لبون وي په زکات کې
خو لبون نه وي مخاض وي التفات کې
نو مخاض سره به دوه پسونه ورکړي
یا به شل درهمه سر وربرابر کړي
که په چابنت مخاض وي او مجبور وي
مخاض نه وي او لبون خو بیا ضرور وي
نو مامور به دا لبون ورنه قبول کړي
او کوچي ته دوه پسونه ورمنقول کړي
یا به شل درهمه سر کوچي ته ورکړي
په همدې ترتیب به هرڅه مقرر کړي
او که نه بنت مخاض وي نه لبون وي
خو یو ابن لبون نر په ښه سمون وي

نــو بيــا دواړه برابــر دي كــوم ســر نــشته
اخيــستلو ددې نــر كـــې خطــر نــشته

❋❋❋

# د پسولونو (ګاڼو) زكات

دا د ښــځو چـــې ګــاڼې دي يــا پـــسولونه
د ســرو زرو يــا د ســپينو يــا لالونــه
دا د نغــدو پــه حــساب او پــه نــصاب دي
دليلونــه يـــې راغلـــي پــه كتــاب دي
روايـات يـې نـور ضـعيف دي هغـه پرېږده
خو صحيح يې د مالک ځان سره كېږده

❋❋❋

# د مېږو او اوزو زكات

دا واړه څــاروي كــه مېــږې كــه اوزې دي
د زكــات يـــې برابـــرې انـــدازې دي
پـه صـحرا كې چې څرېږي غـرو رغـو كې
ورشــوګانو كــې رغــزو او پــه بــاغو كــې
په دې دواړو كې څلوېښت څاروي نصاب دی
له دې كم كې زكات نشته د احساب دی
لــه څلوېــښتو تــر يــو ســل او شــلو پــورې
پكې يـو دی پـه زكـات كې دا بـه ګـورې

له دې پورته بيا تر دوه سوو کې دوه دي
د الله حقونه ډېر په خپل بنده دي
له دې پورته هرو سلو باندې يو دی
چې زکات نه ورکوي هغه بيو دی
په زکات کې به نه خواره نه ړنده وي
منځکوره به ورکوي دا به يې زده وي
نه مامور ته غوښتل لرې ځای ته ښايي
نه به شپون مالونه لرې ځای ته بيايي
د باندې او د کېږدۍ سره شمېرل دي
ښه په عدل د زکات راټولول دي
نه حېلې باندې د يو ځای بېلول شته
نه د بېلو په چل ول يوځای کول شته
شريکان به له شريکو زکات ورکړي
بيا به وېش ددې څارويو برابر کړي
هرو سلو نه د کمو زکات نشته
نفلي ښه دی خو فرضي پرې خيرات نشته
❋❋❋

## د غواگانو زکات

که غواگانې دي يا مېښې غيژگاوونه
جنس يې يو دی خو بدل يې دي نومونه

څرېدونکيو کې زکات دی په حساب دی
دېرش څاروي چې وي پوره دا يې نصاب دی
دا که ښځې که نران وي واړه يو دي
که واړه وي که لويان وي واړه يو دي
هرو دېرشو کې يو سخی د پوره کال دی
اويا سخی ده دواړه يو رنگه يو مال دی
په څلوېښتو کې سخوندرکی يو کلن دی
په دويم کال کې ورګډ دا ميرڅمن دی
پــه څلوېــښتو دوه کلنــه مُــسِنه ده
پــه درېــم کــال يــې ورګــډه زمانــه ده
پــه همــدې ترتيــب يــې ورکــړه زکاتونــه
پــه فرضــي ســربېره هــم دي خيراتونــه
❋❋❋

# د معدن او رکاز زکات

معــدن وايــي هغــه زېرمــې هغــه کــان تــه
چې دې ځمکې کې پيدا دي و انسان ته
لکــه کــاڼي قېمتــي، زر ســره او ســپين دي
کــه يــاقوت کــه زمــرد کــه قــومرين دي
که بېروج دي که لاجورد دي کــه عقيــق دي
که تختې که سوټکي په غره عميــق دي

کــه بلــور دي مــس او اوســپنه ســکاره دي
کــه د ســمې کــه د دښــتې کــه د غــره دي
چــې راووځــي او کــال وربانــدې تېــر شــي
چې نصاب يې ښه پوره وي او يا ډېر شي
بيا که جنس وي کـه قيمـت پکـې زکـات دی
دا د نغــدو پــه حــساب پــه التفــات دی
رکــاز وايــي خــښې شــوې خزانــې تــه
لــه پخــوا د تېــرې شــوې زمــانې تــه
پــه رکــاز کــې بــه پنځمــه برخــه ورکــړي
د بــې وزلــو معيــشت بــه برابــر کــړي
✻✻✻

# مېوې او ترکاري

ترکـــاريو او مېـــوو کـــې زکـــات نـــشته
سبزي جـاتو پـه وښـو کـې زکـات نـشته
هغـه څـه چـې سـاتل کېـږي ذخيـره شـي
توښه کېږي د راتلـونکي ښـه اسـره شـي
پـــه هغـــو کـــې زکـــات عـــشر دی لـــسمه
که يې خورمه سمدسـتي کـه يـې سـاتمه
لکــه تمــر شــو خورمــاوې يــا مميــز شــو
دا لــه نــورو مېــوه جــاتو پــه تميــز شــو

پــه انگــورو کــې لـــسمه زکــات ورکــړه
چې جـوړېږي تـرې ممیـز دا برابـر کـړه
په دې نورو کې که خرڅ شي او قېمت شي
نو کال وروسته بیا د نغدو پـه صفت شـي
سمدســتي پکـې نـه عـشر نـه زکـات شـته
خو نفلي خیرات که ورکړي درجات شـته
پـه زکـات سـربېره هـم د مـسکین حـق دی
چې ټولېږي او په هر وخت کې مطلق دی
خربوزې دي کـه بوهیـان دي کـه منې دي
که انار دي که املوک کـه هنـدوانې دي
کـــه مـــالتې دي، نارنجـــان، کیلـــې، امونـــه
کــه امــرود کــه الــوچې کــه گیلاســـونه
کـه کېنـو کـه سـنترې دي او کـه نـاک دي
که انځر که نشپاتي دي پاک او ساک دي
کـــه گورگـــورې یـــا منـــدتې زردالان دي
اننـــاس دي شـــفتالو، لېمـــو توتـــان دي
نــه یــې عــشر نــه زکــات شــته سمدلاســه
د قېمت یې له یـو کـال وروسـته اوباسـه
خــو توتــان چــې کلــه وچ او ذخیــره شــي
بیا یې عشر دی نصاب یې چې پوره شي
خـــو پـــه وچـــو مېـــوو عـــشر دی لـــسمه
هـــره نېکـــه بنـــه خبـــره دې منمـــه

که بادام دي که پسته که وچ توتان دي
که پسته که جنغوزي دي که غوزان دي
که چڼې که مرخڼې که ممپلي دي
که کښته که وچ انځر د کتولي دي
که کاجو دي که شینۍ دي او یا نور دي
پکې عشر دی چې سپین دي او که تور دي
سبزیجات چې ساتل کېږي ذخیره شي
پکې عشر دی نصاب یې چې پوره شي
لکه نسک شو یا چڼې کرخې، لوبیا شوه
دا دالونه شو اومې وچه دڼیا شوه
دا غلو او په دانو کې ګڼل کېږي
پکې عشر او لسمه حسابېږي
په دې نورو کې نه عشر نه زکات شته
په قېمت کې یې د نغدو په صفات شته
ګیېنې شات چې نصاب باندې پوره شي
پکې عشر او لسمه بیا کره شي
زیره، مرچ، بادیان، سپېرکۍ که داروګان دي
چې قابل د ذخیرې په دې جهان دي
که پومبه ده او که زغرې که کونځلې
یا که باجره ده یا غوښت دي یا سنځلې
له دې ځمکې چې شنه کېږي او راټول شي
او نصاب یې ښه پوره کره په تول شي
او اوبه یې په ارټ او ماشین نه وي
او مالک یې مسلمان وي بې دین نه وي

ورکوي بـه پکـې عشر او لسمه
کـه يـې نـه منـې نـو سـر دې غوځومـه
د مصرف اوبـه ارټ دی کـه ماشين دی
نـصف العشر دی شـلمه دا مـو ديـن دی
چې خورما، انګـور پاخه او د خـوراک شي
بيـا اټکـل پکـې روا د عامـل واک شـي
چـې اټکـل پـه تجربـې او پـه انـصاف شي
ټولولـو پـورې پـاتې حـساب صـاف شـي
څلورمـه يـا دريمـه اخيـستو کـې
پـاتې کيږي و مالـک تـه پـه ايـستو کې
دا احتيـاط دی خطـا شـوی کـه اټکـل وي
په مالک ظلـم ونـه شـي دا يـې حـل وي

***

# د تجارت توکي

چـې عـروض تـوکي سـامان د تجـارت وي
په هغـو کـې هـم د نغـدو پـه قيمـت وي
پـه هـر کـال بـه حـسابيږي شـميرل کيـږي
او زکات بـه يـې لـه نغـدو ايـستل کيـږي
د پرون، مياشتې او کال پکـې يـو رنـګ وي
زکاتونـه د هـر مـال پکـې يـو رنـګ وي
په حيلې چې په زکات واخلي خپل مال څوک
او بيا ور يې کړي زکات کې په هر حال څوک

دا چــــل ول دی نـــاروا دی نـــاروا دی

نغدې ورکړه چې حـساب یـې بـرملا دی

***

## مستفاد مال

مـستفاد دی هغـه مـال چـې ګټـل کېـږي

ځـي راځـي او کلـه کـم کلـه زیـاتیږي

دې کې هم حـولان حـول دی یـو کـال دی

په هر کال پکـې زکـات پـه امتثـال دی

## هغه چې زکات پکې نشته

که دا ځمکه ده کـه کـور کـه یـې سامان وي

که اسـونه، کچـر، خـره، کـه غلامـان وي

یـا کـوم مـال نـصاب تـه نـه وي رسـېدلی

یـا پـه نغـدو لا کـال نـه وي اوړېـدلی

یـا مــوټر وي د سـپرلی پکـې سـپریږي

یا وي فرش او ظرف د کـور اسـتعمالیږي

یـا مرغـان وي د هــوا او یـا چرګـان وي

یـا اوبـو کـې ډول ډول وي کبـان وي

یـا مېـوې وي شـنې چـې نـه ذخیـره کېـږي

ترکـاري وي تـر سـاتنې نـه رسـېږي

پـه دې ټولـو کـې نـه عـشر نـه زکـات شـته

خو که خرځ شي په پیسو کې یې خیرات شته

بیـا د نغـدو پـه حـساب او پـه نـصاب دي
فرض یې بېل دي نفلي هر وخت د ثواب دي

***

# د زکات د لګښت لارې

زکــات حــق دی د محتــاجو فقیرانــو
د بــې وزلــو، غریبــانو، مــسکینانو
بـــل د هغـــو عـــاملانو مـــامورانو
چــې زکــات راټولــوي لــه بــډایانو
خلیفــه بــه ورتــه ټــاکي تنخاګــانې
ورکـوي بـه یـې زکـات نـه شـې روانـې
خـو لـه ځانـه اخیـستل بـه پکـې نـه کـا
قناعــت دې پــه ټــاکلو بانــدې وکــا
بـل هغـوی چـې کـافران او مـشرکان وي
او یـا نـوي مؤمنـان مـسلمانان وي
نـو زکـات ورکـول ځکـه بیـا روا شـي
چې اسلام سره یې مینه را پیدا شي
چې اسلام تـه د دوی زړونـه رامائـل شـي
پـه ښـېګړو د اسـلام بانـدې قائـل شـي
بـل هـم وینځـې غلامـان ازادول دي
بـل جېلونـو کـې بنـدیان ازادول دي
بـل قرضـداره پـوروړي چـې مجبـور وي
مال یې نه وي لنډول د پور ضرور وي

بــل د لارې د الله پــه پــاک جهــاد کــې
لګــول دزکــات کېــږي دې مــراد کــې
بــل دی حــق د مــسافر چــې ورتــه اړ وي
توښــه نــه لــري د مرســتې مــدد وړ وي

***

## کومو خپلوانو ته زکات ورکولی شي او کومو ته نه؟

چــې د چــا نفقــه تــا بانــدې فــرض نــه وي
په ذمه دې د هغـه لګـښت قـرض نـه وي
او دې پورتــه بــې وزلانــو کــې حــساب وي
او خپلوان دې د اسلام په هر کتـاب وي
نــو هغــه تــه زکــات ورکــړه چــې غريــب دی
ستا په مال کې د هغـه پـوره نـصيب دی
ورور او خور، ترورزي، ماما ته زکـات ورکـړه
مامــازي تربــور لالا تــه زکــات ورکــړه
خــوريي او تــرور وراره تــه زکــات ورکــړه
خواښې، سخر، اوښي او تره ته زکات ورکړه
خپلــه ښــځه دې مېــړه تــه زکــات ورکــړي
زوړ دې ځوان دې زاړه ته زکات ورکړي
خپلــې ښــځې تــه زکــات ورکــول نــشته
صــدقه او کــوم خيــرات ورکــول نــشته
چــې مېــړه غنــي وي ښــځه هــم غنــۍ ده
پــه مېــړه نفقــه فــرض د لېــونۍ ده

هــم اولاد او مــور او پــلار تــه زکــات نــشته
دوی په مال کې دي شریک پرې خیرات نشته
❋❋❋

# هغه خلک چې زکات اخیستل ورته ناروا دي

نــاروا ورتــه زکــات دی چــې غنیــان وي
یــا اولاد د پېغمبــر وي ســـیدان وي
ورتـــه عـــشر او زکـــات هـــم نـــاروا دی
ورتـه نـور نفلـي خیـرات هـم نـاروا دی
خـــو ډالـــۍ او هدیـــه ورتـــه روا ده
چـې زکـات نـه وي تحفـه ورتـه روا ده
کـه بـې وزلـي تـه څـوک ورکـړي زکاتونـه
یـا نفلـي ورتـه څـوک ورکـړي خیراتونـه
بیـا مېلمـه پـرې کـوم سـید او یـا غنـي شـي
او لازمــه پــه غریــب قــدرداني شــي
د هغــه ډوډۍ ډالــۍ ده زکــات نــه دی
او ډالۍ یې هم زکـات او خیـرات نـه دی
خــو روا ورتــه پلمــه، چــل، حیلــه نــه ده
پــه چــل ول ورتــه روا حوالــه نــه ده

## هغه څوک چې سوال کول ورته روا او هغه چې ورته ناروا دي

نــاروا دی ســوال غنــي او روغ او جــوړ تــه
ځوان په غړو روغ بدای په خېټې موړ ته
درې کــسانو تــه روا دي چــې ســوال وکــړي
او بيان د خپل حاجت او د حال وکــړي
يــو هغــه دی چــې د روغــې ضــمانت کــې
راګېـر شــوی وي د صــلحې ديانــت کــې
د ضــــمان پــــه انــــدازې ورتــــه روا دي
چې سوال وکړي په دليـل کـې بـرملا دي
بـل هغـه چــې کـوم آفـت وي پـرې راغلـی
زلزلې، قحطی، سـيلاب، اور وي ځپلـی
مال او هال هرڅه تباه وي کور يې ړنګ وي
بې وزلی، ولږې اړتيا سره پـه جنـګ وي
دومره سوال ورته روا دی چـې پـرې جـوړه
ګــوزاره شـي او ســوال مـه کـوه ای مـوړه
بل هغه چې مال او هال يې وي خلاص شوی
په خپل کور کې نه څه زوږ لري نه نـوی
پــرې راغلــې ســخته ولــږه او خــواري وي
او په کور يې نه ډوډی نـه جـواري وي
او لــه قومــه يــې درې راشــي ګوهــان شــي
چې فلانـی دی وږی شـوی دا عيـان شـي

نــو بيـا ســوال د گــوزارې پــه کــچ روا شــي
خــو زيـاتي نــو بيـا گونـا او نـاروا شــي
يا پـرې پـور وي او هـيڅ نـه لـري او اړ وي
يــا نــاروغ وي د مــدد او مرســتې وړ وي
لــه دې پرتــه ســوال حــرام دی نـاروا دی
اور خــوړل دي ناتمــام دی نــاروا دی
څوک چې سوال کوي چې مال يې ډېر او تېر شي
هغه اور غواړي دا مال دې پرې گنډېر شي
د قيامــت پــه ورځ بــه داســې راســتانه وي
چې په مخ به يې د غوښې پوټی نـه وي
که څوک پړی واخلي لاړ شي غره ځنگله تـه
او د خــسو گېـډې راوړي خپـل کالــه تــه
بيــا يــې وپلــوري روانــه گــوزاره کــړي
له دې ښه ده چې په سوال باندې چاره کړي

## د عامل دنده

عامــل هغــه چاتــه وايــي چــې مــامور وي
د زکـــات راټولـــول ورتـــه ضـــرور وي
ټاکــل شــوی د اســلام لــه حکومــت وي
او نائـــب لـــه امـــارت او خلافـــت وي
د هغـــه دنـــده انـــصاف او عـــدالت دی
د زکـــات د ټولولـــو ښـــه صـــورت دی
نــه بــه ظلـم کـوي نــه بــه څــه تېـری کـړي
نه به مال کې کوم کنډو او نه سوری کړي

نه بـه لـرې څـوک رابـولي و خپـل ځـان تـه
نه به زيان رسوي هيڅ کـوم مـسلمان تـه
نـــه روا دي چـــې قبولـــه هديـــه کـــړي
يـا قبولـه څـه ډالـۍ او يـا تحفـه کـړي
نــه کــره مـــال اخيـــستل ورتـــه روا دي
نـــه د خلکـــو ربـــړول ورتـــه روا دي

# سرسايه

سرســـــايه د عيـــــدالفطر صـــــدقه ده
د بـــې وزلـــو مـــسکينانو نفقـــه ده
مــسلمان کــه ځــوان او زوړ کــه نارينــه وي
غلام وينځـه غـټ او ووړ کـه ښځينه وي
سرســايه د ووړ اختــر وربانــدې فــرض ده
د خوارانو بې وزلانو پرې دا قرض ده
ورکــوي بــه يــوه صــاع لــه کــوم طعامــه
فريـــضه د سرســـايې ده ډېـــره عامـــه
چـــې يـــې وس د ورکولـــو وي ضـــرور ده
دا لپـــاره د غريـــب او د مجبـــور ده
د اختــر لــه لمانځــه مخکــې ورکــول دي
په اختر کې يا روژې کې يې وېشل دي
يوه صاع په تـول پـاو کـم درې کيلـو کيږي
خو اجناس ځيني له دې نه هـم کميږي

بایـد تـول د هـر شـي یـو صـاع برابـر وي

توپیر نه لري هر جنس یې سر په سر وي

بایـد جـنس وي نغـدې نـشته پـه دلیـل کـې

بریـا بویـه امتثـال او پـه تمثیـل کـې

یـا خورمـا دي یـا ممیــز دي یـا اوړه دي

یـا وربـشې یـا غـنم یـا بـل خـواړه دي

لکـه کـورت شـو اویـا وریجـې یـا جـوار شـو

یا کلچې، کېک، مټایان د ښار بـازار شـو

په دې ټولو کې یو صاع پـه هـر یـو کـس ده

څو چې ښه وي هومره ښه ده خو په وس ده

***

# په ډالۍ او خیرات کې رجوع

کــه ډالــۍ او یــا زکـات دې چاتــه ورکـړ

څه تحفه او یـا خیـرات دې چاتـه ورکـړ

چـې بیـا بېرتـه یـې تـرې اخلـې روا نـه دي

اخیستل یې دین غیرت کې صفا نـه دي

نــه روا یــې اخیــستل پــه څــه قیمــت دي

نه روا یې سـتنول پـه هـیڅ صـورت دي

چـې ورکـړی شـی تـرې اخلـي او رټـي یـې

لکه سپی چې کوي کانګې بیا څټي یـې

***

# روژه

څلــورم رکــن بنـــسټ چـــې د اســلام دی

دا روژه ده ددې کـــار پـــه التـــزام دی

چـــې بــالغ وي او عاقــل روغ مــسلمان وي

نــو روژه وربانــدې فــرض د رمـضان وي

دا پـــه مـــنځ کـــې د شـعبان او د شـــوال ده

یوه میاشت ده چې تکرار په هر یو کال ده

دغـــــه میاشـــــت د ثوابونـــــو مغفـــرت ده

د الله د پېرزوینـــــــو د رحمـــــــت ده

پـه دې میاشـتې کـې یـوه د قـدر شـپه ده

دا لــه زرو میاشــتو هــم کـره پـوره ده

# د میاشت لیدل او اثبات

پــه لیــدو دي کــه روژه ده کــه اختــر دی

چــا چـــې ونیـــوه روژه نـــو بختـــور دی

پـه لیـدو او پـه اثبـات د میاشـت روژه کـړه

په اثبات د میاشت اختر کړه او بوزه کړه

ددې ټـــولې نـــرۍ دوه دي مطلعونـــــه

دوه روژې دي د نـــرۍ دوه اخترونـــه

دغـــه نیمـــه نـــرۍ نـــن نیمـــه ســـبا ده

نیمــه شــپه ده نیمــه ورځ ده بــرملا ده

مطــالع پــه سياســي بريــدونو نــه دي
دا روژه اختـر د شک لـه ورونـو نـه دي
پـه مـشرق کـې د مغـرب پـه ليـدو نـه ده
خو مغرب کې د مشرق پـه ليـدو نـه ده
د عربــو جزيــرې کــې چــې ښکاره شــي
د مغــرب خلکــو لپــاره دا پــوره شــي
خـــو د هنـــد افغانـــستان لپـــاره نـــه ده
چـين او روس او د ايـران لپـاره نـه ده
هغـه مياشـت دوی تـه سـبا تـه رارسـېږي
نـن خـو نـه سبا ماښـام تـه ليـدل کېـږي
روښـنايي د مياشـت تـه هـيڅ اعتبـار نـشته
شين اسمان کې بې ليـدو بلـه لار نـشته
پـه عـادل گــواه اثبـات د مياشـتې کېـږي
چــې مطلــع د ټولــو يــو وي ثــابتېږي
او که وريځ وه شعبان دېرش پـوره کـول دي
په اخر کې رمضان دېرش پوره کول دي
قمري مياشتې يـا دېـرش وي يـا نهـه ويـشت
نه يو دېرش راځي او نه کله اتـه ويـشت
چــې مطلـع سـره يـو نـه وي نـو آلات بيـا
معتبـر نـه دي د مياشـتې پـه اثبـات بيـا
او کـــه يـــو وي مطـــالع نـــو معتبـــر دي
لــه فطـرت سـره يـو رنگـه مـستقر دي

د شعبان د میاشت لیدو کې کوښښ وکړه
پـه راتلـو او پـه وتـو کې کوښښ وکړه
پـــه ســـهار کـــې راختـــل معتبـــر نـــه دي
پـه سـهار کـې ډوبېـدل معتبـر نـه دي
چې نهه ویشت د شعبان شي او ماښام شي
دغه وخت کې میاشت لیدل په اهتمام شي
پـــه لیـــدو د میاشـــت سـبا تـــه رمــضان دی
او که نه نو بیـا دېرشـم ددې شعبان دی
چې دېرشم وي د شعبان او ورځ د شک وي
روژه نه کېږي بـاور دې بایـد کلـک وي
د شـــعبان لـــه شپاړســـمه تـــر رمـــضانه
روژه منـــع ده دا زده کـــړه مـــسلمانه
دا یـــوه دوه روژې مخکـــې نیـــول نـــشته
دا دي منـع بـې دلیلـه کـول نـشته
چې نهـه ویـشت روژې بیـا کلـه پـوره شي
او ماښام د دېرشم هم کله ښکاره شي
نـــو د میاشـــت د لیـــدو وکـــړئ کوښـــښونه
برابـــر کـــړئ پـــه دلیـــل عبادتونـــه
کـه ښکاره شـوه نـو سـبا تـه بیـا اختـر دی
او کـه نـه نـو رمـضان دی بختـور دی
کـــه د ورځـــې گـــواهي راغلـــه ناوختـــه
روژه ماتـه شـوه او نـشته پـه چـا سـخته

لمونځ بـه وروسـته شـي سبا تـه بـه ادا شـي

او اختر بـه نـيم دا نـن او نـيم سـبا شـي

***

## پیشنمی

پیشنمی د شپې اخـر کـې خـوړل ښـښل دي

د روژې لپـاره ځـان خپـل مـړول دي

پیشنمی چې ځومره وروسـته وي ثـواب دی

د سپېدو لـه داغـه مخکـې دا جنـاب دی

د سـبا روژې تــه شــپې نــه نیــت پکـار دی

پـــه نیتونـــو د اعمـــالو دارمـــدار دی

خو د نیت کول په خوله نـه دي پـه زړه دي

چې په خوله نیتونه وایي هغـه پـړه دي

چې اذان وشي د چا پـه لاس کـې جام وي

نو دې وڅښي له دې وروسته دې بیا پام وي

خـــو د نـــورو پـــسې تلـــل پاڅېـــدل نـــشته

له دې پرته نور خوړل، څښل، کول نشته

***

## د روژې بریدونه

د ســـهار لـــه ســـپېده داغـــه تـــر ماښـــامه

روژه ونیـــسه پـــه نیـــت او لـــه ښـــه پامـــه

دا خپـره رڼـا افـق کـې سـپېده داغ دی
د روژې نیـول صـحت لپـاره بـاغ دی
په روژې کې کلک پرهېز دی له خوراکه
لـه کـوروالي، بـدو ردو او لـه څـښاکه
چې لمر پرېوځي پـه مغرب کې او پنا شي
او مـشرق کـې تـوره لیکـه راپیـدا شي
نـو ماښـام شـو روژه ماتـه کـړه روا شـوه
لـه سـهاره تـر ماښـام روژه ادا شـوه
روژه ماتي کې چې بیـره کړې ثـواب دی
دا ثواب هله ثواب دی چې صـواب دی
دا د شـپې روژه وصـال هـم نـاروا دی
دا کنځلـې او جنجـال هـم نـاروا دی

***

## د روژې ماتوونکي

پـه خوړلـو د هـر شـي روژه مـاتېږي
هـم پـه څـښلو د هـر شي روژه مـاتېږي
پـه کـوروالي بانـدې هـم روژه مـاتېږي
روژه بویه پـه پرهېز چې نیـول کېږي
چـې گونـا کـړي دروغ او بـدې ردې وایـي
د روژې نیـول هغـه سـره نـه ښـایي

ښــکلول چــې جمــاع نــه وي نــو روا دي
د مسواک وهـل روا دي بې سـودا دي
چې جنب بانـدې سهار شي پـروا نـشته
روژه نــه مــاتېږي کومــه ژړا نــشته
پــه رنجــو هــم روژه نــه مــاتېږي گــوره
بــې دليلــه روژه مــه مــاتوه وروره
د دوا پــه پیچکــارۍ هــم نــه مــاتېږي
کــه د غوښــې کــه د رگ وي روا کېــږي
کــه دوا پــه پیچکــاري ســتن لگــول دي
که د مار لړم مچی بامبور چیچـل دي
دا ټـول يـو شـی دي روژه پـرې نـه ماتېږي
ورتـه ووايـه پـه دې چـې نـه پـوهېږي
پــــه لمبلــــو لمــــدولو نــــه مــــاتېږي
هـم پـه خـولې کـې اچولـو نـه ماتېږي
تېرولــو نــه ځــان ژغــوره چــې مــاتېږي
مضمـضه او استنــشاق بــه ضـرور کېـږي
استنــشاق کــې هــم ډېــر مــه کــوه زورونــه
غړغـړه مـه کـړه، کـړه غـسل اودســونه
روژه نــه مــاتېږي قــي او کــانگو بانــدې
د عمد حديث ضعيف دی او ډېر لانـدې
نــه مــاتېږي د ويــښتانو پــه خرييلــو
نــه مــاتېږي پــه نوکــانو غوڅولــو

نــــه مـــرهم دارو پــــه زخـــم لګولـــو
نــه د عطــرو خوشــبويي پــه بويولــو
نـــه مـــاتېږي هـــم د بښـــکر پـــه لګولـــو
نــه مــاتېږي احــتلام پــه خــوب کېــدلو
کـه خولـه ومينځـې او تـو تـولې اوبـه کـړې
او بيا لاړې تېروې نـو شـک بـه نـه کـړې
نـــــه مـــــاتېږي پــــــه دې لاړو تېرولــــــو
نــه مــاتېږي د خپــل ځــان پــه غوږولــو

***

## حائضې او نفاسې لپاره روژه

حــيض نفــاس کــې د روژې خــوړل روا دي
او نيول يــې دغــه وخــت کــې نــاروا دي
خو چــې پاکــه شــي قــضا وربانــدې فــرض ده
لمونځ پرې نشته او روژه وربانديې قرض ده

## چې روژه ورته روا ده

دې ځلـــورو تــــه روژه خــــوړل روا دي
خــو فديــه بــه ورکــوي، دا خامخــا دي
يــو هغــه چــې سـخت مــريض وي لاعلاجــه
د روغتيــا هيلــه يــې نــه وي لــه مزاجــه
بـــل هغـــه شـــيخ فـــاني او فـــانۍ ښـــځه
چې ښځي بوډا بوډۍ وي وړاندې مه ځه

د روژې نيولــو نــه وي پــه مــلا كــړوپ وي
غونچې مخ په سترګوتت په خوله كشړوپ وي
بلـــــه ښـــــځه حاملـــــه او اميـــــدواره
چې بچـي بانـدې وېرېږي دا هوښـياره
بلـــه هغـــه مرضـــعه تـــی وركـــوونكې
په ماشوم چې وي تي خوري وېرېدونكې
يــو مــسكين تــه د يــوې ورځــې بــدل كــې
د ډوډۍ دي وركول پــه ښــه عمـل كــې
يو مسكين تــه بــه دوه وختــه ډوډۍ وركـړي
د فـديې حـساب بـه داسـې برابـر كـړي
كه يو ځل دوه وخته دېرش كـسه مـاړه كـړي
او يا هره ورځ تيار يـو تـه خـواړه كـړي
دواړه چـــارې دي روا پـــروا يـــې نـــشته
كه بې بې وي كـه بابـا پـروا يـې نـشته
دا بدلـــه شـــوه د روژې قـــضا يـــې نـــشته
دا رخـصت دی د اسـلام پنـا يـې نـشته

***

## د مسافر روژه

مـــــسافر تـــــه د روژې خـــــوړل روا دي
خــو روژه نيــول اولــی پــه اعتنــا دي
كه سـختي وي بيـا خـوړل يـې فـضيلت دی
اسـانی كـې يـې نيـول كـره همـت دی

چې په کور شي قضايي وربانـدې فـرض ده

بيا به نيـسي دا روژه وربانـدې قـرض ده

د سـفر انـدازه مخکـې تېـره شـوې

دا خبـره مانـه، نـه ده هېـره شـوې

سـفر يـو دی کـه اسـانه او کـه سـخت وي

بې کړاوه که کړاو په کوم کـم بخـت وي

که په پښو پلی روان وي او کـه سـپور وي

په څاروي، موټر، بېړۍ، جهاز وي نور وي

خامخـا نيـول سـفر کـې تقـوىٰ نـه ده

ځان ليدل ضرور خطر کې تقـوىٰ نـه ده

***

# د مجاهد روژه

مجاهـد چـې پـه سـفر کـې د جهـاد وي

او روان د خپـل مـولا پـه انقيـاد وي

د روژې حکـم يـې درې ډولـه صـورت دی

يـو روا بـل نـاروا بـل فـضيلت دی

پـه عـادي حـال کـې خـوړل ورتـه روا دي

خو د جنگ په ورځ نيول بيـا نـاروا دي

په سختۍ کـې يـې خـوړل بيـا فضيلت دی

او نيـول يـې هـم روا دي عبـادت دی

چې په کور شي قضايي وربانـدې فـرض ده

بيا به نيـسي دا روژه وربانـدې قـرض ده

***

## له مړه روژې

که څوک ومري او روژې يې وي خوړلې
او تر مړينې يې دا نه وي بيا نيولې
نو وارث يا وارثان به قضا راوړي
له دليل او له حجت څخه به ناوړي
د قضا دليل قوي فديه ضعيف دی
چې دليل د حق مني هغه حنيف دی

***

## نفلي روژې

د رمضان روژه ده فرض نورې نفلي دي
د نفلي روژو نيول هم کمالي دي
ثوابونه دي ريا چې پکې نه وي
بدعتونه برملا چې پکې نه وي
د نفلي روژو نيول دي ثوابونه
او په نه نيولو نشته عذابونه

***

## ټول عمر روژه

د روژې نيول ټول عمر ناروا دي
په حديث کې منع شوي په بيا بيا دي

عبــادت هــسې د ځــان کــړول نــه دي

زمونږ دين هسې لړل او تپل نه دي

*** 

## د داود (عليه السلام) روژه

پـــه نفلـــي روژو کـــې غـــوره د داود دي

په اخلاص او په ښه نيت د خپل معبود دي

پيغمبــر وايــي تــر دې نــشته ښــه نــورې

له دې غوره روژه نشته وروره، خورې

هغــه دا دي چــې يــوه ورځ بــه روژه وي

او دا بلــه ورځ بــه ماتــه پــه بــوزه وي

*** 

## د شوال شپږ روژې

د واړه اختــر د مياشــتې نــوم شــوال دی

د اختر پـه ورځ روژه نيـول وبـال دی

په شوال کې شپږ روژې نيـول ثـواب دي

رمضان سره د يـو کـال پـه حساب دي

کـه يـو ځـای کـه بيلـې بيلـې وي روا دي

په شوال کې يې پوره کړه بې سودا دي

***

# د عرفې روژه

ذوالحجـه د لـوی اختـر د میاشـتې نـوم دی
او لسم يې لوی اختر دی چې معلوم دی
او نهـــم د ذوالحجـــې يـــې عرفـــه ده
عرفـــه د ثوابونـــو ښـــه تحفـــه ده
عرفـــې پـــه ورځ روژه دومـــره كـــره ده
چې تېر كـال او د راتلـونكي كفـاره ده
خـــو حـــاجي تـــه عرفـــات كـــې نـــاروا ده
مـسأله چـې د دليـل ده، نـو همـدا ده

***

# د عاشورې روژه

چـــې لـــسم د محـــرم شـــي عاشـــوره ده
پـه دې ورځ روژه د تېـر كـال كفـاره ده
روايـــاتو كـــې لـــسم دی هـــم راغلـــی
او نهـــم يوولـــسم دی مـــا ليـــدلی
كـه دا درې واړه روژه شـوې نـو اعلـیٰ ده
دا تـــر ټولـــو فـــضيلت لـــري اولـــیٰ ده
كـــه درې نـــه نيـــسې نهمـــه او لـــسمه
روژه ونيـــسه خبـــره دې منمـــه
يـــا كـــه ونيـــسې يـــواځې دا نهمـــه
يـــا لـــسمه ورســـره يوولـــسمه

دغـــــه هـــــره طريقـــــه پکـــــې روا ده
احـــاديثو کـــې راغلـــې بـــرملا ده

***

# د شعبان د سر روژه

د شـــعبان د ســـر دوه ورځـــې ســـرر بـــولي
دا ســـرر روژې نيـــول پيغمبـــر بـــولي
ثوابونـــه دي نيـــول يـــې فـــضيلت دی
په روژو کې هم ثواب دی هم صحت دی
کـــه دې وس وي روژې نيـــسه مـــسلمانه
خېټه کورې کړه چې بچ شې لـه تاوانـه

***

# دوشنبه او پنجشنبه

دوشـــنبه او پنجـــشنبه روژه ســـنت ده
پــه دې ورځــو کــې روژه د عزيمــت ده
د يـــوې اونـــۍ اعمـــال چـــې حـــسابېږي
په دې ورځو کې اسمان ته پورته کېږي
چـې روژه يـې او عمـل دې پورتـه لاړ شـي
دا بـه تاتـه د نېکيـو غـوره ويـاړ شـي

***

# ایام البیض

د ســـپوږمیزو میاشـــتو هـــره دیارلـــسمه
ورســـره هـــم څوارلـــسمه، پنځلـــسمه
دا درې ورځــې پــه ایــام البــیض یــادیږي
تغلیبــاً د شــپو پــه نــوم نومــول کېــږي
ددې درې ورځــو روژه دومــره ثــواب دی
چې د دېرشو ورځو میاشتې په حساب دی
چا چې هره میاشت دا درې ورځې پوره کړې
لکه ټول کال او ټول عمر یې کره کړې
بـاک یـې نـشته کـه د نـورو ورځـو درې وي
خو په میاشت کې درې نیول د نبي اسرې وي

❋❋❋

# ناروا روژې

څـــو روژې دي نـــاروا لـــه دې خبـــر شـــه
نـــاپوهۍ او جهالـــت نـــه رابهـــر شـــه
یـــو وړوکـــی عیـــدالفطر بختـــور دی
بل لسم د ذوالحجې چې لوی اختـر دی
بـــل ایـــام تـــشریق وګڼـــه پـــه دې کـــې
دا خبـــره زمـــا ومنـــه پـــردې کـــې
د تشریق ورځې درې ورځې دي دا زده کړه
حوصـــله دې لـــږه پلنـــه او اوږده کـــړه

دا د لــوی اختــر پــسې درې ورځــې بولــه
روژه نــه شــې بــې تميــزه او بــې تولــه
خو په حج کې چې حاجي کله بې وس وي
او څاروی د هديې نه وي نو بيا لس وي
درې روژې به همدې ورځو کې کـره کـړي
نورې اوه به بيا په خپل کور کې پوره کړي
بــــل يــــواځې د جمعــــې ورځ نـــاروا ده
مخکې وروسته ورسره کـړه بيـا روا ده
بــــل يــــواځې د شــــنبې هــــم نـــاروا ده
دا خبــره پــه حــديث کــې بــرملا ده
بل د شک په ورځ دېرشم چې د شعبان وي
مياشت ونه وينـې او شـک د رمـضان وي
پـه دې ورځـې هـم روژه نيـول حـرام دي
پـه دليـل بانـدې حکمونـه د اسلام دي
ســمه نــه ده ورځ دوه مخکــې لــه رمــضانه
دا احتيــاط نــه دی گونــا ده مــسلمانه
اخـــري پـــنځلس ورځـــې د شـــعبان دي
نـــاروا پکـــې روژې پـــه مـــسلمان دي
خــو روا دي هغــه چاتــه چــې عــادت وي
په څه ورځـو د نفلـي دا يـې صفت وي
تل يـې نيـسي نـو بيـا دې کې هـم روا دي
د منـــښتې هـــم روا هـــم د قـــضا دي

هـم بـه ښـځه اجـازه غـواړي مېـړه نـه

بې له دې يې نفلي نه کېږي لـه زړه نـه

هــم روژه د عرفـــې پـــه عرفـــات کـــې

ناروا ده هر حاجي ته په خپل ذات کې

❋❋❋

# ځينې نور احکام

کــه نفلــي روژه چـــا ونيـــوه روا دي

چې يې ماته کړي بې شکه بې قضا دي

کـه پـه هېـره روژه وخـوري بـاک يـې نـشته

قضا نه لري چې هېر وي واک يـې نـشته

کـه چـا درکـړه څـه بلنـه مېلمـستيا تـه

کـه روژه وې نـو هـم ورشـه ملگرتيـا تـه

هلتــه دوه رکعتــه لمــونځ او دعــاء وکــړه

د بلونکي زړه په دې کار باندې ښه کـړه

د نفلــي روژې والا اميـــر د ځـــان دی

که يې نيسي که يې خوري کار يې اسان دی

❋❋❋

# تراويح

چـې پــه فرضــو وي ســربېره نوافــل دي

دا د شـپې قيـام الليـل دي فـضائل دي

تهجــد او هـــم يـــې وتـــر دي نومونـــه

رمــضان کـــې تـــراويح دي دا نفلونـــه

واړه يــو دي خــو نومونــه يــې بــدل دي
چې يې بېل بولي خبرې يـې اټکـل دي
بـــې لـــه وتـــرو دا اتـــه دي زمـــا وروره
رب دې وســـاته د بـــدو لـــه پېغـــوره
شل صحيح حديث کې نشته ټول ضعيف دي
مقبول نه دي د مـردودو پـه رديـف دي
روايـــات لـــه پېغمبـــره هـــم اتـــه دي
صـــحابه و لـــه عمـــره هـــم اتـــه دي
دا د جمـــې التـــزام يـــې هـــم بـــدعت دی
او د خـتم اهتمـام يـې هـم بـدعت دی
پکـــې خـــتم هـــم روا هـــم جماعـــت دی
التـــزام گڼـــل د دواړو ضـــلالت دی
خو لـه جمې يـې پـه کـور کـول افضل دي
قرائـت پکـې ښـه ډېـر کـول اکمـل دي
کـه قيـام دی کـه رکـوع ده کـه سجدې دي
هغه ښه دي چې هم ښـې او هـم اوږدې دي
پـــه پيـــسو بانـــدې ختمونـــه نـــاروا دي
خوراکونـــــه بدعتونـــــه نـــــاروا دي

***

## د قدر شپه

رمــضان کـــې يـــوه شـــپه د قـــدر شـــپه ده
دا لـه ټولـو شـپو نـه ښـه د اجـر شـپه ده

دا لــه زرو میاشــتو ښــه ده چــې طاعــت وي
په دې شپه کې گونا نـه وي عبادت وي
پــه وروســـتیو لــسو شــپو د رمــضان کـــې
دا په طاقو شپو کې گوره هـر مکـان کـې
یوویــشتمه کــې کېــدی شــي روایــت دی
اوه ویشتمه کې امیـد یـې پـه قـوت دی
په دې شـپې کې کومه خـاص علامـه نـشته
دې لپـــاره څـــه ټـــاکلې جامـــه نـــشته

✵✵✵

# اعتکاف

پــه وروســـتیو لــسو شــپو د رمــضان کـــې
اعتکاف دی شپه او ورځ دغه زمـان کـې
په جومات کې بـه دا کېږي چـې جامع وي
معتکف به هـم ساجد هـم بـه راکـع وي
ځینــې وایــي دا پــه بــل کــې ادا نــه دی
دا لــه درې جومــاتو پرتــه روا نــه دی
دا یـــو مـــسجد الحـــرام دی پـــه مکـــې کـــې
بـــل مـــسجد نبـــوي دی مـــدینې کـــې
بـل یـې مـسجد الاقـصیٰ دی فلـسطین کـې
خو خبره پـه دلیـل ده زمـونږ دیـن کـې

د اعـــلام النـــبلاء چـــې روایـــت دی[1]
هغه شاذ د ښه تحقیق په درایت دی
پـه قـرآن کـې مـساجد لفـظ مطلـق دی
جوماتونو ته شامل دی همدا حق دی
مقیـد ګڼـل پـه شـاذ بانـدې ناسـم دي
د مطلـق ګڼـل افـرادو کـې اعـم دي
اعتکـاف تـه نارینـه هـم کېناسـتی شـي
اعتکاف ته ښځینه هم کېناستی شي
خـو یـوائې پـه جومـات کـې اعتکـاف دی
اعتکـاف پـه ګونـاهونو اعتـراف دی
نارینـه بـه هـم جومـات کـې اعتکـاف کـړي
ښځینه به هم جومات کې اعتکاف کړي
په پردې به یوځای بېل کړي په جومات کې
په هغه کې به اوسېږي په ثبات کې
د شـلمې مـازیګر چـې ښـه تمـام شـي
او دا شپه د یویشتمې شي ماښام شي
دغـه ځـای تـه بـه دننـه شـي پـه مینـه
په ښه نیت او په اخلاص او له یقینه
که څه کټ وي که توشک، بالښت، بستر وي
ټول روا دي که د ښځې که د نر وي

[1] سیر اعلام النبلاء

معتکف به په خلوت کې هلته ناست وي
پروا نشته که ولاړ وي او که ملاست وي
ذکـــر، فکـــر او لمونځونـــه تـــلاوت دی
اعتکـاف کې ښه طاعت او عبادت دی
نــه جمــاع مباشــرت شــته اعتکــاف کــې
نه وتل بې له حاجت شته اعتکاف کې
که حاجت وي اودس ماتي ته دې وځي
نورو چارو او کارونو ته دې نه ځي
کــه خبــره ضــروري وي او جومــات تــه
خپله ښځه یا څوک راشي ملاقات ته
نــو روا دي چــې خبــرې ورســره کــړي
دا خبره دې په ښه توګه پوره کړي

# حــج

مسلمان چې هم بالغ وي هم عاقل وي
هم ازاد وي، غلام نه وي ښه عا مل وي
او مالــدار وي وس تــو ښــه لــري د لارې
او د کور یې ښه کره پوره وي چارې
پــوروړی نــه وي خپــل ورســره مــال وي
او دا مال یې حرام نه وي ښه حلال وي
په هغه باندې حج فرض دی حج به کاندي
دغه حکم دی که ژاړي او که خاندي

او د ښــځې يــا محــرم وي يــا مېــړه وي
دواړه يو دي که ځوانان وي که زاړه وي

محـرم هغـه دی چـې تـل وي پـرې حرامـه
او نکـــاح ورســـره نـــه کېـــږي تمامـــه

د ماشــوم غــلام او وينځــې حــج نفلــي دی
چې بالغ او يـا آزاد شـي بيـا فرضـي دی

که څوک ومري حج ونه کړي او پرې فرض وي
په هغه بانـدې دا حـج لکـه د قـرض وي

د هغـــه د حـــج قـــضا پـــه کـــوم وارث ده
د هغـه لـه مالـه فـرض پـه دې باعـث ده

يـا يـې بـل څـوک د هغـه لـه مـال ادا کـړي
خو چې خپل حج يې وي کړی بيا به دا کړي

يا که څوک چېرته مـريض نـاروغ معـذور وي
او مالدار وي حج پرې فرض وي او ضرور وي

بيا بل څوک حج ته لېږلی په خپل مال شـي
له هغه څخـه بـه لاړ کـوم انـدېوال شـي

شرط يې دا دی چې حج کړی يې د ځان وي
او اوس بل ته بدل حج باندې روان وي

خو که خپله يـې حـج نـه وي کـړی، بـل نـه
حج ادا نه دی حساب يې شو له خپل نـه

حــج ځــانګړي مناسِــک دي او افعــال دي
پـه مکـې مکرمـې کـې پـه هـر کـال دي

حج په ټول عمر کې يو ځل کول فرض دي

چې مال ولرې کول يې په تا قرض دي

نور حجونه او عمرې نفلي ثواب دی

که يې نه کړې نه گونا ده، نه عذاب دی

حج عمره د گوناهونو کفاره ده

د ښځې ښه لامل او ښه چاره ده

چې جهاد وي فرض عين حج ته به نه ځې

چې په تا باندې وي دَين حج ته به نه ځې

***

## میقاتونه

ټاکل شوي د احرام دي ميقاتونه

د هر لوري د هر چا دي خپل بريدونه

که څوک حج او يا عمرې ته روانېږي

بې احرامه به ميقات نه، نه تېرېږي

ميقاتونه ټول پنځه دي زما وروره

ميقات وپېژنه بيا اوځه له کوره

اهل شام او شماليانو ته جحفه ده

مدينې ته خپل ميقات ذوالحليفه ده

او دا قرن المنازل دی د نجديانو

او هغه لور ته د ټولو مؤمنانو

ذات عرق يې د عراق او د ختيز دی

مسلمان زمونږه ورور زمونږ عزيز دی

او میقــات چـــې یلملــم دی د یمـــن دی
او یمـــن تـــه مـــوازي د هـــر وطـــن دی
لـــه میقاتـــه چـــې دننـــه د چـــا کـــور وي
د هغه میقات خپل کور د خپلې مـور وي
د مکـــې د خلکـــو هـــم مکـــه میقـــات دی
که یې کور دی که یې کلی که جومات دی
لـــه میقاتـــه لـــرې هـــم احـــرام روا دی
له خپل کـوره او پـه لاره بـې سـودا دی
اراده چـــې نـــه د حـــج او نـــه عمـــرې وي
او ورتللـــو د مکـــې تـــه پـــه اسـرې وي
بیـــا روا دي بـــې احرامـــه تېرېـــدل هـــم
او حـــرم تـــه دي روا ننوتـــل هـــم

***

## تقلید او اشغار

پـه قـارن حـاجي هدیـه مخکـې لېږل دي
دا پـــه نـــښې علامـــې معلومـــول دي
تقلیـــد غـــاړې د څـــاروي کـــې غـــاړکۍ ده
کومـــه نـــښه د وړۍ او یـــا څپلـــۍ ده
او اشـــغار د اوښ بوکـــان وینـــې کـــول دي
اشـغار دغـه د بوکـان لـږ څیـرول دي
بوکـان نـه لـري کـوم حـس او نـه خـوږېږي
نه دې کار باندې حـاجي گوناهگـارېږي

دا هدیــه بیــا پــه مکــې کــې حلالېــږي
د حــرم پــه مــسکینانو وېــشل کېــږي
که څاروی گوډ شي یا نه شي تلی ایسار شي
دا په لاره کې حلال کړه دا یې چار شي
ته یې مه خوره نـورو خلکـو تـه یـې پرېږده
او پـه وینـو پـرې ککـړه څپلـۍ کېږده

***

# احـــرام

احـرام نیـت کـول د حـج او یـا عمـرې دي
د اجرونـــو ثوابونـــو د اســـرې دي
دوه څـــادره اغوســـتل د نارینـــه دي
جـامې پـاکې اغوسـتل د ښـځینه دي
نارینـه تـه نـه جـامې او نـه خـولۍ شـته
نه واسکټ، بنین، پګړۍ او نه کورتۍ شته
یـا بـه غـسل یـا اودس کـره پـوره کـړي
بیا به وتړي احرام چې حج عمره کړي
ناګنـډلي څادرونـه بـه احـرام کـړي
یو به لنګ بل به راتاو چاپېر تمام کړي
ورپـسې بـه دوه رکعتـه د احـرام کـړي
په خشوع او په خضوع به یې تمام کړي
کـه عمـره وي نـو لبیـکَ عمـرةً دی
او د حـج لبیـکَ حجـاً ښـه احـسن دی

یـــا لبیـــک عمـــرةً و حجـــاً وایـــه
کـه قـارن وي نـو دا دواړه پکـې ستایه
بیا چې سپور شي په سپرلۍ ښه برابر شي
تلبیــې پــه زوره وایــه چــې انــور شــي
کـه قـارن یـې د هـدیې څـاروی لېږل دي
پــه حــرم کــې پــه منــیٰ قربـانول دي

❋❋❋

# تلبیه

"لَبَّيْكَ اللّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لاَ شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَ النِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكْ لاَ شَرِيْكَ لَكْ".

"ای الله ســتا ښــه طاعــت تــه زه حاضــر یــم
ای الله ســتا عبــادت تــه زه حاضــر یــم
کــوم شــریک درســره نــشته زه حاضــر یــم
ښې کره ستاینې ستا دي زه قاصر یم
نعمتونـــه پاچـــایي یـــوائې ســـتا ده
شــریک نــه لــرې همــدا زمــا وینــا ده"

❋❋❋

# د حج ډولونه

حـج پـه درې ډولـه دی یـو حـج اِفـراد دی
بل قِران دی، تمتُّع بانـدې بـل یـاد دی

او حــاجي صــاحب مفــرِد او بــل قــارِن دی
بل حاجي متمتِع دی چې محسن دی
پــه افــراد کــې عمــره نــشته حــج کــول دي
او قِــران دواړه پــه یــو احــرام بلــل دي
تمتــع کــې بیــا عمــرې تــه بیــل احــرام دی
او د حج احــرام جــلا پــه ښــه اتمــام دی
تمتـــع حـــج یـــې تـــر ټولـــو ښـــه افـــضل دی
پیغمبــر کـــړی ارمـــان ددې عمـــل دی
دا لـــومړی طـــواف او ســـعی تمتـــع کـــې
د عمــرې دي پــه دلیــل او تتبُــع کــې
او د حـــج ســـعي بیـــا وروســـته ادا کېـــږي
د طـــواف اِفاضـــې پـــسې وصـــلیږي
د قـــران او د افـــراد لـــومړی طـــواف دی
د قدوم چې په حرم کــې پــه مطــاف دی
ورپـــسې ســـعي د حـــج ده زمـــا وروره
افاضــې پــسې بیــا ســعي نــشته نــوره
تمتـــع او پـــه قِـــران کـــې قربـــاني ده
پــه افــراد کــې بیــا دا نــشته اســاني ده
دا درې میاشتې د حج میاشــتې بلــل کېږي
دا پــه اشــهر الحــج درې واړه یــادیږي
هغــه میاشــتې د شــوال او ذوالقعــدې دي
او لس ورځــې لــومړنۍ د ذوالحجــې دي

پــه دې میاشــتو د حــج نیــت برابرېــږي
او اِحــرام طــواف او سـعي پکــې کېـږي
په دې میاشـتو کـې چـې چـا عمـره ادا کـړه
او حــلال شــو بــه پــوره یــې مـدعا کـړه
بیــا پــه ورځ د ترویــې د حــج احــرام دی
پــه اتــم د ذوالحجــې پــه احتــرام دی
او کـه حـج وي د قِـران حـاجي قـارن وي
بیا بـه پـاتې پـه احـرام کـې مقـارِن وي
بیا تحلیـل یـې د احـرام دی پـه اختـر کـې
یــوم النحــر کــې پــه دغــه بختــور کــې

***

## عمره

عمره هر وخت کـې کېـدی شـي د ثـواب ده
بې له حجه هم نیکـي پـه هـر کتـاب ده
او په حـج کـې هـم کېـدی دغـه عمـره شـي
د قِــران او تمتــع مخکــې کــره شــي
کــه د حــج میاشــتو کــې چــا عمـره ادا کـړه
حج پرې فرض شو د حج لاره یې صفا کړه
او پــه نــورو کــې عمــره هــسې عمــره ده
د حــج نــه ده حــج لپــاره نــاپوره ده

عمره دا ده چې احرام باندې حاضر شې
د مکې حرم ته لاړ شې مسافِر شې
چې دننه شې ته مسجد الحرام ته
دعاء وايه د جومات دغه مقام ته
اِضطباع وکړه له ښي اوږې رالاندې
پلو تاو کړه او په کيڼې اوږې باندې
لومړی اوه شوطه طواف دی له کعبې نه
چې پيلېږي دا عمره له دې شېبې نه
د حجر اسود له تيږې شروع کېږي
په ښي لور باندې کعبې نه راتاوېږي
دا حجر اسود يا ښکل کړه که فرصت و
يا په ښي لاس اشاره کړه که زحمت و
بسم اللهِ واللهُ اکبر به وايې
اشارې سره به دغه ذکر ستايې
لومړي درې شوطه په زغرده زغرده تلل دي
او دا نور پنځه عادي راتاوېدل دي
دې ته "رمل" وايي ګڼې کې دا بس دي
پورته پورته شه همدغه ستا په وس دي
رمل منه نه ده صرف اتلولي ده
له دې نورو په توپير ښه تسلي ده

هــم پــه رکــن یمــاني لاس لګــول دي
که وس نه وي باک يې نشته تېرېدل دي
کــوم طــواف پــسې چــې سـعي ادا کېـږي
پــه هغــه طــواف کــې رمـل څرګنــدېږي
خــو چــې سعي پــسې نــه وي رمـل مـه کـړه
او چــې سـعي پــسې وي نــو رمـل وکـړه
د وداع طـــــواف یـــــا نـــــورو طوافونـــــو
د ثـــواب کــې رمــل نــشته زمــا ورونــو
یمــاني کــونج تــه چــې کلــه رارســېږې
تورې تیـرې او ددې منځ کـې تېرېږې
پــه بیــا بیــا دغــه دعــاء ځــان ســره وایــه
اســتلام کــوه پــه ګنـه کـې لـه ورایـه
"رَبَّنَا آتِنَا فِيْ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِيْ الآخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارْ".
" زمــونږ ربــه پــه دنیــا کــې مــونږ تــه راکــړه
ښــه نېکــي او آخـرت کــې راعطـا کــړه
جنتونــــــه او پنــــــا راکــــــړه لــــــه اوره
مــونږه وســاته د اور لــه ســخته پــوره"
او پــه نــورو دې شــوطونو کــې دعــاء کــړه
پاک الله ته پــه طـواف کـې التجـاء کـړه
حرام مـه غــواړه او نــور چــې هرڅـه غــواړې
غـــواړه، غـــواړه د دعـــاء لپـــاره لاړې

لـه طوافـه وروسـته لمـونځ دی دوه رکعتـه
د مقـــام ابـــراهیم شـــاته لـــه نیتـــه
پـه لـومړي رکعـت سـورت د "کـافرون" دی
په دویم کې د اخلاص سورت سمون دی
که فرصت نـه وي ځـای نـه وي ازدحـام وي
بیا کـول یـې د حـرم پـه کـوم مقـام وي
بیا اوبه د زمـزم وڅـښه ځـان پـرې مـوړ کـړه
دا د هر مرض شفاء ده ځان پرې سوړ کـړه
مخـــامخ کعبـــې تـــه وڅـــښه پـــه ولاړه
پـاک الله نـه شـفاګانې پکـې غـواړه
که فرصت و بیـا هـم ښـکل حجـر اسـود کـړه
او کـه نـه و اشـاره ورتـه پـه یـد کـړه
ملتــزم ســره دعــاء پــه اخــلاص وکــړه
اعتـداء او نـاروا پکـې هـیڅ مـه کـړه
د حجـــر او دروازې مـــنځ ملتـــزم دی
دا ثواب دی هسې نـه ده چـې لازم دی
بیـــا صـــفا بانـــدې وروخېـــژه دپاســـه
مخـامخ شـه و کعبـې تـه بـې وسواسـه
د توحیــــد کلمــــه ووایــــه پــــه زوره
تکبیرونــه ورســره کــړه زمــا وروره
د "اِن الــصفا" آیــت هــم تــلاوت کــړه
هر یو کار په ښه اخلاص او په دقت کړه

بيـا دا لانــدې ذکــر وايــه بيـا دعــاء کــړه
دغه کـار پــوره درې ځلـه ښـه اداء کـړه
"لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَئٍ قَدِيْرْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَ نَصرَ عَبْدَهُ وَ هَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ".
"لــه الله پرتــه بــل حــق کــوم معبــود نــشته
شريک نه لـري او يـو دی مـسجود نـشته
پاچـــايي هـــم د هغـــه ده او ســـتاينې
او په هر شي دی برلاسی بې پوښـتنې
لـه الله پرتـه بـل حـق کـوم معبـود نـشته
هغـه ژمنـه پــوره کـړې مـسجود نـشته
خپـل بنـده سـره يـې مرسـته مـدد کـړی
دغه کار يې په ښه بريد او پـه حـد کـړی
او يــوائې يــې مــات کــړي کــافران دي
چې باطل باندې روان دي مشرکان دي"
پــه دعــاء الله تــه پورتــه کــړه لاســونه
ما هم ياد کړه پـه دعـاء کـې ای پـښتونه
بيـا بـه ښـکته شـې مـروې تـه بـه روان شـې
او د شنو ستنو په منځ کې به لږ ځوان شې
د شــنو ســتنو مــنځ کــې لــږه منــډه ښـايي
عربـي کـې دغـه کـار تـه سـعي وايـي

بشـځينه بانـدې دا منـډه نـشته تلـل دي
پـه عادي مـزل دا سعي پـرې كـول دي
پـه مـروې بانـدې ورپورتـه شـه او وايـه
د صـفا ذكـر دعـاء دلتـه هـم سـتايه
د صفا مروې پـه منځ كـې تلـل راتلـل دي
دغـه سـعى پـوره اوه ځلـې كـول دي
بيا د سر وېښتان يا لنډ كـړه يـا يـې كـل كـړه
د عمرې عمـل پـوره پـه دې عمـل كـړه
بشـځينه بـه د كمڅـو څـوكې بيتـي كـړي
دعـاء غـواړه چـې الله دې جنتـي كـړي

❋❋❋

# په اِحرام كې بنديزونه

چې محرم وي نه اسباب يـې نـه جمـاع شـته
نه لـه عطـرو خوشـبويي نـه انتفـاع شـته
نـه فـسوق او نـه جگـړې او نـه جـدال شـته
نـه كنځلـې بـدې ردې او جنجـال شـته
نـه خرېيـل او پـرې كـول شـته د وېـښتانو
نـه پـه څـه شـي لنـډول شـته د وېښتانو
نـه نوكـانو اخيـستل شـته پـه احـرام كـې
نه څه ښكار، حلالول شته په احـرام كـې
نــه بــه ښــكار پــه اشــاره چاتــه ورښــايي
نه به ښكار كې مرسته كړي نه به يې وايي

د اوبـــو ښـــکار او کبـــان ورتـــه روا دي
د خوړلـــو ټـــول شـــيان ورتـــه روا دي
بـل چـا کـړی ښـکار خـوړل ورتـه روا دي
د پنځـــو ژويـــو وژل ورتـــه روا دي
يو خوږونکی سپی، کارغه، تپوس او مـار دی
بلــه مـږه ده، مـوږک ورسـره شـمار دی
بــل لــړم دی هــم راغلــی روايــت کــې
دا ټول وژنه حِل حرم او هر حالـت کـې
نـــه بـــه اغونـــدې جـــامې دا کميـــسونه
نه پرتوگ، پگړۍ، خولۍ، بوټ، لباسونه
نه واسـکټ او نـه مـوزې او نـه کـورتۍ شـته
نـه د سـر پټـول شـته نـه بـارانۍ شـته
ښـــځينه بـــه جـــامې اغونـــدي روا دي
د زينـــت ځرگنـــدول يـــې نـــاروا دي
نــه بــه اغونــدي دا ښـځې څـه لاسکـشې
نـه بـوکره پـه مـخ نـښتی نقـاب خوشـې
خـو پـرده بـه پـه مـخ ډېره راخـوره کـړي
او په لاس به يې له مخ بېرتـه کـره کـړي
ښـــځينه تـــه جـــامې هـــر ډول روا دي
که موزې وي که جامې وي بې سودا دي
نارينـــه محـــرم بـــه پـــښو کانـــدي چپـــړې
يــا کېــړۍ د پـــښتنو څپلـــۍ دي وړې

د ښـــــنگرو پټـــــول هـــــم نــــاروا دي
د مـوزو پـه پـښو کـول هـم نـاروا دي
کــه چپــړې کېــږي نـــه وي بيــا روا دي
لـه ښـنگرو غوځـول يـې بيـا اولـیٰ دي
کـه لنـگ نـه مـومي پرتـوگ هـم روا کېږي
بنديزونــه پــه محــرم بانــدې لگېــږي
نـــه محـــرم تـــه د نكـــاح تـــړل روا دي
نـــه پخپلـــه د نكـــاح كـــول روا دي
نـــه پـــه ښـــځو مركـــې ورتـــه روا دي
دا خبـرې پــه دليــل ښــه بــرملا دي
پــه زعفرانــو رنــگ جـامې هـم نـاروا دي
پـــه وَرَس زېـــړې حرامـــې بـــرملا دي
سـر وېـښتان مينځـل، لمبـل روا حـلال دي
غـــوړول ښـــکر لگـــول روا حـــلال دي
پـه سـر سـيوری او چتـرۍ ده هـم حلالـه
او د چـــت والا لارۍ ده هـــم حلالـــه

***

## كفارې او فديې

كه په سر کې څـه کړاو، سـپړې تکليـف وي
او محـرم وي نارينـه او ښـه شـريف وي
په دې وخت کې بيـا د سر خرېيـل روا دي
ورکـــول د کفـــارې يـــې هويـــدا دي

یـــا د شـــپږو مـــسکینانو څـــه طعـــام دی
دا درې صـاعه پاواتــه کیلــو تمـام دی
یـــا د درې روژو نیـــول دي کفـــارې کـــې
یـا څـاروی حلالـول دي کفـارې کـې
بلــه دا چـې کفـاره د کـوم یـو ښـکار ده
دا په مثل د ښکار شـوي ژوي شـمار ده
کــه هدیــه د قربــانۍ نــه وي حــرم کــې
یا یې وس نه وي یا نه وي په دې دم کې
نو پـه حـج کـې بیـا د درې روژو نیـول دي
او اوه کور کې دي چې لس پوره کول دي
پــه شــهوت مباشــرت لــه جمــاع پرتــه
ورکـــول فدیـــه پـــسه دی لـــه همتـــه
او یـا درې روژې نیـول دي کفـارې کـې
یا دووې شپږو بې وزلـو تـه اسـرې کـې
له لومړي تحلیـل نـه مخکـې پـه جمـاع کـې
حج فاسد شو دې بې دریغـه انتفـاع کـې
حج پوره کړه خـو بـل کـال تـه یـې قضا ده
پـه راتلـونکي کـال پـه تـا د حـج ادا ده
کفـــارې کـــې د یـــو اوښ حلالـــول دي
د مکـې پـه بـې وزلانـو یـې وېـشل دي
له لومړي تحلیل نـه وروسـته پـه جمـاع کـې
حـج فاسـد نـه دی پـه دغـه انتفـاع کـې

خــــو د اوښ حلالـــــول يــــې كفـــاره ده
دا خبــره پــه دليــل بانــدې كــره ده
كــه عمــرې كــې جمــاع وشــي فاســدېږي
او پــــسه پــــه كفــارې كــې لازمېــږي
قـــضايي يــــې د عمــــرې راګرځــــول دي
حج عمرې كې له جماع نه ځان ساتل دي
آخــري تحليــل نــه وروســته بيــا روا دي
هم جمـاع او هـم دا نـور حـلال ادا دي
فديــه دوه ډولــه ده يــو يــې پــه اختيــار ده
او دا بــل يــې د ترتيــب پــه اعتبــار ده
د وېـــــښتانو د نوكـــــانو اخيــــستل دي
اســتعمال د خوشــبويي ســر پټــول دي
يـــا جامـــه ده ګنـــډل شـــوې نارينـــه تـــه
اغوســتلو كــې حــاجي تــه مردانــه تــه
پــه دې ټولــو كــې فديــه ده ســتا پــه خوښــه
چــې دې خوښــه وه همغــه كــړه پــه نــښه
يــا د درې ورځــو روژې دي يــا طعــام دی
دا پــه شــپږو مــسكينانو بانــدې عــام دی
هــر مــسكين تــه يــوه نيمــه كيلــو وركــړه
نيمه صاع همدې ته وايي ځان خبر كړه
يـــا پـــسه حلالـــول دي پـــه تـــا بانـــدې
بې وزلانو ته په مينه يې كړه وړانـدې

کــه دې ښــکار وکــړ همغــسې څــاروی دی
کوم يو ژوی که په منونـو کـه پـاوی دی
او کـه مثـل يــې بيـا نــه و نــو قيمـت دی
پـه حکمونـو د اسلام کـې هـدايت دی
چــې ترتيــب پکــې ضــرور دی هغــه دا ده
مـــسکينانو د حـــرم تـــه هويـــدا ده
دا فديـــه ده د جمـــاع اوښ هدِيـــه ده
يـــا پـــسه د تمتـــع قـــران فديـــه ده
او کـه نـه وو اوښ او پـسه نـو بيـا روژې دي
درې په حج کې اوه د کور په دروازې دي

# د حج پيل

لــه تړلــو د احرامــه حــج شــروع شــو
چې مکې ته شـوې دننه نـو مـشروع شـو
که قارن وې دغه مخکې دې عمره شوه
او کـه يـا متمتـع وې هـم پـوره شـوه

# د ذوالحجې اتم

پـه اتـم د ذوالحجــې منــیٰ تـه تلـل دي
دغــه يــوم الترويــه ده پاڅيــدل دي
قــارن مخکــې نـه احـرام کـې لا تيـار دی
خــو حـاجي متمتــع پــه انتظـار دی
تمتـــع والا بـــه وتـــړي احـــرام اوس
له هر ځايه چې راځي پـه احتـرام اوس

پــه اتــم بانــدې منــیٰ تــه ور روان شــه
او نهمــه شــپه هملتــه پــه مکــان شــه
د اتــم لمــونځ پــه منــیٰ د ماسپــښین دی
تــر سهاره د نهــم پــه کلــک يقــين دی

# عرفات ته تلل

پــه نهمــه ورځ چــې لمــر کلــه رالــوړ شــي
دغــه وخــت د عرفــان د ورتلــو وړ شــي
عرفـــات د نَمِـــرې پـــه شـــاوخوا کـــې
هلتـــه واړوه پـــړاو دغـــه بيـــديا کـــې
لــه زوال وروســته خطبــه کيــږي تيــار شــه
له خطبې وروسته لمانځه تـه انتظـار شـه
لـــه خطبـــې وروســـته اذان او اقامـــت دی
دلته جمع صلاتين پـه ښـه صـورت دی
لـومړی لمـونځ د ماسپـښين بيـا مـازيگر دی
يـــو اذان دوه اقامتـــه او ســـفر دی
مخکې وروسته نه پـه منځ کـې نوافـل شـته
احـاديثو کـې پـه دې ښـه دلائـل شـته
بيـــا بـــه ودريـــږې موقـــف د عرفـــات کـــې
د رحمت غونډۍ نه شاته پـه ثبـات کـې
چې د "حبل المشاة" گټـې سـتا پـه مخ شـي
او ستا مخ هـم و قبلـې تـه مخـامخ شـي

عرفـــات ټـــول د ولاړې دی موقـــف دی
په هر لوري چې حاجي ولاړ واقف دی
د "عُرنـه" شـېلې نـه پرتـه هرځـای ښـه دی
خـو عرنـه مقـام موقـف لپـاره نـه دی
چـې لمـر پرېـوځي تـر ماښـامه بـه ولاړ وي
په دعاء ذکـر بـه هلتـه ښـه پـه ويـاړ وي
پــه صــفا چــې ذکــر تېــر شــو تــر قــديره
دا بـه هـم وايـي او نـور هـم لـه تـدبيره

❋❋❋

# مزدلفې ته تلل

چې لمر ډوب شي عرفات کې پرې ماښام شي
نو د حج دغه لـوی رکـن بيـا تمـام شـي
د ماښام لمـونځ بـه نـه دلتـه نـه پـه لار کـړي
په ارام به ځـي مـزل بـه پـه وقـار کـړي
هــم بــه ذکــر تلبيــه پــه لاره وايــي
پاک الله به پـه ذکرونـو بانـدې سـتايي
ټــول بــه ورســوي ځــان مزدلفــې تــه
دغــه مــشعر الحــرام ښــکلې تحفــې تــه
د ماښــام او ماســختن لمــونځ بــه ادا کــړي
د سـفر بـه صـلاتين پـه اعتنـا کـړي
يــو اذان دوه اقــامتو بانــدې کېــږي
پـه حاجيـانو بانـدې شـپه دلتـه تېرېږي

مخکې وروسته نه په منځ کې څه سنت شته
نـه نقلونـه او نـه وتـر نـه بـدعت شـته
چې سبا شـي لمـونځ بـه وکړي د سهار هـم
او لمانځه نه وروسته وايي به اذکـار هـم
بيـا بــه مــشعر الحــرام بانــدې ودرېـږي
تــر رڼــا پــورې بــه دلتــه ايــسارېږي
مـخ بـه واړوي قبلـې تـه پـه دعـاء کـې
د تهليـل او د تکبيـر پـه اِلتجـاء کـې
د توحيـــد کلمـــه وايـــه تکبيرونـــه
او الله پاک ته دې وړاندې کړه عذرونـه

***

# منیٰ ته تلل

لمـر خاتـه نـه مخکـې مخکـې روانېـږه
لـه دې ځايـه د منـیٰ پـه لـور خـوځېږه
مُحَــسَر وادي نــه بيــړې بانــدې تېـر شــه
که بوډا يې هم د ځوان زلمي په څېر شه
چـې کمـزوري وي بـې وسـه بوډاګـان وي
يـا بـې وسـه ښـځينه او ضـعيفان وي
نـو هغـوی بـه لا لـه شـپې څخـه روان شـي
د منیٰ په لور به درومي چې حاجيان شي
او دا نـور بـه لمـر خاتـه نـه مخکـې لاړ شـي
د منیٰ په لور به درومي چې په وياړ شي

په دې لاره یا منیٰ کې به اوه کاڼي
ځان سره کړي ښه واړه واړه پیڅاڼي
چې راوایې خلي هرځای څخه روا دي
د ویشتلو د جمرو لپاره دا دي

## د لوی شیطان ویشتل

په منیٰ کې به دې لوی شیطان ته ورشې
په جمرة العقبه به برابر شې
مخامخ به ورته ودرېږې شمال ته
شا جنوب ته کینې حرم ښي شرق حیال ته
دغه لوی شیطان په ښي لاس باندې وله
په اوو کاڼو په وکیل او یا پخپله
د هر کاڼي سره "الله اکبر" کړه
او هر کاڼی دائرې ته برابر کړه
تلبیې په دې ویشتلو شوې تمامې
نورې مه وایه دعاوې کوه عامې
تکبیرونه په لوړ غږ په بیا بیا وایه
قربانۍ لپاره لاړ شه له دې ځایه

❋❋❋

## لومړی تحلیل

په منیٰ کې هر یوځای د قربانۍ دی
په اسلام کې هر یو کار په اسانۍ دی

بیـــا د ســـر دي کلـــول یـــا لنـــډول دي
بنـــځینه لپـــاره لـــړ بیـــاتي کـــول دي
نارینــــــه لپــــــاره غــــــوره کلــــــول دي
لـــه احرامـــه دا لـــومړی حلالیـــدل دي
احـــرام پرانیـــزه جـــامې واغونـــده پـــاکې
خـــو خبـــرې گـــوره مـــه کـــوه کـــاواکې
لـه کـوروالي پرتـه هـر یـو شـی حـلال دی
خـو کـوروالی لا تراوسـه هـم وبـال دی

## د اِفاضې طواف

بیـــا طـــواف د افاضـــې تـــه ور روان شـــه
په اخلاص او په خشوع او په اذعـان شـه
اوه شـوطونه طـواف وکـړه دې پیـرې کـې
لکه مخکې چې بیان شو پـه عمـرې کـې
تمتـــع کـــې ســـعي هـــم ورســـره ضـــم کـــړه
د صفا مـروه پـه منځ کـې کـار اتـم کـړه
یـا کـه پـاتې د قـدوم سـعي پـه چـا وي
پـه هغـه بانـدې د سـعي هـم قـضا وي
کـــه قـــدوم ســـره قـــارن وي ســـعي کـــړې
پـــــه احکـــــامو برابـــــره اوپیـــــاوړې
پـــــه هغـــــه نـــــشته دا ســـــعي مـــــسلمانه
زمـزم وڅـښه څـه منـیٰ تـه پـه مـا گرانـه

# دویم تحلیل

دا دویــم تحلیــل دی اوس درتــه روا دي
ټول حلال کوه بې شک او بې سودا دي
اوس نو دوه ورځې یـا درې ورځـې اوسـېږه
په منیٰ کې په خپل ځای کې پاتې کېږه
د جمرو ویـشتل دا دوه ورځـې یـا درې دي
اوس د درې واړو ویشتل په دې پېرې دي
لـه زوال نـه وروسـته هـره ورځ ویـشتل دي
په دې کار د حج احکام پوره کـول دي
لــومړی وو لــه صــغریٰ او بیــا دعــاء کــړه
بیا وسطیٰ و لـه دعـاء پـه ښـه اداء کـړه
عقبـــه ورپـــسې ولـــه او تېرېـــږه
عقبــې ســره هیڅکلــه مــه ودرېــږه
د ویــــشتلو طریقــــه لکــــه پــــرون ده
مخکې تېره په تفصیل او پـه سـمون ده
لومړی رمـي، قربـاني، حلـق بیـا طـواف دی
دا ترتیب دی او بې شکه بې خلاف دی
مخکې وروسته په دې ورځ که دا څلور شي
پروا نشته نه پرې دم او نه کوم زور شي
هـم پـه شـپه کـې دغـه هـر یـو روا کېـږي
ښــه بــې شــکه دغــه هــر یــو ادا کېــږي

# د مخه ښې طواف

حـج پـوره شـو اوس طـواف د وداع وکـړه

پـه هـر کـار د پیغمبـر اتبـاع وکـړه

دا طواف دمخه ښې دی حج دې خلاص شـو

ښه کره او ښه پوره پـه ښـه اخـلاص شـو

مناسِـک د حـج تمـام شـو مبـارک شـه

توبه ماته نه کړې اوس وربانديې کلک شه

❋❋❋

# د حائضې حج

کـه پـه حـج کـې حائـضه شـي کومـه ښـځه

هرڅه وکـړه د کعبـې طـواف تـه مـه ځـه

لـه طـواف پرتـه بـه ټـول احکـام اداء کـړي

او چې پاکه شي پوره بـه دا قـضاء کـړي

حائـضې بانـدې طـواف د وداع نـشته

کفـاره پـرې د کـوم دم او د صـاع نـشته

کـه عمـره وربانـدې پـاتې وي قـضاء وي

له تنعـيم نـه بـه احـرام بانـدې اداء وي

❋❋❋

# مدينې منورې ته تلل او حُرمت يې

مـدينې تـه تلـل لـه حـج نـه حـساب نـه دي

خو ورتلل ورته بې شک بې ثواب نه دي

د مـــسجد نبـــوي پـــه نيـــت ســـفر كـــړه
د يثرِب په لوري درومه ځان خبر كړه
پـــه جومـــات د پيغمبـــر دي ثوابونـــه
پكې وكړه تر خپل وسه ډېر لمونځونه
چې لمونځونه ځومره ډېر وي هومره ښه دي
كوم عـدد پـوره كـول دربانـدې نـه دي
د څلوېـــښتو روايـــت هـــم ثابـــت نـــه دی
او له ځانه كوم بدعت هـم ثابـت نـه دی
مـــدينې كـــې ښـــكار كـــول هـــم نـــاروا دي
قتــال، بــوټي غوځــول هـم نـاروا دي
حيوانـــاتو تـــه واښـــه پكـــې روا دي
هـم كـول د نيـک او ښـه پكـې روا دي
مـــدينې كـــې ګرځـــول د وســـلې مـــه كـــړه
مدينې كې څه پلمې او حيلـې مـه كـړه
د روضـــې د پيغمبـــر زيـــارت هـــم وكـــړه
خو د ځان منبل، غوښتل ورڅخه مه كـړه

***

# اِحصار

كـــه حـــاجي تـــه پيـــښه وشـــي او ايـــسار شـــي
حج عمرې څخه شي پاتې دا احصار شي

نیت یې کړی وي احرام یې وي تړلی
خو نصیب یې پکې نه وي سر خوړلی
لار کې پاتې شي له پیښې یا له وېرې
ټولې لارې شي پرې بندې او راګېرې
قرباني به هغه ځای کې کړي حلاله
او قضا به بل کال راوړي اندېواله
که په شپه د لوی اختر په عرفات کې
شي حاضر سبا نه مخکې التفات کې
نو ایسار نه دی حاجي شو حج اداء شو
مناسک دې نور اداء کړي برملا شو
خو که پاتې له دې شپې نه عرفات شو
حج ونه شو د بل کال په ملاقات شو

❋❋❋

# د مکې مکرمې حُرمت

د مکې مکرمې لوی فضیلت دی
د حرم شریف عزت او لوی حرمت دی
جنګ جدل قتال حرم کې ناروا دی
ښکار کول جنجال حرم کې ناروا دی
ونې بوټي پرې کول هم ناروا دي
د پرېوتي راخیستل هم ناروا دي

د پرېـــوتي د مونـــدلو اعـــلان وكــړه
عبـادت بانـدې پخلـی د ايمـان وكـړه
پــه مكــې كــې د وســلې گرځــول نــشته
لـه سـرگړي پرتـه بـوتي شـكول نـشته
كـافران او طاغوتـان كـه پكـې جنـگ كـړي
بيا روا دي مؤمنـانو تـه چـې ننـگ كـړي
د زمـــزم اوبـــه شـــفاء او بركـــت دی
ددې څښلو كې ډېر خير او فـضيلت دی
هـم لـه ځانـه سـره وړی شـې دغـه كـور تـه
سترې مشي ته راتلونكـو او هـر ورور تـه
دا تــسپې مــسپې وړل نــشته پــه اســلام كــې
بدعتونـه كـول نـشته پــه اسـلام كــې
څــه تحفــه او ډالــۍ وړی شــې پــروا نــشته
څه خورما او خولۍ وړی شې پروا نـشته

***

# حاجي صاحب ته سترې مه شي

د حاجيـانو سـترې مـه شـې هـم ثـواب دی
په ښه نيت دا خواره مه شي هم ثواب دی
په حرام مال نـه كـوم حـج او نـه عمـره شـي
نــه ښــېگړه او خيــرات او صــدقه شــي

پــه حــرام کــه ثــواب وګڼــي کــافر شــوي

پــه دوزخ او جهــنم کــې مــستقِر شــوي

دا حـــرام حـــلال ګڼـــل هـــم کـــافري ده

دا حـلال حـرام بلـل هـم کـافري ده

# بیوع

## پلورل او پېرودل (خرڅول او اخیستل)

چــې نظــام د اقتــصاد دی پــه اســلام کــې

ټــول ښــېګړه اتحــاد دی پــه اسلام کــې

پــه اســلام کــې نــه ټګــي نــه غولــول شــته

نه درواغ حق تلفي نـه تېـر ایـستل شـته

هــم د مــال متــاع د عیــب پټــول نــشته

نـــاروا دي د حرامـــو ګټـــل نـــشته

هـــم د پـــاکو او حلالـــو خـــوړل بویـــه

هـم د خیـر خیـرات ښـېګړې کـول بویـه

مـــشتبه څخـــه ځـــان ســـاته مـــسلمانه

د چـــا مـــه کـــوه میراتـــه مـــسلمانه

لـــه حرامـــو ټوکېـــدلی چـــې بـــدن وي

پـه جنـت بانـدې حـرام د غوښـو تـن وي

❋❋❋

## ناروا ګټې او معاملې

د ســـود ګټــه پـــه اســـلام کـــې نـــاروا ده
اخيـــستل ورکـــول يـــو ډول جفـــا ده

ســـود خـــوړونکي ورکـــوونکي ګناهګـــار دي
شاهدان او ســود ليکـونکي ګناهګـار دي

جنس په جنس او سره په سرو او سپين په سپينو
اخيـــستل حـــلال روا دي صـــالحينو

شرط يې دا دی چې به دواړه لاس په لاس وي
هر يو مثل به پـه مثـل بـې وسـواس وي

خـــو زيـــاتوالی پکـــې ســـود دی نـــاروا دی
پور په ګټې سـود مـردود دی نـاروا دی

که جنس يو وي او يو ښـه او بـل خـراب وي
زيـاتول پکـې د سـود او د عـذاب وي

خـــو چـــې جـــنس کلـــه بـــدل وي بيـــا روا ده
پـــه انـــصاف د تجـــارت دغـــه ســـودا ده

د مجهـــول ســـودا معلـــوم بانـــدې حرامـــه
د حاضـر سـودا معـدوم بانـدې حرامـه

خرڅـــول د ســـپي، بوتـــانو نـــاروا دي
د زنـــا او پيـــشوګانو نـــاروا دي

د مـــرداري خرڅـــول هـــم نـــاروا دي
تعويـذ بنـد کـوډې کـول هـم نـاروا دي

دا د وينـــو خرڅـــول هـــم نـــاروا دي
او د وقــف دا پلــورل هــم نــاروا دي
د شـــــرابو تجـــارت هـــم نـــاروا دى
بــې نــصابو تجــارت هــم نــاروا دى
خرڅــــول د خنزيرانــــو نـــاروا دي
د ازادو انـــــسانانو نـــــاروا دي
د ولــور اخيــستل نــشته پــه اســلام کــې
دا د ښځو پلــورل نــشته پــه اســلام کــې
د نـــشو چـــرس او اپـــين پيـــسې حرامـــې
په ختمونـو او پـه ديـن پيـسې حرامـې
دا ډمتــوب ټنــګ او ټکــور هــم نــاروا دى
د ژونـدي شـي دا انځـور هـم نـاروا دى
تجـــارت معـــاملې کـــې اســـاني کـــړه
قسمونه پکې مـه خـوره ځـان غنـي کـړه
چـــې پـــه عـــرف کـــې ښـــه روا معاملـــه وي
بيا معروف لکه مشروط غونـدې کـره وي
يــو حيــوان پــه دوه يــا ډېــرو هــم روا دى
لاس په لاس پـه نـسيا تېـرو هـم روا دى
نـــــاروا مزابنــــــه محاقلــــــه ده
دا د وچـــو پـــه لمـــدو معاملـــه ده
د مېـــوو تـــازه پـــه وچ مزابنـــه ده
د غلـــې لمـــده پـــه وچ محاقلـــه ده

هــم تــازه مېــوې پــه وچــو نــاروا دي
شـنې لمـدې غلـې پـه وچـو نـاروا دي
عرايــــــا او عريــــــه پکــــــې روا ده
چــې صـورت د ضـرورت دی هغـه دا ده
چــې پــه ونــې کــې مېـوه دې وي ورکـړې
کوم مسکين تـه دې ډالـۍ وي وربـښلې
او بيـا تنـګ پـه تلـو راتلـو يـې دا اړتيـا ده
پـه قېمـت يـې ورنـه واخلـه دا روا ده
خــو چــې کــم وي لــه پنځــو ســقو وروره
د وســق وزن زکــات بحــث کــې ګــوره
نــــاروا معاومــــه ده پــــه اســــلام کــــې
د اسـلام خبـرې ونيـسه پـه پـام کــې
دا د ځمکــــې يــــا د ونــــو ورکــــول دي
د يــو کــال يــا د کلونــو خرڅــول دي
چــې مېــوې محفــوظې نــه وي لــه آفتــه
او غـوره نـه وي او شـنې وي لـه صـفته
خرڅــــول يــــې نــــاروا دي روا نــــه دي
دې صـورت کـې دا د ګټـې دوا نـه دي
يــا مېــوې نــه وي غــوټۍ وي يــا ګلونــه
نــــاروا دي دغــــه واړه صــــورتونه
يــا پــه بوټــو کــې غلــې وي يــا دانــې وي
پخې نه وي دا پـه وړو کـې لا شـنې وي

خرڅـــول يـــې د مېـــوو غلـــو حـــرام دي
چې دانه منـي پـه دواړو کـې ناکـام دي
کــه پخــه چرتــه مېــوه وي يــا غلــه وي
او لـــو نـــه وي لا د بوټـــو مرحلــه وي
او چـا واخيـستل روا دي شـرط يـې دا دی
چـې آفـت ورڅخـه بېـل او مـستثنا دی
په خلاص نرخ باندې د نرخ ايښودل نشته
اخيـــستو بانـــدې د چـا تېـزول نـــشته
تېزولـــو تـــه نجـــش وايـــي ممنـــوع ده
پاکـه ساکه بـې ټګـۍ بيعـه مـشروع ده
مـــن يزيـــد بيعـــه روا ده چـــې بـــولي وي
او د زيـــاتو ورکـــوونکي بريـــالي وي
که يو شی دې چرته واخيسته کوم ځای کې
خرڅـوه يـې مـه همغلتـه پـه پـای کـې
لـومړی قـبض دی پـوره يـې لاس تـه راوړه
بيـا يـې نقـل کـړه لـه هغـه ځايـه واوړه
پېرودلـو ځـای کـې منـع يـې پلـورل دي
خامخـــا لـــه هغـــه ځايـــه نقلـــول دي
منـع شـوي دي پـه لار کـې اخيـستل هـم
د بـــازار او منـــډيي د لار نيـــول هـــم
بـازاري دې کليـوال تـه سـودا نـه کـړي
هغـه پرېـږده چـې پخپلـه سـودا وکـړي

هــم پخپلــه بــه بلــد شــي پــه بــازار کــې
هم یې زیاته تجربـه شـي دغـه کـار کـې
هـم بـه شـک او بـدګومان لـه منځـه لاړ شـي
د شیطان کور به په دې باندې ویجاړ شي
نــــــاروا ملامــــــــسه بیعــــــــه ده وروره
دا د ظلــم یــو صــورت دی ورتــه ګــوره
چې یو شي باندې دې لاس یو ځلـې کېښود
جنګ جنجال درسره کړي که دې بیا پرېښود
بیـــا بـــه خامخـــا دا اخلـــې زړه دپاســـه
که دې خوښ وي که ناخوښ وي له لماسه
نــــــاروا منابـــــــذه ده د ویـــــــشتلو
ددې څـــو دي صـــورتونه پـــه وېـــشلو
یو یې دا چـې یـو تـر بلـه شـی ګـوزار کـړي
لاره بنده د خوښـۍ پـه دغـه کـار کـړي
بل یې دا دی چـې ګـوزار وکـړه پـه ځمکـه
دغه ستا شوه که ته سست وې کـه چابکـه
بـل یـې دا دی چـې راواخلـه مـوټی کـاڼي
که دا غټ وي که واړه واړه پیــڅاڼي
ددې کــاڼو شــمېر ددغــه شــي قیمــت شــو
خامخـا قبـول پـه تـا دا هـر صـورت شـو
دا صــورت بیــع الحــصاة هــم بلــل کېـږي
دغــه واړه پــه اســلام کــې حرامېــږي

ټــول مجهــول دي نــاروا دا صــورتونه
په اسلام کې د انصاف دي ټول حکمونه
پــه اســلام کــې نــاروا بيــع الغــرر ده
دغــه بيعــه د ټګــۍ او د ضــرر ده
چې درواغ وي يا ټګي وي پـه سودا کې
حــسابيږي پــه حرامــو نــاروا کــې
چــې ســودا معــاملې کــې جهالــت وي
ښه څرګند نه وي تړون که تجارت وي
کـه يـو شـی درسـره نـه وي او معـدوم وي
يا صورت وي کوم مجهول يا نامعلوم وي
يـا کـوم شـی لـه اخيـستلو مخکې پلـورې
مال دې نشته اخيـستونکی ورتـه ګـورې
دغــه ټــول دي نــاروا او روا نــه دي
چــې صـفا کـوي کارونـه پـښتانه دي
نــاروا بيعــه د حبــل الحَبَلــه ده
دا مجهولــه بــې پــروا معاملــه ده
دا پـه نغـدو د څـاروي لمـسی پلـورل دي
بچــی نـشته د بچـي بچـی پيـرل دي
د زيــاتي اوبــو پلــورل هــم نــاروا دي
پــه ماشـين چـې راوتلـې وي روا دي
دينــده پــه تېرولــو قيمــت نــشته
نــاروا دي د ختلــو قيمــت نــشته

نامعلومـــــه اســـــتثنا هـــــم نـــــاروا ده
چې دا واخله خـو يـو څـه پکـې زمـا ده
ســــوځېدل د بيــــانې هـــم نـــاروا دي
چې دا مخکې پيسې هر صورت کې ستا دي
که مې واخيسته حـساب بـه شـي قيمـت کـې
که پښېمانه شوم نو ستا شوې دې صورت کـې
د نـــسيا پـــه نـــسيا هـــم خرڅـــول نـــشته
قرض په قرض باندې پلورل پېرودل نشته
د مجبـــور لـــه مجبـــورۍ نـــه ګټـــه ماخلـــه
په انصاف او خپل قيمت باندې يې واخلـه
يـــوې بيعـــې کـــې دوه بيعـــې نـــاروا دي
ددې دوه دي صــــورتونه هغـــــه دا دي
چې دا شی درباندې پلورم شرط يـې دا دی
چې فلانی شی به په ما پلورې زما دی
بـل دا شـی پـه نغـدو يـو پـه نـسيا بـل دی
که هر يو دې راته راکړ بيا دې خپل دی
که کـوم شـی پـه نـسيا ډېـرو بانـدې پلـورې
د مجبور دې مجبـورۍ تـه نـه ورګـورې
بيـا تـرې اخلـې دا پـه نغـدو پـه ارزانـه
دا د ســـود پلمـــه ونـــه کـــړې مـــسلمانه
دا بــــې شــــکه نــــاروا بيــــع العينــــه ده
دا د ســـود لپـــاره جـــوړه بهانـــه ده

په دې شرط پور ورکول هم ناروا دي
چې له ما دا اخيستل هم خامخا دي

شرط او بيعه ناروا ده هغه دا ده
چې دا يو شی د بل شي په شرط سودا ده

دغه شی درخخه اخلم چې دا گورې
خو په دې شرط چې دا بل به په ما پلورې

چې خورما کې زخې کېښودل شي گل کې
او بيا وپلورل شي ونې دې سنبل کې

نو ددې زخو مېوه ده د پلورونکي
که مشروطه وي نو ده د اخيستونکي

که غلام واخلې او مال ددې غلام وي
نو دا مال يې د پلورونکي ټول تمام وي

خو که شرط د اخيستونکي ددې مال وي
شرط يې ايښی وي نو بيا ورته حلال وي

که څاروی يا موټر پلوري شرط يې دا وي
چې سپرلي به يې تر کوره نن زما وي

دا روا دي که شرط نه وي نو بيا نه ده
بيا سپرلي د اخيستونکي ښه درانه ده

ناروا شرط ناروا دی په اسلام کې
او روا شرط بيا روا دی خاص و عام کې

مسلمان به په تړون او شرط وفا کړي
نه به ظلم نه درواغ نه به جفا کړي
وېش نه مخکې د میراث خرڅول نشته
هم یې چاته په تحفې ورکول نشته
جنس په جنس باندې په پور ته سلم وایې
جنس په پور قیمت په کور ته سلم وایې

***

# سَلَم

خرڅول په نسیا نشته پور روا دی
په دې دواړو کې توپیر یې په وینا دی
خرڅولو جنس په جنس کې توپیر راشي
په توپیر د جنس او نرخ دا ناروا شي
پور ښېګړه ده یو بل ته تېرېدل دي
نو روا ددې ښېګړې ورکول دي
د سَلَم او د سلف یوه معنا ده
چې شرطونه یې پوره وي دا روا ده
هم به تول پکې معلوم هم پیمانه وي
هم معلومه به نېټه او زمانه وي
صرافي چې لاس په لاس وي نو روا ده
چې نسیا یې التماس وي ناروا ده

***

# گروي او ګاڼه کول

گروي دا ده چې يـو پـور يـو چاتـه ورکـړې
او څه شـی پـه ضـمانت کـې مقـرر کـړې
دغــه شــی ورڅخــه واخلــې ضــمانت کـــې
که پور لنډ شي خپل شی واخلي دې صورت کې
که څاروی څوک په گروۍ کې چاته ورکړي
او په دې باندې حاجت خپل برابر کړي
نـــو ســـپرلي او شـــيدې دواړه د هغـــه دي
چې په چا باندې ددې څاروي وابه دي
خو که گرو په چا څـه ځمکـه او يـا بـاغ شـي
نــاروا شــي ورتــه گټــه د اور داغ شـــي
د مالــک يـــې دي مېـــوې او هـــم کـــښتونه
لــه گــروۍ نــه گټــه مــه اخلــه پــښتونه
کــه گــروۍ والا يــې اخلــي او حــساب شــي
په خپل پور کې د گروۍ نو بيا ثواب شي
د مالــک ده کــه څــه گټــه کــه تــاوان دی
ناروا اخيستل زيـان د خپـل ايمـان دی
څـــو کـــښتونه او څـــو کالــه خرڅـــول هـــم
نــاروا دي پــه څـــو ډولــه دا کـــول هـــم
يـــــو دا بيعــــه د مــــاليس عنــــدک ده
بل پلورل دي د مجهـول او دا دوکـه ده

بـل پـه دې کـې د معـدوم خرڅـول راغلـل

پــه څــو ډولــه نــاروا پېــرودل راغلــل

***

# د حرامو تجارت

حــرام درې ډولــه دي يــو هغــه حــرام دی

چې حرام يې استعمال هر ډول عام دی

ددې ډول تجـــارت هـــم نـــاروا دی

ددې گټــه او صــفت هــم نــاروا دی

لکه چرس، بنگ، تمباکو شـو يـا اپـين شـو

يا سگرېټ، پوډر، نسوار او هېرويين شـو

يـا شـراب شــو د نـشې ټـول مـسکرات شــو

پــه هــر ډول مــضرات مخــدرات شــو

نـــاروا دی اســـتعمال ددغـــه ټولـــو

تجــارت کــرل وبــال ددغــه ټولــو

چې پوهېږي چې شراب ترې جوړوي څوک

په هغه به انگور هم نه خرڅـوي څـوک

دويـم هغـه چـې خـوړل يـې نـاروا دي

بلــه گټــه اخيــستل تــرې بيــا روا دي

لکـه خـر شـو يـا کچـر بـاز او ډېـران شـو

تجـارت يـې دی روا کـار يـې اسـان شـو

درېـيم هغـه چـې حـرام پـه نارينـه وي

او روا پـاک او حـلال پـه ښـځينه وي

لکــه ســره زر او ریـــښم لبــاس د ښـځو
یا څه نور سینګار سامان حـساس د ښځو
تجـــارت ددې روا دی حــــرام نــــه دی
ډېر احکام دي خو د چا ورته پام نـه دی
د بوتـــانو جــــوړول هــــم نـــاروا دي
د بوتـــانو خرڅـــول هـــم نـــاروا دي
د ذي روح ژونـدی تـصویر هـم نـاروا دی
پـه حلالـو کـې تبـذیر هـم نـاروا دی
رشــوت بــدهٍ اخیـــستل هــم نــاروا دي
رشـوت، بـدهٍ ورکـول هـم نـاروا دي
پـه حرامـو نـه حـج کېـږي نـه عمـره شـي
نه خېرات کېږي ګناه یې ښـه پـوره شـي
کـافر کېـږي کـه ثـواب ګڼـي حـرام کـې
په دې ډېـر دي دلیلونـه پـه اسلام کـې

✵✵✵

# ځینې نور بیوع

فـــضولي بیعـــه روا ده پـــه اســـلام کـــې
دا غائب ته څه سودا ده په ښـه پـام کـې
شرط یې دا دی چې ټګـي بـه پکـې نـه وي
په اخلاص به ټول شرطونه ښه درانه وي

خو غائب چې بيا حاضر شي نو مختار دی
چې يې خوښه ده که نه خپل يې اختيار دی
خو خبره به اول نه ښه ښکاره وي
طرفين به له دې شرط خبر پوره وي
د جزاف بيعه روا ده بې له ډاره
دا اټکل د تجربې دی زما ياره
لکه وي غلې دانې مېوې ښکاره وي
او اټکل او تجربه د چا کره وي
خطا کېږي نه يا لږ غوندې توپير وي
دا اټکل د تجربې پوره تدبير وي
که پلورلو ته کوم شی څوک چاته ورکړي
چې معلوم قيمت د شي ورته راسر کړي
او که زياتې دې پرې وکړې هغه ستا شوې
دا زياتي پيسې پلورونکي ته روا شوې
ناروا تلجئه بيعه د مظلوم ده
دغه بيعه د کمزوري او معصوم ده
چې ظالم نه څوک وېرېږي او ښکاره کړي
د ظالم مخې ته دا حيله کره کړي
چې دا شی ما په فلاني باندې پلورلی
تعرض مه کوه ماته کېنه غلی

مـــشتري ورتـــه دا نـــشي بيـــا ويلـــى
چې دا شی خو تا پـه مـا بانـدې پلـورلی

دغـــــه بيعــــه ده باطلـــــه نــــاروا ده
ده ناســـمه تلجئـــه دغـــه ســـودا ده

که څوک اړ وي او مضطر وي او پرېشان وي
څه اړتيا وي يا پرې پور د کوم انسان وي

څه شی پلوري لـه اصلي قېمت نـه کـم وي
او دا ځکه چې راغلی پـرې څـه غـم وي

اخيـستل يـې کـم قېمـت بانـدې ناسـم دي
اخيستل يې په ارزښت باندې بې غم دي

پـــه زور ظلـــم اخيـــستل هـــم نـــاروا دي
پـه زور ظلـم خرڅـول هـم نـاروا دي

پـه غولانځـو کـې شـوده خرڅـول نـشته
پـه اوبـو کـې د کبـانو پلـورل نـشته

پـــه هـــوا کـــې د مرغـــانو ســـودا نـــشته
چـې پـه لاس نـه وي سـودا نـاروا نـشته

پـــه شـــېدو کـــې د غوړيـــو پلـــورل نـــشته
د څـاروي پـه شـاوړۍ خرڅـول نـشته

نه د غـلا مـال اخيـستل شـته پـه اسلام کـې
نه د غصب پېرودل شـته پـه اسـلام کـې

نـــــاروا د درغلـــــی او د خیانـــــت دي
نــاروا حـــرام د بـــډو او رشـــوت دي
اخیـــستل او ورکـــول یـــې نـــاروا دي
هــم پلــورل او پیــرودل یــې نـاروا دي
چــې شـراب تـرې جـوړوي تاتـه معلـوم وي
حـلال نـه کـوي حلالونـه محـروم وي
د انګـــورو خرڅـــول پـــرې نـــاروا دي
د ممیــزو هــم پلــورل پــرې نـاروا دي
پــه دښــمن بانــدې وســله خرڅــول نــشته
چې پرې وژني مسلمان بیا پلـورل نـشته
چــې اذان د جمعــې وشــي تجــارت بیــا
نــاروا شــي نــاروا پــه هــر صــورت بیــا
نــاروا هـــم نـــرخ ټاکـــل د حکومـــت دي
دا لـــه خلکـــو ســلبلول د حریـــت دي
بـــل ســـبب د پټولـــو احتکـــار دی
دا ســـبب د لوړیـــدلو د اســـعار دی
دا ضـــرر دی پـــه بـــې وزلـــو فقیرانـــو
پـــه محتـــاجو ، مـــسکینانو، غریبـــانو
خــو کــه ظلــم ســوداګر کــوي بــازار کــې
او نرخونــه نــاروا لــوړوي ښــار کــې

بیــا د ظلــم مخنیــوی کــول هــم فــرض دي
دا دنده د حکومت ده دا پرې قرض دي

د غربیـــانو دا تـــامین یـــا چـــې بیمـــه ده
دا د ژوند او د روغتیـا پـه نـوم پلمـه ده

دا مجهــول تــړون د ســود او درغلــۍ دی
یو طرف ته یې تـاوان دی، د ټګـۍ دی

نــــاروا دغــــه بیمـــــه او دا تـــــامین دی
دا ذهنونــه غولــوي لکــه اپــین دی

***

# خیـــار

اخیــستونکي خرڅــوونکي تــه اختیــار دی
ترڅو یو ځای وي هر یو پکې مختار دی

دا یــې خوښــه ده دې شــوې فیــصلې کــې
قبلـــــول او ردول معـــــاملې کـــــې

خــو چــې کلــه شــو جــلا لــه دغــه ځایــه
بیــا یــې نــشته ردول دا ورتــه وایــه

خــو کــه شــرط یــې ســره ایــښی د خیــار و
او مـــوده یـــې وه معلومـــه انتظـــار و

بیــا نېټــې پــورې پــه شــرط بانــدې وفــا ده
دا خبـره پـه دې شـرط بانـدې صـفا ده

خرڅـوونکي کـه د شـي عيـب و پـټ کـړي
بيا بـه خپـل شـی بېرتـه اخلـي نومـوړی
کـــه غولانځـــه ډکـــه شـــوې وه د لنگـــې
مـصراة وه او شـېدې وې پکـې ړنگـې
د څـو وختـه د يـو وخـت پـه نامـه پلـوري
اخيـستونکی خبـر نـه وي ورتـه گـوري
کـه يـې واخيـسته او کـور کـې بيـا خبـر شـو
د پلـورونکي پـه ټگـۍ پـوه سراسـر شـو
که يـې خوښـه نـه شـوه حـق يـې ردول دي
خرڅـوونکي تـه يـې بېرتـه ورکـول دي
خـو خورمـا بـه يـوه صـاع ورسـره ورکـړي
د خوړلـو شـېدو حـق بـه برابـر کـړي
صـاع د درې کيلـو پـه تـول برابرېـږي
کلـه پـاو ځينـو اجناسـو کـې کمېـږي
کـه خورمـا نـه وې وربـشې کـوم طعـام دی
جوار، وريجـو او غلـو دانـو تـه عـام دی
لـه غنمـو پرتـه هـر شـی ورکـول دي
لـه خـوړو او طعـام صـاع بـشپړول دي
په هر شي کې چې عيب پټ وي رابنکاره شي
اخيـستونکي تـه خيـار کـره پـوره شـي

که په نرخ کې کوم انسان وي غولېدلی
مشتري وي که بايع وي دا شاغلی
او دا نرخ له بريده زيات ډېر او يا کم وي
رالوېدلی په بې وزلي باندې غم وي
د سودا په وخت کې پوه نه وي جاهل وي
بيا په فسخې کې مختار دی چې عادل وي
خو که پوه وي او يا درې ورځې شي تېرې
فسخه نشته دا خبرې کړه بيا هېرې

***

# احتکار

د غلو دانو ساتنه قيمتۍ ته
احتکار دی دا ساتل دي بې پتۍ ته
چې بازار ته د غلو دانو راوړل دي
خرڅول يې دی ثواب روزي ګټل دي
چې غلې دانې څوک اخلي پټوي يې
او اړتيا ته يې راباسي نه ساتي يې
دا ساتل دي قيمتۍ ته احتکار دی
په اسلام کې ناروا دغه بدکار دی
چې يې اخلي قيمتۍ او په اړتيا کې
او ساتي يې خرڅوي يې نه وړتيا کې

احتکـــار دی نـــاروا دی او حـــرام دی
د اړتیـا پـوره کـول کـار د اسـلام دی
خــو د خپــل پټــي غلــه ســاتل روا دي
په بازار کې چې غله وي بې سـودا دي
یـا تــه اخلــې دا غلــې پــه ارزانــۍ کــې
بیا یې ساتې او پلورې یـې قېمتـۍ کـې
دغــه کــار احتکــار نــه دی تجــارت دی
تجـارت کـول همــت او مـصلحت دی
احتکـار پـه قـوت روزۍ غلـو خـوړو کـې
پـه طعـام او پـه ډوډۍ او پـه اوړو کـې
نـــاروا دی دا د خلکـــو ځـــورول دي
د وګـــړو اړ ایـــستل محتـــاجول دي
خــو لــه دې پرتــه پــه نــورو کــې روا دي
دا سـاتل بیـا احتکـار نـه دي صـفا دي
❋❋❋

## ټګي برګي

دروغ ټګــي برګــي اســلام کــې نــاروا ده
چــې ریــښتیا پاکــه صـفا وي نــو روا ده
لامــده لانــدې وچ لـــه پاســه نــاروا دي
تــول ډنــډه وهــل لــه لاسـه نـاروا دي

بنــه رامــخ تــه خــراب شــاته نــاروا دي

کـم پـه تـول ورکـول چاتـه نـاروا دي

رخـت ټـوکر پـه ګـز رانـکل هـم نـاروا دي

په قسم څوک تېر ايـستل هـم نـاروا دي

بنـه خـراب جـنس ګـډول هـم نـاروا دي

زوړ پــه نــوي تېــرول هــم نــاروا دي

د عيبونــــو پټــــول هــــم نـــاروا دي

د بل ځای په نوم پلـورل هـم نـاروا دي

چــې تــړون بيعــې کــې چېرتــه جهالــت وي

د مجهولــو نــاروا هــر يــو صــورت وي

***

## اِفلاس (لېنګي)

چې مفلس شي مال يې خلاص شي او لېنګ شي

او پورونو بې وزلی سره پـه جنـګ شـي

بيا پـه کـار دي مـسلمان تـه چـې شـتمن وي

چې مـدد ورسـره وکـړي کـه پـتمن وي

پــور ورکــړو تــه ليــدل ورتــه پــه کــار دي

که څه وي هغه دې واخلي دوی نه ځار دي

د هــر چــا برخــه د پــور پــه تناســب ده

د بنــېګړې او نېکـــی پـــه تقـــارب ده

که چا کوم يو شی پلورلی پـرې پـه پـور وي

او مونـدلی يـې هغـه سـره پـه کـور وي

نــو مالــک د شــي د خپــل شــي مــستحق دی
کــه دا نــه منــي ملعــون او منــافق دی
دی به خپل شی پـه ورکـړي قیمـت واخلـي
که کنـډو نـه و زیـاتي قیمـت بـه نـاخلي

***

# حواله

حوالــه د پــور بــل لاس تــه اړول دي
د شتمن سړي په لاس لاس ورکـول دي
چـې شـتمن وي او ریـښتونی نیکوکـار وي
د اسـلام حکـم منـي پـه سـمه لار وي
حوالــه پــه هغــه ورکــړې پــوروړی
او دا ومنـــي لاس ورکـــړي نومـــوړی
نــو پــه کــار ده چــې قبولــه حوالــه شــي
او پــه دې ترتیــب ادا معاملــه شــي
پــوروړی کــه مــال ولــري غنــي وي
لنــډول د پــور هغــه تــه اســاني وي
او پــور نــه لنــډوي ظلــم او تېــری دی
د مظلوم زړه په همدې ظلم سوری دی
دې ظــالم تــه ســزا ورکــړه اوس روا ده
دا ســزا ورتــه بــې شــکه بــرملا ده
شریکان میراث خواره چې وېش قبول کړي
او په وېش باندې راضي وي دا معقول کړي

او بیـا وروسـته کومـه برخـه تـاواني شـي
یا دعـوه شـي یـا بـل ډول نقـصاني شـي
نه بیا وېش راګرځـول شـته پـه دې کـار کې
نه له نورو نه غوښتل شته په دې چار کې

❋❋❋

# تحجیر (بندیز لګول)

چـې پـه مـال کـې تـصرف د چـا ناسـم وي
پوروړی او لپنګ شـي مـال یـې کـم وي
پـه اسـراف او پـه تبـذیر بانـدې روان وي
او د خلکـو مـال خـوړل ورتـه اسـان وي
پـــه هغــه بانـــدې بنـــدیز لګـــول کېـــږي
دا بندیز پرې په تحجیر باندې یادېږي
هــم د خپــل مــال تــصرف نــه ایــسارېږي
هم په خلکو کې بنـدیز پـرې اعلانېږي
چـــې د پـــور معاملـــه ورســـره مـــه کـــړئ
او څه کـار او مـزدوري وربانـدې وکـړئ

❋❋❋

# شرکت او مضاربت

دوه یا څـو چـې شـریکان شـي تجـارت کـې
وي تاوان ګټـه شـریکه دې شـرکت کـې
دا روا دی او همــــــدا مــــــضاربت دی
په ریښتیا او په اخلاص او په ښه نیت دی

شرط يې دا دی چې وي برخې بـه ټـاکلې
لکــه نيمــه يــا درېيمــه يــا د بلــې
راس المـال بـه هـم د نغـدو نـه د پـور وي
ښه معلوم به وي په خوښه نه پـه زور وي
دروغ ټگـي او تېـر ايـستل هـم نـاروا دي
او د گټــې پټــول هــم نــاروا دي
د كــار زيــار او د عمــل شــركت روا دی
لــږ او ډېــر او مكمــل شــركت روا دی
دوه يـا څـو چې تجـارت کـې شـريكان وي
او په خپلـو کـې رېـښتيني مخلـصان وي
ترڅو يو بل ته نـه ټـگ نـه زړه کـې غـل وي
نـــو الله ســـبحانَهُ ورســـره مـــل وی
خو كه يو بل ته شـي غـل او خيانـت وكـړي
نـو الله ورسـره مرسـته مـدد نـه کـړي
نارينــه او ښــځينه كــې تــوپير نــشته
تجارت کې پـه دې دواړو تحجيـر نـشته
پــه اســلام کــې چــې د بانــک معاملــه ده
د همــدې مــضاربت پــه حوالــه ده
طرفينـــو تـــه مـــصئونه او خونـــدي ده
دا د سود بانكونـه ټولـه بې خونـدي ده
كــه بانكونــه د نــړۍ مــضاربت شــي
اقتصاد به پـاک حـلال پـه تجـارت شـي

دا سوســيال اشــتراکي نظــام ظــالم دی
پنګــه وال او کــاواکي نظــام ظــالم دی
د اســلام اقتــصادي نظــام عــادل دی
ټــولنيز او سياســي نظــام عــادل دی
***

## پــور

د پــور ورکــړه د ثــواب ده پــه اسلام کــې
خو په ګټې د عـذاب ده پـه اسلام کـې
د پور ورکړې کـې ليکـل هـم ضروري دي
ګواهـان پکـې نيـول هـم ضروري دي
د نېټــې معلومــول هــم ضــروري دي
پـه نېټـې پـور لنـډول هـم ضروري دي
لاس چې تنګ وي انتظار ورته پکار دی
چې غنـي وي بيـا تلـوار ورتـه پکـار دی
چې غني وي او پـور نـه لنـډوي ځنـډ کـړي
دا بيا ظلم دی په زور يې بايد لنډ کـړي
بيــا ددې ظــالم رټنــه هــم روا ده
پــه ســزا يــې بيـا پوښـتنه هــم روا ده
***

## ســود

چې په پور باندې کوم مال يو چاتـه ورکـړي
په نېټې باندې خپل مال بېرته راسر کړي

لــه اصــلي ســره بيــا زياتــه ګټــه غــواړي
دغه سود دی او په دې دوزخ تـه لاړي
پـه اسـلام کـې پـور بـې ګټـې ورکـول دي
خوا خوږي ده په دې کار ثواب ګټل دي
خــو پــه ګټــې پــور د ســود دی نــاروا دی
دوزخــي دی کــه امــي دی کــه مــلا دی

❋❋❋

## وکـــالت

واک اختيــار ورکــول چاتــه فيــصلې کــې
تـــصرف مـــال تجـــارت معـــاملې کـــې
دا روا دی پـــه اخـــلاص او صـــداقت دی
نـه پـه دروغـو يـا ټګـۍ يـا خيانـت دی
پـــــه پېرلـــــو پېرودلـــــو کـــــې روا دی
ورکولـــــو اخيـــــستلو کـــــې روا دی
نـــاروا کـــې وکالـــت هـــم نـــاروا دی
وکالـــت پـــه مـــصلحت او اعتنـــا دی
د تفـــويض پـــوره مطلـــق وکالـــت دا دی
چـــې هـــر ډول تـــصرف ورتـــه روا دی
وکالـت کـې چـې شـرطونه وي مـشروط وي
بيا د شرط پـه مقتـضا بانـدې هبـوط وي
وکالـــت کـــه د غائـــب کـــه د حاضـــر وي
دا روا دی د مقـــيم يـــا مـــسافر وي

کـه د مـال پـه ورکولـو څـوک وکيـل شـي
او معلوم نه شي په عرف به دا تبديل شي
نـاروا کـار هـېڅ صـورت کـې روا نـه دی
تـوره شـپه تپـه تيـاره ده سبا نـه دی

***

## دلالـــي

پـــه اســـلام کـــې دلالـــي هـــم نـــاروا ده
د بـــازار دا چـــالاکي هـــم نـــاروا ده
منـډيي کـې چـې دا گرځـي دلالـي کـړي
د پېرلـــو پېرودلـــو سيمـــساري کـــړي
هـم پلـورونکي تـه سـترگک وهـي چالاکـه
اخيستونکي ته يـې هـم وهـي بـې باکـه
يـو تـه وايـي خرڅـوم يـې درتـه گـوره
بـل تـه وايـي درتـه اخلمـه يـې وروره
په دې منځ کې له دې دواړو څه حاصل کړي
چالاکۍ باندې هر يو ځان ته قايل کړي
نـــــاروا ده، نـــــاروا دا دلالـــــي ده
د دلال هــــره خبــــره جنجــــالي ده
خـو کـه ووايـي دا مـال سـلعه مـې پلـوره
سر يې دا دی نوره گټـه ځـان تـه گـوره
دا روا ده پـــه انـــصاف او پـــه ښـــه لارې
په اسلام کـې بـه د عـدل پـولې څـارې

خـو کـه ورکـړي چاتـه شـی او ورتـه وايـي
یو قیمت ورته معلـوم پـه وصـف سـتايي
چې دا خـرڅ کـړه دا معلـوم قیمـت زمـا شـو
او زیاتي له دې چې پورته وي نو ستا شو
دا روا دي بـاک يــې نــشته شــریعت کــې
په اسـلام کـې عـدالت دی تجـارت کـې

***

# غصب

غــصب خېټــه اچــول د چـا پــه مــال دي
د چـا مـال خـوړل پـه ظلـم د وبـال دي
لـه غاصـب نـه بـه مغـصوب اخيـستل کېـږي
د مظلوم مال به مطلوب اخيـستل کېـږي
نــه کــرل د چــا پــه ځمکــه کــې روا دي
نـه کـښتونه نيـالګي بـوټي د ښـکلا دي
کــه چــا وکـــرل نيـــالګي او يـــا کـــښتونه
د چـا ځمکـې کـې څـه ونـې يـا ګلونـه
نـو مالـک د ځمکـې دواړو کـې مختـار دی
د تلـف او پرېــښودلو يــې اختيــار دی
د غاصـــب لپـــاره نـــشته پـــه تلـــف کـــې
څـه تـاوان ددې کرلـو پـه هـدف کـې
که پرېږدي يـې د مالـک دي کـښت او ونـې
ددې ځمکې د خاوند دي بې پوښـتنې

او غاصب تـه بـه د تخـم تـاوان ورکـړي
د کرلو د وخت حـق بـه ورتـه سـر کـړي
د غاصـب لپـاره حـق د محنـت نـشته
د کرلــو ددې کــار د ســبقت نــشته
نـه پـه ټوکـو اخيـستل د چـا د مـال شـته
نه ناحقـه څـه خـوړل د چـا د مـال شـته
پـه اسـلام کـې نـه لوټـل د چـا د مـال شـته
نـه پـه زوره غـصبول د چـا د مـال شـته

***

## لُقَطَه (موندلی شی)

مونـدل شـوی شـی چـې وېـره د تلـف وي
پــه ســاتلو يــې ليــدونکی مکلــف وي
خــو مالــک ددغــه شــي هــم نــامعلوم وي
داسې شی وي چې ضياع يې هم محتوم وي
راخيـستل او هـم سـاتل يـې بيـا ضـرور دي
د اعلان ښکاره کول يـې بيـا ضـرور دي
امانــت بــه دغــه ســاتي تــر يــو کالــه
او اعـلان بـه يـې کـوي هـم انډيوالـه
کـه خاونـد يـې راپيـدا شـي دا بـه ورکـړي
دغـه پېټـی بـه لـه خپلـو اوږو لـر کـړي
کـه خاونـد يـې تـر يـو کالـه پيـدا نـه شـي
بيا روا يې شي مصرف چې د چا نـه شـي

له مصرف وروسته كه هم خاوند پيدا شي
وركول يې د تاوان ضرور په تا شي
خو كه شي وي د خوراک او خرابيږي
نو خوړل يې بيا بې شكه روا كيږي
خو ناڅيزه شي تر لږې مودې ياد كړه
كه پيدا نه شي خاوند يې ځان پرې ښاد كړه
حيوانات څاروي هم دې كې داخليږي
بې مالكه لقطې كې حسابيږي
بې له اوښه ناروا په اوښ غرض دى
اوښ موندلى كور ته مه راوړه مرض دى
اوښ ضياع او تلف نه لري چې ورک شي
راپيدا به شي خاوند زړه به يې سپک شي

***

## جعاله (انعام)

جعاله وايي تاكلو د انعام ته
په كولو د كوم كار خاص وي كه عام ته
په كوم زيار يا د سبق په يادولو
په وړتيا او يا د زېري په راوړلو
يا د ډېرو په كوم كار مسابقه وي
يا وي منډه او يا څه مقابله وي
يا وي توره يا د ښو هم ويشتل وي
يا ميدان كې رانيول او څملول وي

بریالي لپاره دې کې څه انعام وي
دا روا دی چې په عدل او په پام وي

## عاریت

عاریت د څه اوزار او شي غوښتل دي
استعمال لپاره چا نه اخیستل دي
د څاروي او یا د لوښي یا آلې دي
د جامې او یا کتاب او یا وسلې دي
عاریت بېرته پوره روغ ورکول دي
تر معلومې نېټې بېرته ستنول دي
که کنډو شي یا تلف شي نو تاوان دی
ورکوي به یې مالک ته په ښه شان دی
عاریت کې دا شرطونه په هر چا دي
اهلیت پکې ګڼل ښه په ریښتیا دي
هم ممکن به له شي ګټه اخیستل وي
هم د شي پاتې کېدل او ورکول وي
هم به ګټه اخیستل ترې ښه روا وي
عاریت د ناروا بیا ناروا وي
د مالک له اجازې پرته ناسم دي
ورکول چاته او دا کول د غم دي

اجــازې بانــدې روا يـــې ورکـــول دي

پـه تلـف کنـډو تـاوان هـم سـتنول دي

***

## ضمانت

کـــه د پـــور معاملـــه وي او يـــا کـــار وي

او بل څوک يې ذمه واخلي ذمه وار وي

دا روا دي دغـــه کـــار هـــم ضـــمانت دی

او بـل نـوم ددغـه کـار هـم کفالـت دی

چـې ضـامن او کفيـل کلـه ضـمانت کـړي

بيا به خامخا دا کار پـه ښـه همـت کـړي

بيـــا دده ذمـــه واري مـــسؤليت دی

چـې يـې کـړی ضـمانت او کفالـت دی

دده غـــاړې تـــه راغلـــی دغـــه کـــار دی

ضــمانت بانــدې دده پــه اوږو بــار دی

حق له دواړو نـه مطلـوب دی کـه اصيل وي

يا ضـامن وي ضـمانت بانـدې کفيـل وي

***

## وديعت

وديعـــت څـــه امانـــت دی ايـــښودل دي

د کوم چا سره موخه يـې ښـه سـاتل دي

دا ســاتل د امانــت پــه مــونږه فــرض دي

او سالم يې ستنول پـه مـونږه قـرض دي
کـــه امـــين ســـره ضـــايع دا امانـــت شـــي
د امـين څـه قـصور نـه وي خيانـت شـي
ضـــامن نـــه دی د قـــسم وربانـــدې حـــق دی
د اصـلي مالـک دا حـق ښـه محقـق دی
کـه تقـصير وي د امـين نـو بيـا ضـامن دی
ښه تاوان به ورکـوي چـې دا خـائن دی
***

## مِنحَه

منحـه وايـي لنـګ څـاروي او لنګـې غـوا تـه
چـې شـېدو لپـاره ور يـې کـړي و چاتـه
دا ډالـــی ده او ښـــېګړه ده چـــې کېـــږي
د اشنا، خپل او محتاج کار پـرې رغېـږي
ښــه واښــه بــه ورکــوي ښــه بــه يــې پــالي
د شـېدو سـوټو بـدل کـې بـه دا ګـالي
خو چـې وچـه شـي دا لنګـه بيـا يـې ورکـړه
د احـــسان کـــار پـــه مننـــې برابـــر کـــړه
نـــه مالـــک څخـــه ددې ايـــسارول شـــته
نه په تا باندې پـه زوره يـې ساتل شـته
***

# ډالۍ بېرته اخيستل ناروا دي

پـه اسـلام کـې د ډالـۍ ورکـول ښـه دي
خو نااهلو تـه ډالـۍ خـره تـه واښـه دي

چــې ډالــۍ دې چاتــه ورکــړه بيــا بــښلی
ډالــۍ شــوی بېرتــه نــه شــې ســتنولی

د ډالـــۍ اخيـــستل بېرتـــه نـــاروا دي
ټـول حکمونـه د اسـلام پـه اعتنـا دي

چـې بـښلی کـوم شـی بېرتـه سـتنوي څـوک
نو مثال يې دی د سپي چې دا کوي څوک

چــې چــا شــی وي ډالــۍ کــړی او بــښلی
کـه دا غـواړي بېرتـه نـه دی دا ښـاغلی

پيغمبــر وايــي ډالــۍ چــې بېرتــه غــواړي
لکه سپی دی چې قی شوي بيا رانغاړي

چــې ډالــۍ او څــه تحفــه دې چاتــه ورکــړه
په قيمت يې هم بيا مه اخلـه حـذر کـړه

❋❋❋

# عمری

عمـری دا ده چـې ډالـۍ ورکـړې يـو چاتـه
ورتـه ووايـې چـې در مـې کـړه دا تاتـه

ستا تر عمره به دا ستا وي خـو کـه مـړ شـوې
ډالۍ بېرتـه بيـا زمـا ده او تـه پـړ شـوې

ډالی وشوه خو همدا ډالی ډالی ده
بېرته نه راګرځي والوته مرغی ده
دا چې چاته ډالی شوې د هغه ده
چې قبوله کړه دا چا د همغه ده

❋❋❋

# رقبی

رقبی دا ده چې ډالی یو چاته ورکړې
او شرطونه یې له ځانه برابر کړې
چې دا ستا شوه که ته ومرې بیا زما ده
او که زه ومرم نو دا ډالی بیا ستا ده
هر یو کس د بل د مړینې انتظار کړي
دا هم لاړه دا ډالی د ډالی کار کړي
د هغه ده بېښل شوې چې ده چاته
بېرته نه راګرځي دا د مال والا ته

❋❋❋

# وقف

وقف دا چې اصل سر ایسارول دي
د الله لپاره ګټه صرفول دي
لکه وقف شو د ځمکې یا کوهیانو
د باغونو او د ونو یا اوښانو

د جومات لپاره وقف هم کېدی شي
مدرسې لپاره وقف جوړېدی شي
مسکینانو بې وزلانو ته هم ښه دی
مسافرو یتیمانو ته هم ښه دی
د خیر کار لپاره وقف کې ثواب دی
د شر کار لپاره اور دی او عذاب دی
د مکتب او پوهنتون لپاره ښه دی
د لنګر او د روغتون لپاره ښه دی
چې له مړینې وروسته هم ثواب رسېږي
هغه وقف دی په ژوند باندې چې کېږي
کتابونه، کتابتون کې هم ثواب دی
لارې، پول، نهر سمون کې هم ثواب دی
په خپلوانو اقاربو هم ثواب دی
د هر خیر په مناسبو هم ثواب دی
د جهاد لپاره وقف هم ثواب دی
چې راغلی د اسلام په هر کتاب دی
شرط د وقف هم بلوغ هم اهلیت دی
اختیار عقل ورسره هم حریت دی
کوم یو مال چې وقف کېږي ایسارېږي
نه ډالۍ نه میراث کېږي نه خرڅېږي

سرپرست یې یا مالک یا وارثان دي
یا چې څوک وي مقرر هغه کسان دي
وقف هغو کې دی سم چې پاتې کېږي
اصل پاتې وي او ګټه یې رسېږي
نه په نغدو کې دا وقف صحیح کېږي
نه شیانو د خوړو څښو کې سمېږي
نه هغو کې چې پلورل یې ناروا وي
نه هغو کې چې فساد یې برملا وي
په مجهول باندې هم وقف صحیح نه دی
ناروا باندې هم وقف مبیح نه دی
په غنیانو باندې وقف ناروا دی
وقف وقف دی، نه ستا دی نه زما دی

❋❋❋

## شُفعه

که دوه کسه وي یا ډېر یو څو کسان وي
او په ځمکه کې دا واړه شریکان وي
او لا نه یې وي وېشلې دغه ځمکه
ځان پرې پوه کړه دا خبره ده نازکه
که دا یو یې خرڅوي د نورو حق دی
چې یې واخلي دغه حق یې محقق دی

د شريک حق دی چې واخلي دغه برخه
په انصاف باندې به نه وځي له نرخه
دغه حق ته شفعه وايي شريعت کې
د اسلام د دليلونو په صحت کې
خو که وويشل شي واړول شي لارې
او بريدونه شي معلوم د خپلې چارې
نو بيا نشته دی شفعه هر څوک ازاد دی
چې په هر چا يې پلوري واکمن او ښاد دی
خو ښيګړه ګونډې سره په کار ده
په اسلام کې د ښيګړې هره لار ده
چې په لاره کې شريک کوم ګاونډيان وي
نو شفعه ورته ثابته په ښه شان وي
خو چې لارې وي جلا شفعه فرض نه ده
مستحب ده او دا خامخا قرض نه ده
نه اړتيا نه بده ګټه اخيستل شته
نه بې ځايه بندول ايسارول شته
که څوک خپله برخه وپلوري شريکه
او خبر نه کړي شريک په دغه ليکه
نو شفعې باندې دا بېرته راستنېږي
په خرڅ شوي نرخ شريک ته حسابېږي

چې شريک وي په هر شي کې شفعه بويه
برخه يو شی ده وړه وي او که لويه
خرڅولو نه چې مخکې اجازه وي
يا د خرڅ په وخت حاضر وي ښه تازه وي
او ونه غواړي شفعه شفعه يې لاړه
که شفعه غواړې د خرڅ په وخت يې غواړه
شفيع هغه دی تر ټولو چې نږدې وي
د کورور يې ښه نږدې او د پردې وي

***

# لارې

چې شريکې کومې لارې وي معلومې
او په تلو راتلو پخوا نه وي موسومې
روا نه دي چې راتنګې شي او لنډې
ټول شريک دي د هر چا دي پکې ونډې
چې معلومه کومه نه وي اختلاف وي
ددې لارې په ټاکلو کې خلاف وي
نو پلنوالی يې بيا اوه ګزه حساب دی
اوه ذراعه د حديثو په کتاب دی
او هم دا چې دوه بار شوي اوښان تېر شي
په دې لاره ښه اسانه تېر و بېر شي

اوســــنۍ د دوه لاريـــــو لار جـــــوړېږي
دغــه لاره پــه دې ډول پــوره کېــږي

***

# اِجـاره

د معلـوم شـي چـې معلـوم يـې منفعـت وي
اجـاره ده پـه معلـوم اجـر صـحت وي
لکــه ونيــسې مــزدور او يــا بزگــر وي
يا خټگـر وي او يـا بـل کـوم کـسبگر وي
پـــه معلـــومې مـــزدورۍ د کـــار لپـــاره
اجـــاره ده دا روا ده ښـــه يـــې واوره
د بزگـــر د بزگـــرۍ چـــې مـــزدوري وي
پـه غلـې او يـا پـه نغـدو بزگـري وي
دا روا ده مـــزدوري چـــې وي معلومـــه
نـاروا ده چـې مجهولـه وي بـې نومـه
چـــې بـــادار کلـــه ټـــاکلې غلـــه غـــواړي
چې خروار زما کـه خانـدي او کـه ژاړي
نـــوره ټولـــه د بزگـــر لـــره او ډېـــره
که بېخي نـه وي يـا وي تـر بريـده تېـره
دا مجهولــــه بزگـــــري ده نـــــاروا ده
د دهقـان هـسې خـواري ده نـاروا ده

دا زمـــــونږه د وګـــــړو اجـــــاره ده
دا د ظلـــــم نــــاروا او نــــاکره ده

٭٭٭

# بزګري او دهقاني

چـــې د ځمکـــې بزګـــري او دهقــاني وي
هم بـادار او هـم دهقـان تـه اسـاني وي
دا پـــه برخـــو هـــم روا ده لکـــه نيمـــه
يـا درېيمــه، څلورمـه عـرف پـه سـيمه
ددې نـــوم زمـــونږ رواج کـــې نيمکـــاره ده
دا روا ده پـــه دليـــل کـــره پـــوره ده
يـــا دهقـــان تـــه دهقـــاني کـړې ورمعلومـــه
ښـه کـره وي ښـه پـوره وي او موسـومه
دا روا ده او مجهولـــــــه نــــــــاروا ده
چـې خـواري ځـي نامعقولـه نـاروا ده
خـــو معلومـــه چـــې غلـــه وي د بـــادار بيـــا
انـــدازه د خرورونـــو يـــا خـــروار بيـــا
زمـــونږ سـيمه کـې چـې بـولي اجـاره دا
نــــاروا ده، نــــاروا ده، نــــاکره دا
لـــه دهقانـــه منفعـــت پکـــې معلـــوم دی
او دا اجـر يـې مجهـول او نـامعلوم دی
د کـــافر ســـره روا ده مـــزدوري هـــم
د کـــافر تاتـــه روا ده بزګـــري هـــم

شرط يې دا دی چې دا کار به يې شخصي وي
او ستا دين بـه ښـه ازاد او اخلاصـي وي
خـــو نظــام او حکومــت چـــې وي د کفــر
او قــانون او سياســت چـــې وي د کفــر
قـــوانين او يـــا قـــانون پکـــې وضـــعي وي
او دستور د کوم وطن وي او حـاوي وي
دې نظــام ســره هــر کــار بيــا نــاروا دی
دا ولاء ده دا کـــردار بيـــا نـــاروا دی
لکـــه اوس چـــې دي لاســـپوڅي نظامونـــه
گـــــوډاگي او طـــاغوتي حکومتونـــــه
دې نظــام ســره کــار بالکــل نــاروا دی
کـه اوقـافو کـې د حــج وي ناصــفا دی
کـــه فـــارغ وي مـــدينې منـــورې نـــه
يـــا فـــارغ وي اکـــوړي اثريـــې نـــه
او طــاغوت ســره بيــا کــار کــوي کــافر دی
که د حـج، يوناما[1] چـار کـوي کـافر دی
کـر او کـښت چـې پـه طاعـت او عبـادت وي
دا ثواب دی او په دې کې مصلحت وي
کــه ايــسار پــه دهقــانۍ شـــي لــه جهــاده
عبـــادت او لـــه ښـــېگړې اتحـــاده
بيـا ذلـت دی سـپکاوی دی او خـواري ده
دهقـانۍ کـې عبـادت بيـا هوښـياري ده

[1] "يوناما" يوه امريکايي اداره ده، چې اوس د افغانستان د اشغال په وخت په ادارو او اداري امورو کې تشبث کوي.

کــه څــوک وکــري کــښتونه بــوټې ونـــې

ټولــه ګټــه ده مېــوې غلــې او غنـــې

کـه انـسان تـرې ګټـه اخلـي هـم ثـواب دی

د مرغــانو حېوانــاتو هــم حــساب دی

نــورو خلکــو تــه دســپي ســاتل حــرام دي

درې کــسانو تــه روا دا پــه انعــام دي

یـــو بزګـــر دی د کـــښتونو او دهقـــان دی

بل د مال والا چې شپون یا پادوان دی

او درېیم پکـې ښـکاري دی چـې یـادېږي

ښـکار لپـاره دی روا چـې روزل کېـږي

اســـتثنا پـــه بزګـــری کـــې نـــاروا ده

چې دا نور به وي شریک خـو دا زما ده

د اپـــین کـــرل حـــرام دي د کوکنـــارو

هــم د بنګــو دي حــرام او د مــردارو

چې حرام وي نـو کـرل یـې هـم حـرام دي

ټـول حکمونـه د ښـېګړې د اسـلام دي

کــه څــوک ځمکــه وړیــا کــر لپــاره ورکــړي

څه ترې نه غواړي ثواب به راترسـرکړي

## اوبه خور

اوبـــه خـــور او هـــم پالنـــه د بـــاغونو

نیمکــارې بانــدې روا هــم د کــښتونو

پـه اوبـو کـې دا ټـول خلـک شـریکان دي

اور وښو کې دا ټول خلـک شـریکان دي

چــــې اوبــــهٔ کلــــه شــــریکې وي د عــــامو
لــه نــړدې نــه بــه پیلېــږي تــر تمــامو
لــومړی پــاس او بیــا بــه لانــدې اوبــه کېــږي
پــه انــصاف او ورورولئ بــه تقــسیمېږي
پــه ارټ، ماشــین مــصرف چــې اوبــه نــه وي
بیــا زیــاتي منــع کــول یــې روا نــه وي

***

# د شاړو ودانول

شــاړه ځمکــه چــې ابــاده کــړي ودانــه
د چـا ملـک او حـریم نـه وي زمـا ګرانـه
د هغــه ده چــې ودانــه کــړي دا ځمکــه
ودانــــي او ابــــادي مــــه ګڼــــه ســــپکه
دا ټــول خلــک پــه دې شــاړو کــې شــریک دي
نه محتــاج د قــوالې دي نــه د لیــک دي
اجــــازې د حکومــــت تــــه اړتیــــا نــــشته
د حــاکم څــه اجــازت تــه اړتیــا نــشته
د اســــلام اجــــازه بــــس ده مــــسلمانه
زر پــاڅېږه شــاړه ځمکــه کــړه ودانــه
ګېــــرول پــــه هــــسې نــــښو نــــاروا دي
چې دې شاړې کړې ودانې هغه ستا دي
چــــې د عــــدل اســــلامي خلافــــت راشــــي
او ودانې دې کړې شاړې بیا به ستا شـي

هـرې برخــې ددې ځمکــې کــې ازاد يــې
هرې څنډې ته چې ځې نو ته به ښاد يې
پــه اسـلام کـې دغـه تنـګ بريدونـه نـشته
سياسـي دغـه بـې ننـګ بريدونـه نـشته
لـــه مـــشرقه تـــر مغربـــه يـــو امـــت دی
لـه امـي نـه تـر طالبـه يـو امـت دی
پــه عــرب او پــه عجــم کــې تــوپير نــشته
هـم د حـل او د حـرم کـې تـوپير نـشته
سره يو دي سـپين او تـور کـې تـوپير نـشته
رنګ او نسل نور او نور کې تـوپير نـشته
دا واړه ګــــــڼ دولتونــــــه نــــــاروا دي
وېـــشل شـــوي هېوادونـــه نـــاروا دي
نه پاسپورټ شته نه وېزه شته پـه اسـلام کـې
نه بنديز نـه انـدازه شـته پـه اسـلام کـې
تجـارت تـه ځـې کـه حـج تـه کـه عمـرې تـه
هر يوځای ته ځه د ژوند هرې چارې تـه
نه پردی يـې نـه کـوم کـارت تـه ضـرورت شـته
ددې ځمکې په هر ګوټ کې ستا عزت شته
ددې ځمکـــې شـــاړې تـــولې کـــړه ودانـــې
هر انسان ته د ژونـد چـارې کـړه اسـانې
آســـيا کـــې يـــې ودانـــه کـــړه نـــو ســـتا ده
افريقـا کـې يـې ودانـه کـړه نـو سـتا ده

اروپا کې شاړې ستا دي په اسلام کې
امریکا کې شاړې ستا دي په اسلام کې
که دا حکم عملي شي دې نړۍ کې
بیا به څومره سوکالي شي دې نړۍ کې
هېڅ انسان به بیا بې کوره پاتې نه شي
هم بې ځمکې به بې سوره پاتې نه شي
لوی ښارونه کارخانې به شي هم ډېرې
دا مېوې غلې دانې به شي هم ډېرې
ونې بوټي او ګلونه به هم ډېر شي
چمنونه او باغونه به هم ډېر شي
معلومات او ډېر علمونه به خپاره شي
ددې ځمکې ډېر رازونه به خپاره شي
دې وضعي قانون دا ځمکه شاړه کړې
عدل نشته دا یې ځکه شاړه کړې
مسلمان څه چې انسان سره تېرى دى
انسان څه چې لا حیوان سره تېرى دى

# نکاح

د اسلام له واجباتو یو نکاح ده
په نکاح کې هم فلاح او هم صلاح ده
چې هلک چېرته زلمی شي جلۍ ځوانه
نو واده ورته په بیړه کوه ګرانه

د واده عمـــل فطـــري دی پـــه انـــسان کـــې
هم جوړه د نر او ښځې په حېوان کې
هـــــم لامــــــل د تناســـــل دی د ژونـــــديو
هم خپلوان پرې جلا کېږي له پرديو
هـم کهـول کـور او کورونـه پـرې جـوړېږي
هـم خپلونـه او قومونـه پـرې بېلېـږي
غريـــزې د طبيعـــت پـــرې هـــم مړېـــږي
يـو تـر بلـه محبـت پـرې هـم زيـاتيږي
پــه نکــاح کــې مخنيــوی د بــې لارۍ دی
مخنيـــوی هـــم د ګنــاه او بيمــارۍ دی
په نکاح باندې پردي کورونه خپل شي
په نکاح باندې په سمه لاره تلل شي
د نکــاح پرېــښودل نــشته پــه اســلام کــې
که ژوند غواړې نکاح ونيسه په پام کې
هـــم ضـــرور د هـــرې پيغلـــې ودول دي
هم ضرور د هرې کونډې ورکول دي
نـه د ښځو خرڅـول شـته پـه اسـلام کـې
نـه د ښځو بـدلول شـته پـه اسـلام کـې
نـــه پـــه بـــدو کـــې د ښـــځو ورکـــول شـــته
نـــه پـــه زوره هـــم د ښـــځو ودول شـــته
نـه جهيـز او بـد دودونـه شـته اسـلام کـې
نــه نــاوړه رواجونــه شــته اســلام کــې

پــه اســان مهــر ودونــه دي اســلام کــې
په رضا دا دواړه زړونه دي اسلام کې
د بــل چــا پــه مرکــې مرکــه مــه کــړه
شــریعت چــې درتــه وایــي هغــه وکــړه
د هلــک جلــۍ صــفت ښــه دیانــت دی
ښــه اخــلاق او تربیــه ده او عفــت دی
د بــې دینــو او بــې پتــو ښېــښي مــه کــړه
د بې ننګـو دون همتـو ښېښي مـه کـړه
کـه پـه خـور او لـور د سـیال مرکـه راغلـه
د کـوم خپـل یـا انـډیوال مرکـه راغلـه
نـه، نـه مـه کـړه پـه او بیـړه ورتـه هـو کـړه
دا دروند پېټی دې راښکته له اوږو کـړه
د بــل چــا پــه مرکــې مرکــه مــه کــړه
هــسې ګــواښ او نــاروا پټکــه مــه کــړه
یــو تــر بلــه دا لیــدل کتــل مــشروع دي
د هلک جلـۍ رضا پوښـتل مـشروع دي
د هلــک جلــۍ پخپلــه هــم لیــدل شــته
د خواخوږې مور او خوېندو هم کتل شـته
دا لیــدل کتــل یــو ځــل دي د پتمنــو
د عفــت او پــت ســاتل دي د پتمنــو
نــه لیــدلو کــې اوږده پــاتې کېــدل شــته
نـه پـه دې بانـه چکـرې لـرې تلـل شـته

نــه یــو بــل ســره مــښل او ســولېدل شــته

نه د لاس ورکـول شـته نـه ښـکلول شـته

بـس یـو بـل تـه پـه عفـت کـې ورکتـل دي

سمدسـتي شـاته راتلـل او سـتنېدل دي

دا بـې ځایـه غوښـتل نـشته پـه اسـلام کـې

د زوم کور ړنګـول نـشته پـه اسـلام کـې

دا د ښـــــځو پنځلـــــسي او رواجونـــــه

نـــــاروا دي، دا نـــــاوړه مـــــصرفونه

ښــکلې پېغلــې رواجــو هــسې زړې کــړې

د دودونــو مزاجــو هــسې زړې کــړې

ځوانـان هـم بـې واده ګرځـي او زاړه شـول

ځینې ځینې لـه ارمانـه سره مړه شـول

مـزدورۍ پـسې دوبـۍ تـه ځـي کړېـږي

خواښـې سـخر پـه رواجونـو نـه مړېـږي

پـــه کلونـــو هلتـــه پـــاتې وي او زوړ شـــي

او پیسې ګټي چې سخر دووس یې موړ شي

بـــدکاریو فـــسادونو کـــې اختـــه شـــي

ډېر په شخړو جنجـالونو کـې اختـه شـي

کلــه کلــه پکــې پـېښ قتــل و قتــال شــي

رواجونو بـادې پـېښ دغـه جنجـال شـي

چـــې دودونـــه رواجونـــه وي نـــاوړه

جلـۍ تنګـه شـي او لاړه شـي شـینګړه

د رواج لــه لاســه ډېــر مخونــه تــور شــي
دښــمنۍ او خفگانونــه او پېغــور شــي
رواجونـــــه کړاوونـــــه انديـــــښنې دي
رواجونـــه عذابونـــه او کينـــې دي
واده هغــه چــې ســبب د خوشــحالۍ شــي
ژونـد نېکمرغـه د هلـک او د جلـۍ شـي
واده مينــه، ژونــد او پــت عفــت ســاتل دي
پــه يــو تــار د محبــت زړونــه پېيــل دي

***

# هغه څوک چې نکاح ورسره نه کېږي

لــور او مــور ســره نکــاح هــم نــاروا ده
تــرور او خــور ســره نکــاح هــم نــاروا ده
پرکتــۍ خــورزه، وربــره هــم نــاروا ده
او د پــلار ښــځه ميــره هــم نــاروا ده
کــه لمــسۍ وي کــه وي ښــکته نــاروا ده
د مــور پــلار خــور لــه عفتــه نــاروا ده
مــور او پــلار نــه اعيــاني خــور نــاروا ده
او لــه مــوره اخيــافي خــور نــاروا ده
زناکـــار ســـره نکـــاح هـــم نـــاروا ده
فيـــصله د زناکـــارې هـــم همـــدا ده
مېرنـــۍ خـــور علاتـــي هـــم نـــاروا ده
د شــېدو خــور رضــاعي هــم نــاروا ده

ســتا د زوی ښــځه ننګــور هــم نــاروا ده
ښځه ستـا د ښـځې تـرور هـم نـاروا ده
دا ســتا ښـځه او کـه ســتا د ښـځې خـور ده
يا ستا ښځه ده او ستـا د ښـځې تـرور ده
پــه نکــاح يوځــای کــول يــې نــاروا دي
يــو ســړي تــه ودول يــې نــاروا دي
او کــه ښــځه ومــري ښــينه بيــا روا ده
يــوه تــرور يــې نازنينــه بيــا روا ده
کـه هلـک د بلـې ښـځې شـېدې وخـوري
او نور ورونه ددې ښځې پې ونه خـوري
ددې ښــځې لــوڼې ټــولې نــاروا دي
دې هلک تـه خـو دې نـورو تـه روا دي
کـه جلـۍ د بلـې ښـځې شـېدې وخـوري
نورې خوېندې ددې ښځې پې ونه خوري
ددې ښــــځې زامــــن واړه نــــاروا دي
دې جلۍ تـه خـو دې نـورو تـه روا دي
د کـــــافرې او مـــــشرکې ده حرامـــــه
کتــابۍ ســره نکــاح کېــږي لــه پامــه
لــــه څلــــورو ښــــځو زيــــاتې نــــاروا دي
تـر څلـورو چـې پـه عـدل وي روا دي
د مېـــــړه والا مړوخـــــــه نـــــــاروا ده
خــو طلاقــه او يــا کونــډه بيــا روا ده

❋❋❋

# رضاعت

رضــاعت د بلــې ښــځې تــی رودل دي
د هلــک يــا د جلــۍ ځــان مــړول دي
رضـــاعت پـــه پنځـــه ځلـــه ثـــابتېږي
پـــه پنځـــه ځلـــه رودلـــو حرامېـــږي
چې يو ځل په تي خوله ښخه کړي او موړ شي
دا يو ځل دی له پنځو نه يو ځل جوړ شي
هــسې يــو دوه درې چپونــه حــساب نــه دي
لـه پنځـو نـه کـم ځلونـه حـساب نـه دي
نـاروا چــې وي نکـاح پـه کـوم نــسب کــې
رضـاعت کـې نـاروا شـي پـه سـبب کـې
رضـــــاعت د ماشـــــومانو ثـــــابتېږي
پـه پنځـو ځلـو حـساب کـې جـوتېږي
د کبيــر رودل شــمېر نــه دي رضـاعت کــې
حـرام نـه دي د کبيـر پـه شـريعت کـې

# د متعې نکاح

د معلـوم وخـت چـې نکـاح وي د متعـې وي
نـاروا ده چـې دا لـرې کـه نـږدې وي
د متعــې نکـاح منــسوخ ده پـه اسـلام کــې
حـرام مـه کـوه دا ونيـسه پـه پـام کـې

د طـلاق پـه نیـت نکـاح هـم نـاروا ده
نـاروا ده د پاچـا کـه د گـدا ده

***

## شغار

پـه بـدل نکـاح کـول هـم نـاروا دي
دا شـغار دی نـاروا یـې بـرملا دي
لکـه خوینـدې او یـا لـوڼې بـدلوي څـوک
ناروا دی دا بدل چې یې کوي څـوک
خـو کـه شـرط یـې بـدلول نـه وي خپلـوي وي
ښـه پـه مهـر بـې بدلـه دا ښـښي وي
یـو تـر بلـه سـره ورکـړي لـوڼې خوینـدې
او خوشـحاله وي پلرونـه او هـم میندې
بیـا شـغار نـه دی خپلـوي ده ښـه حلالـه
چـې بـدل نـه وي کـوه یـې انډیوالـه

***

## مهـر

ښـځه حـق لـري د مهـر پـه واده کـې
نکـاح نـه کیـږي پـه قهـر پـه واده کـې
مهـر حـد او کـوم برید نـه لـري اسـلام کـې
وس او خوښه دواړه ونیـسه پـه پـام کـې

ښــه هغــه دی چـــې هــم لــږ وي هــم اســانه
دا بـې خرتـه مهـر مـه غـواړه لـه چانـه
دا ولـــــور او دا بــــې ځایـــه رواجونــــه
نـــاروا دي پـــرې راغلـــي دلیلونـــه
مهـر حـق دی دغـه مـال د ښځې خپـل دی
نه د پلار دی نه د ورور دی نه د بل دی
مهـر نغـد وي او کـه جـنس وي نـو روا دی
کــه لــه وســه وي دبانــدې نــاروا دی
هــسې نــوم ایــښودل نــه دي ورکــول دي
په نکاح کې دغـه شـرط پـوره کـول دي

***

# کفائت یا سیالي

سیال له سیال سره جوړېږي پـه نکـاح کـې
سیال له سیالې سره یو کړه اقتـراح کـې
ښـه سـیالي تقـوی نېکـي ده پـه اسـلام کـې
کفائـت او سـیالي ونیـسه پـه پـام کـې
بیـــا حـــسب نـــسب او کـــسب اهلیـــت دی
پـه اسـلام کـې کفـاءت تـه اهمیـت دی
دا پـــښان او جولاګـــان ســـره ســـیالان دي
دغــه نــور مــسلمانان ســره ســیالان دي
چې سیال نه وي بیا یې ژوند سره تریخېږي
سیال له سـیال سـره ژونـدون برابرېږي

***

# نکاح تړل

د هلک جلۍ رضا هم ضروري ده
د ولي خوښي امضا هم ضروري ده
چې رضا د سرپرست او ولي نه وي
نکاح نه کېږي نکاح دلالي نه وي
په نکاح کې ضروري هم شاهدان دي
دوه یا ډېر چې وي حاضر ښه عادلان دي
هم يې مهر هم ايجاب او هم قبول دی
وکالت د سرپرست پکې مقبول دی
نه پردي خلک دې ناوې ته لېږل شته
نه د ناوې نيغ وهل او نه سکونډل شته
بل خطبه ده ښه مسنونه برملا ده
چې حديث کې ده راغلې هغه دا ده:

"إِنَّ الْحَمْدَ لله نَحْمَدُهُ وَ نَسْتَعِيْنُهُ وَ نَسْتَغْفِرُهُ وَ نُؤْمِنُ بِهِ وَ نَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَ نَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَ مَنْ يُّضْلِلْ فَلاَ هَادِيَ لَهُ وَ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ: فَإِنَّ أَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتَابُ اللهِ وَ خَيْرَ الْهَدْىِ هَدْىُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَرَّ الأُمُوْرِ مُحْدَثَاتُهَا وَ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَ كُلَّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ وَ كُلَّ ضَلاَلَةٍ فِيْ النَّارْ.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَ خَلَــقَ مِنْهَـــا زَوْجَهَا وَ بَثَّ مِنْهُمَا رِجَالاً كَثِيْراً وَّ نِسَاءً وَاتَّقُوْا اللهَ الَّذِىْ تَسَاءَلُوْنَ بِـــهِ وَالأَرْحَامْ إِنَّ اللهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْباً.

يَا أَيُّهَاالَّذِيْنَ آمَنُوْا اتَّقُوْااللهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلاَ تَمُوْتُنَّ إِلاَّ وَ أَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنْ يَـــا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اتَّقُوْا اللهَ وَ قُوْلُوْا قَوْلاً سَدِيْداً يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَـــالَكُمْ وَ يَغْفِرْلَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَ مَنْ يُّطِعِ اللهَ وَ رَسُوْلَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزاً عَظِيْماً.

## وکالت او اعلان

**پـه نکـاح کـې وکالـت هـم صـحيح کېـږي**
**د وکيــل پــه نکــاح ښــځه روا کېــږي**

**نکـــاح پټـــه نـــه ده ښـــه بـــه بـــرملا وي**
**پـه اعـلان بـه ښـه څرګنـده هويـدا وي**

**پـــه چمبـــې او پـــه ديـــالار هـــم اعلانېـــږي**
**چې ضـرر نـه وي پـه ډزو هـم دا کېـږي**

**چـــې فحـــشاء نـــه وي ســـندرې هـــم روا دي**
**خـو ډمتـوب ګـډا بـاجې يـې نـاروا دي**

**ترانـــې شـــعرونه وايـــه خوشـــحالۍ کـــې**
**که نږدې وي که له ورايه خوشحالۍ کې**

**نــه ماشــوم د نــاوې غيــږ کــې کېنــول شــته**
**نـه لمـن بانـدې مېخونـه ټکوهـل شـته**

**نـــه پـــه نـــاوې بـــدپالي نيـــول روا دي**
**نــه لــه نــاوې بــدمرغي ګڼــل روا دي**

شـريعت بانـدې چـې ژونـد ټـول برابـر وي

نېکمرغي به په دې کور کې سراسـر وي

***

# وليمه

وليمـــــــــــه دا د واده ډوډۍ ده وروره

مه کـړه بخـل مـه اسـراف کـوه پـه زوره

دا تـر وسـه ده چـې وس دې وي نـو ورکـړه

چې وس نه وي نو بيا نشته ځان خبر کړه

چـــې د نـــاوې ډولــۍ راولـــې تـــر کـــوره

ډوډۍ ورکړه بيـا سبا تـه غـوړه سـپوره

وليمــه کـوم حــد او بريــد نــه لــري گــوره

تــدبير ونيــسه کـار مـه کـوه بـې سـوره

څــه چڼـــې مميـــز مېـــوه هـــم وليمـــه ده

دا ډوډۍ پيتـــي پيـــاوه هـــم وليمـــه ده

يــو پــسه يـا څـو څـاروي او يـا غويـان هـم

وليمه ده کوم يو اوښ او يـا اوښـان هـم

خپل خپلوان يـا کليـوال او يـا دوسـتان وي

رابلــه يــې کــه بــې وزلــي فقيــران وي

ټول مـاړه کـړه کـه مالـدار کـه مـسکينان وي

پـــه يـــوه تلـــه تلـــل د مـــسلمان وي

غريبـــان ورڅخـــه مـــه شـــړه دا عـــار دی

بې وزلان چې څوک شړي هغه داغدار دی

***

## نفقه او يو تر بله حقونه

چــې د ښــځې نفقــه ده پــه مېــړه ده
د واده دا وثيقـــه ده پـــه مېـــړه ده

که جامې دي که خوراک څښاک او که کور دی
پـه مېړه د خپلـې ښـځې دغـه پـور دی

لـه خپـل وسـه سـره سـمه پـرې دا فـرض ده
ورکوي به يې په مينه دا پرې قـرض ده

هم پرې فـرض د ښـځې پـت عـزت ساتل دي
هم د ښـځې د عـصمت عفـت سـاتل دي

د جمــاع مباشـــرت وربانـــدې حـــق دی
ښه سلوک او محبـت وربانـدې حـق دی

سـپکې سـپورې او کنځلـې ورتـه مـه کـړه
بـدې ردې غلــې غلــې ورتــه مــه کــړه

د بچـــو نفقـــه هـــم ټولـــه پـــه تـــا ده
ښـه پـه مينـه او پـه پـام پـه اعتنـا ده

دواړه ښــځه مېــړه يــو د بــل عــزت دی
ښځه پت دی د مېړه، مېړه يـې پـت دی

پـه ښـه مينـه محبـت بـه دواړه ژونـد کـړي
په اخلاص او په عفت به دواړه ژوند کړي

یــو تــر بلــه درغلــي هــم نــاروا ده

پــه بــدیو کــې سـیالي هـم نـاروا ده

کــه پــه ښـځې کـې بـدخوی نافرمـاني وه

نـصیحت ورتــه کــوه کــه پرېــشاني وه

که ښه نـه شـوه څملاسـتل تـرې راجـلا کـړه

په یوځای ویده کېدل تـرې راجـلا کـړه

که پـه دې هـم سـمه نـه شـوه بیـا وهـل دي

سخت وهلو او لـه مخـه ځـان سـاتل دي

که پـه دې هـم سـمه نـه شـوه بیـا جرګـه ده

د اصــلاح او نــصیحت یــوه بېلګــه ده

یـو د خیـر سـړی بـه سـتا لـه کـور حَکَـم شـي

یو به ستا له سـخرګنۍ ورسـره ضـم شـي

د اصـلاح او روغــې جــوړې پــه لټــون کــې

به کوښښ وکړي ددې پېښې سمون کـې

د خیـر کـار بانـدې بـه روغـه جـوړه راشـي

دا لانجـه بــه ټولـه ختمــه او صــفا شــي

او کـــه نـــه کېـــده طلاقـــه کـــړه دا ښـــځه

چې سرکـشه ده نـو نـور ورپـسې مـه ځـه

هــم پــه ښــځې د مېــړه دي ډېــر حقونــه

پــه ښــو ښـځو دي ودان زمــونږ كورونـه
د خپل ځان د پـت عفـت بـه حفاظـت كـړي
د مېـړه د پـت عـزت بـه حفاظـت كـړي
هــم د مــال او هــم د كــور بــه كـړي سـاتنه
پـه هـر كـار بـه لـه مېـړه كـوي پوښـتنه
هـم مېـړه تـه هـم بچـو تـه هـم بـه ځـان تـه
پاملرنــه كــوي گــوري بــه امكــان تــه
د مېـړه طاعـت پـه ښـځې بانـدې فـرض دی
هم د مينې محبـت وربانـدې قـرض دی
نـــاروا كـــې بيـــا د هيچـــا طاعـــت نـــشته
يـــو تـــر بلـــه درغلـــي او خيانـــت نـــشته
كـــه د كـــور دننـــه نظـــم انتظـــام دی
په پاكۍ او په اخلاص او په ښه پـام دی
د خپل ځان پاكي سينگار په ښځې فرض دی
خپل مېړه ته انتظار په ښځې فـرض دی
د مېـړه مـال كـې اسـراف هـم نـاروا دی
لـه مېـړه ځخـه خـلاف هـم نـاروا دی
دا بـــې ځايـــه رواجونـــه نـــاروا دي
دا بـــې ځايـــه مـــصرفونه نـــاروا دي
لـه خپـل وسـه زيـات غوښـتل هـم نـاروا دي
پـرده نـه كـول غنـدل هـم نـاروا دي

مېـــږه بـــد مجبـــورول هـــم نـــاروا دي
او د بنــې حــق وهــل هــم نــاروا دي
کـه دوه درې او يـا څلـور ښـځې د چـا وي
عـدالت بـه د دوی مـنځ کـې بـرملا وي
په هرڅـه کـې مـساوات پـه مېړه فـرض دی
عدل هرڅه کې کول په مېړه قـرض دی
د زړه مينــې پــه مــيلان گناهگــار نــه دی
خو که ظلم کوي خـلاص لـه ازار نـه دی
چې د ښځو منځ کې عدل نه کـړي وران وي
په قيامت کې به مفلوج او کوږ روان وي
د ذرې ذرې پوښـــتنه بـــه تـــرې کېـــږي
په دوزخ کـې بـه سـوځېږي او شـرمېږي
دواړه ښـــځه او مېـــړه دې محبـــت کـــړي
خپل ژوندون دې په عفت او شرافت کړي
يـــو تـــر بلـــه دې کـــوي ښـــه پاملرنـــه
هـر يـو کـار پـه مـشوره او پـه پوښـتنه
پـه اخـلاص مينـې او زغـم دې سره اوسـي
پــه سـمون او محتـرم دې سـره اوسـي
په ژوندون کـې بـه نـه غـم نـه انديـښنې وي
نه به جنگ نه به جـدل نـه بـه بـانې وي

په خپل کور به تل ښادي او خوشحالي وي
دا مېړه ښځه به دواړه بریالي وي
په کوم کور کې چې طاعت او عبادت وي
او ژوندون په شریعت او په الفت وي
هغه کور به تل ښېرازه او ودان وي
له غمونو اندېښنو به په امان وي

***

## طلاق

طلاق ښځه پرېښودل دي چې مجبور شي
په دې لاره بېلېدل دي چې مجبور شي
چې د ښځې او مېړه ژوندون خراب شي
ناغېږي شي اندېښنې شي اضطراب شي
هم د صلحې روغې جوړې لارې پرې شي
د یوځای د اوسېدو ورکې اسرې شي
بیا نو لاره د طلاق د سړي واک دی
چې بې ځایه کړي طلاق هغه کاواک دی
چې ډېر بد ایسي الله ته په حلالو
دا طلاق دي چې واقع شي له رجالو

طـلاق ښــه نــه دي خــو لار د مجبــورۍ ده
چې ژوند تریخ شي دغه لار د بې سرۍ ده
د طــلاق پــه نيــت نكــاح هــم نــاروا ده
دا متعـــه ده چـــې حرامـــه بـــرملا ده

***

# د طلاقو ډولونه

طلاق درې ډوله دي درې واړه يې زده كړه
رنګين مه ګرځه ژوندون ساده ساده كړه
يـــو رجعـــي دی بـــل طـــلاق بـــائن بولـــه
بـــل طـــلاق مغلـــظ دی واوره ټولـــه
ستا پـه خپلـې ښـځې درې طلاقـه واک دی
بـې لاملـه طلاقـي سـړی بـې بـاک دی
درې طلاقه پـه درې مياشـتو كـې سـنت دي
كـه دا نـه وي نـاروا دي او بـدعت دي
له حيض وروسته به پاكۍ كې هر طـلاق وي
دا بـه مخكـې لـه جمـاع پـه اتفـاق وي
يـا بـه هـر طـلاق د حمـل پـه دوران وي
په يوه مياشت كې به يو طلاق عيان وي
درې طلاقه په يوځای كې يو حساب دی
په مسلم كـې روايـت پـه دغـه بـاب دی

د طلاقــې ښــځې درې حیــضه عــدت دی

هر طـلاق یـې په امیـد یـا طهارت دی

رجعي دا دی چې یو ځل وي یا دوه ځل وي

په یوه میاشت کې یو ځل دغه کول وي

له عـدت مخکـې یـو دوه کـې رجـوع کېږي

په رجـوع بانـدې دا ښـځه بیـا خپلېږي

نــه د مهــر ضــرورت شــته نــه نکــاح تــه

اسلام درې میاشتې ورکړي دي اصلاح ته

که په یو کې یا پـه دوه کـې عـدت تېـر شـي

او رجوع ورته ونه کړي خلاف ډېـر شـي

لـه عـدت وروسـته بـائن دغـه طـلاق شـي

ښځه بېلـه لـه مېړه پـه دې اطـلاق شـي

کـه بیـا بېرتــه دغــه دواړه یوځــای کېــږي

نــو پــه مهــر او نکــاح ســره رغېــږي

مغلــــظ طــــلاق پــــه دې ډول دی وروره

چې په درې میاشتو کې درې شي ورته ګوره

طهارت کـې یـو طـلاق هـره میاشـت ورکـړي

او په منځ کې رجوع نه وي ټول خبر کړي

پــه دې ښــځه او مېــړه ســره جــلا شــول

نکاح نه کېږي کـه بیـا سـره پخـلا شـول

اوس د ښـځې واک د ښـځې او د پـلار دی

که مېړه کړي که یې نه کړي خپل یې کار دی

لـــه عـــدت وروســـته نکـــاح ورتـــه روا ده
لـــه نکـــاح پرتـــه هـــر چاتـــه نـــاروا ده
کـــه دويـــم مېـــړه يـــې وکـــړ د هغـــه ده
چـــې ممکنـــه وه ترڅـــو د همغـــه ده
خـو کـه پېښه شـوه دويـم کـړه هـم طلاقـه
مغلـــظ بانـــدې جـــلا شـــوه لـــه ميثاقـــه
خـــو څکلـــی يـــو د بـــل يـــې گبينـــی وي
او وهلـی يـې يـو ځلـې دا سـورنی وي
اوس لـومړي تـه شـوه روا پـه خپلـه خوښـه
خو پـه زوره نکـاح نـه شـي پـه ناخوښـه
اوس لـومړي سـره نکـاح شـي هـم تړلـی
په دې شرط چې گبينـی يـې وي څکلـی
خو کـه خوښـه يـې دا نـه وه زور پـرې نـشته
د لومړي مېړه هيڅ واک او نور پرې نشته
خو په نيت د حلالـې چـې يـې نکـاح کـړي
دا زنـــا ده نـــاروا ده او ســـفاح کـــړي
حلالــــه کــــول زنــــا ده ديــــوثي ده
بـې غيرتـو کـې ده پـاتې مېراثـي ده
لـه طـلاق وروسـته د ښـځې مهـر حـق دی
دغه حق يې پـه اسـلام کـې محقـق دی

کـــه جمـــاع نـــه وي او مهـــر مقـــرر وي
نو نيم مهر يې دی حـق چـې برابـر دی
کـــه جمـــاع نـــه وي او مهـــر نـــامعلوم وي
څه ډالۍ به ورته ورکړي دا پـه زوم وي
لـه جمـاع مخکـې طـلاق کـې عـدت نـشته
د کـوم وخـت د تېرېـدلو حاجـت نـشته
❋❋❋

# د کونډې عدت

کـه مېـړه د کـومې ښـځې چېرتـه مـړ شـي
لاړ شي قبر ته په خاورو کې خړ پړ شـي
د هغـــه ښـــځه کـــه نـــه وه اميـــدواره
نو څلور مياشتې او لس ورځې يې شماره
او عــــدت د اميــــدوارې زېـــږول دي
نږدې لرې دې کې يو ډول شـمېرل دي
لنګېـــدو بانـــدې عـــدت ددې پـــوره شـــو
طهـارت بانـدې واده ورتــه کـره شـو
دا عــدت دی لـــه دې مخکـــې نکـــاح نـــشته
په عدت کې پـه نکـاح کـې فـلاح نـشته
نـه بـه څـوک پـرې مرکـه کـوي عـدت کـې
ده روا کـــه اشـاره کــوي عــدت کــې
اشـــارو او کنـــايو کـــې ويـــل خيـــر دی
ځان لپاره کومـه ښـځه سـتايل خيـر دی

لــه عــدت وروســـته نکـــاح ورتـــه روا ده
ښـــه پـــه ډاګـــه او جوتـــه بـــرملا ده

# خُلع

دويـــم ډول پرېـــښودل د ښـــځې دا دي
چې په خلعې بانـدې کېږي دا روا دي
کومــه ښـځه چـې مېـړه سـره وي تنګــه
پــاتې کېـږي نــه مېـړه سـره ترڅنګــه
روغه جوړه سـوله نـه کېږي ژونـد سخت وي
او ناشـوني اوسېدل پـه يـو بالخـت وي
ښـځه حـق لـري د خلعـې پـه اسـلام کـې
چې د خلعې طلب وکړي په ښه پام کـې
لــه مېــړه بــه خلعــه وغــواړي پــه ســوله
دا خبـره بـه شـي خلاصـه پـه دې ټولـه
هغــه مهــر بــه مېــړه تــه بېرتــه ورکــړي
په دې کار به ځان جلا ترې سراسر کړي
پــه دې ډول بــه مېــړه دا ښـځه پرېــږدي
او پـه زړه بـه ښـه د صبر تېـره کېـږدي
چـې دا مهـر هـم وانخلـي دا ځــواني ده
مروئـت دی، پـت عـزت دی، اسـاني ده
او لـه مهـره زيـات غوښـتل ورتـه ناسـم دي
او لـــه مهـــره کـــم روا او د کـــرم دي

بښځه نه ښځه کول نه پرېښودل هم
ناروا دي په دې منځ کې ځورول هم
يو تر بله احسان مه هېروئ دواړه
چې پخوا به اوسېدئ غاړه په غاړه
***

## ظهار

که څوک ښځې ته د مور غوندې ووايي
يا کوم غړی يې د مور په ډول ستايي
بلل کېږي دا ظهار په شريعت کې
دا راغلی د قرآن په يو سورت کې
مور يې نه ده دا خبره ناروا ده
که چا وکړه دا سزا يې برملا ده
له جماع مخکې غلام ازادول دي
يا د وينځې ازادي په ځای کول دي
که غلام وينځه ونه مومي نو وروره
له جماع مخکې روژې دي ورته ګوره
دا روژې نيول دوه مياشتې مسلسل دي
دا نيول پرله پسې او مکمل دي
که روژې نيولی نه شي بيا ډوډۍ ده
منځکوره ده يا اومه يا په کونډۍ ده

مسکينان بـه کـړي مـاړه شـپيته لـه کـوره
لـه دې پرتـه سـزا نـشته ورتـه نـوره
دغـه بشـځه يـې ده خپلـه جـلا نـه ده
بشـه پـه مينـه دې سـاتي څـه بـلا نـه ده
پـه ظهـار کـې تتـابع د روژو فـرض دی
که دا پرې شي بيا له سره پرې دا قرض دی
پـه بـې عـذره مـاتولو هـم پـرې کېـږي
پـه نقلـي روژې نيولـو هـم پـرې کېـږي
هـم د نـذر پـه روژو بانـدې پـرې کېـږي
په منځ منځ کې په بوزو باندې پرې کېږي
کـه روژه د رمـضان پـه مـنځ کـې راشـي
تتابع په دې پرې نه دی بيـا بـه دا شـي
مـاتول چـې کلـه فـرض وي نـو مـاتېږي
تتـابع پـه مـاتولو نـه غـوځېږي
لکـه ورځـې د اختـر دي زمـا وروره
يـا هـم ورځـې د تـشريق ورسـره گـوره
هـم پـه هېـر کـې مـاتولو نـه پـرې کېـږي
لېونتوب او پـه مـرض هـم نـه غـوځېږي
چـې روا دي مـاتول هـم نـه غـوځېږي
تتـابع پـه دغـه کـار بانـدې نـه شـلېږي

لکــه واخلــې پــه ســفر کــې مــاتول شــو
یــا د بلاربــې مــاتول او نــه نیــول شــو
یــا تــې خــوری ماشــوم ولــري وېرېــږي
تتــابع پــه دغــه ټولــو نــه پــرې کېــږي
چــې روژې لا پــوره نــه وي او جمــاع کــړي
د ظهــار والا لــه ښــځې انتفــاع کــړي
تتــابع پــه دې پــرې کېــږي او ړنګېــږي
او لــه ســره پــرې روژې بیــا لازمېــږي

***

# اِیــلاء

چــې قــسم واخلــي لــه ښــځې دا ایــلاء ده
پــه مېــړه او پــه دې ښــځې ابــتلا ده
پــه ایــلا کــې څلــور میاشــتې انتظــار دی
نور څه نشته بـس همـدومره سزاوار دی
کــه رجــوع دې وکــړه خپلــه دې ده ښــځه
که طلاقه دې کـړه نـور ورپسې مـه ځـه

***

# لِعــــان

کــه څــوک خپلــه ښځه ووینـي چـا لانــدې
او پــردی ســړی ســم ووینــي وربانــدې

ســـلايي لكـــه رنجرومـــه كـــې دننـــه

پـه دا رنگـه نـور يـې مـه كـوه پوښـتنه

لـــه غيرتـــه كـــه يـــې ووژل دا دواړه

په بل ځای يا په دې ځای غاړه په غـاړه

نـــو الله ســـره مـأخوذ گوناهگـــار نـــه دی

آخرت كـې پـه دې كـار شرمـسار نـه دی

شرط يې دا دی چې ريښتينی پرهېزگار وي

په دې كار كې نه دروغجن وي نه غدار وي

ســـعد وويـــل وهمـــه يـــې پـــه تـــوره

چې زه مور كړمه پـه دواړو بانـدې بـوره

لا بــه گـــورم گواهـــان دغـــه نـــاورين تـــه

زمـا تـوره جـوړه شـوې دې اړيـن تـه

پېغمبـــر يـــې د غيـــرت وكـــړه ســـتاينه

ننـگ غيـرت سـره همـدا ده مقتـر نـه

خـو قاضـي سـره مجـرم دی شـريعت كـې

د اسـلام د عـدالت پـه حكومـت كـې

او دا ځكـــه چـــې د ظلـــم لار شـــي بنـــده

چې ونه كنـي څـوک هـسې چاتـه كنـده

كه څوک خپله ښځه دې كـار بانـدې گـوري

چې پردی سړی يې ښځې باندې ښوري

او څلور ګواهان نه وي نو لعان دی
د قذف له حده بالکل په امان دی
بې له خپلې ښځې بیا د قذف حد دی
په چا تور مه لګوه چې دا کار بد دی
که په خپلې ښځې ووینې له پاسه
یا څه نښې قرائن وي له اساسه
نو د ښځې او سړي منځ کې لعان دی
شاهدانو او قاضي مخکې عیان دی
لعان دا دی چې سړی به راولاړ شي
په الفاظو د لعان کې به لتاړ شي
په ښه ځای لکه منبر سره جومات کې
یا حرم یا بل چې ښه وي په صفات کې
دا سړی به داسې وایي څلور ځله
په الله زه ګواهي کوم پخپله
زه رېښتینی یمه دا ده زناکاره
څلور ځل به دا خبره کړي تکراره
که حاضره وي په لاس به اشاره کړي
که غائبه وي نو نوم به یې ښکاره کړي
په پنځم ځل به دا وایي که دروغجن یم
په دې کار کې له دروغجنو کړومن یم

نــو لعنــت دې د الله وي پــه مــا بانــدې
له دې وروسته به دا ښځه شي راوړاندې
څلــور ځلــه بــه دا ښــځه داســې وايـــي
دا مېړه بـه لـه دروغجنـو څخـه سـتايي
پـــه الله زه گـــواهي کـــوم دروغجـــن دی
په مـا تـور وايـي دا هـسې مـاېيجن دی
پــه پــنځم ځلــې بــه وايــي دغــه ښــځه
چې په ما دې وي غضب نور وړاندې مه ځه
کــه مېـړه مــې لــه ريــښتينو وي صـادق وي
د الله غـضب دې مـا بانـدې لاحـق وي
دا هـر يـو چـې څلـور ځلـه ښـه پـوره کـړي
په قـانون د شـريعت يـې ښـه کـره کـړي
لــه پــنځم ځلــې نــه مخکــې ورتــه وايــه
دليلونـــه حجتونـــه ورتـــه ښـــايه
پـه خولـه کېـده ورتـه لاس او نـصيحت کـړه
چـې خبـره ښـه پـه فکـر بـصيرت کـړه
د الله غضب ډېر سخت دی که دروغجن يـې
پـه خبـرو کـې بـې ځايـه مـاېيجن يـې
اقــرار وکــړه غــضب مــه وايــه عــذاب دی
جهـنم دی انديــښنې دي اضـطراب دی

کـه الفـاظ پکـې بـدل کـړي لعـان نـه دی
که کمی زیاتی او چل کړي لعان نـه دی
پــه لعــان دواړه جــلا شــو نکــاح ماتــه
پــه ټــول عمــر روا نــه ده دا میراتــه
که سړی وروسته خبرې ځخه ستون شي
د قذف حد پرې جاري په ښه سمون شي
کـه ماشـوم لـه دغـه تـور وروسـته پيـدا شـي
نـو نـسب يـې لـه سړي ځخـه جـلا شـي
کـه منکـر شـي او جـاري وربانـدې حـد شـي
نو ماشوم بيـا د سړي شـي تـر ابـد شـي
خـو نکـاح پـه هـر صـورت کـې شـي حرامـه
لــه لعــان وروســته نکــاح ده ناتمامــه
کـه دا ښـځه مخکـې وروسـته اقـرار وکـړي
اعتــراف د نــاروا او بــد چــار وکــړي
نـو بيـا حـد بـه د زنـا پـرې جـاري کيـږي
دا خبــره بــه پــه دې ډول ختميــږي

***

## نفــقه

کومــه ښــځه چــې طلاقــه پــه رجعــي وي
نفقـه يـې پـه مېـړه بانـدې فرضـي وي

هم جامه او هم يې کور په مېړه حق دی
دغه حق يې شريعت کې محقق دی
د بائنې هم د حمل نفقه ده
دا خبره په دليل باندې ثقه ده
که مېړه چېرته حاضر وي يا غائب وي
نفقه ورباندې فرض وي مناسِب وي
خو ورکړې يې دا نه وي او وي پاتې
نفقه کور او جامې ددې ميراتې
ددې تېرو ورکول په مېړه قرض دی
دغه قرض ورباندې پاتې بېخي فرض دی
مور او پلار او د نيکونو او نياګانو
نفقه فرض ده په مونږ مسلمانانو
د بچو او د لمسو او کړوسو هم
نفقه ده د اړتيا او د تنګسو هم
د هغه ورور نفقه هم په تا فرض ده
چې بچي د کوم يو نه وي په تا قرض ده
هم ده فرض د هغې خور چې واده نه وي
ورکوي يې چې پتمن وي او درانه وي
خو فرض نه ده د بډای او د غني بيا
د نيمګور پوره کول دي د کمي بيا
د خپلوانو چې وارث او ميراث خور وي
نفقه د هغه فرض ده چې نسکور وي

چې میراث یې وي محجوب نفقه نشته
د مالدار او د محبوب نفقه نشته
چې مالدار وي نفقه وربانديې فرض ده
چې فقیر وي بیا نه فرض ده او نه قرض ده
چې له پلار پرته یې نور څه وارثان وي
دی فقیر وي او هغوی ښه بډایان وي
نفقه یې په هغوی باندې فرضیږي
د میراث په اندازه پرې لازمیږي
د مشرک او د کافر نفقه نشته
د غني او مقتدر نفقه نشته
د غلام، وینځې بیا شته که وي کافر هم
ازاد شوي ته هم شته که وي منکر هم
د څارویو نفقه هم په تا فرض ده
ښه پالنه او څارنه په تا قرض ده

***

## حضانت (پالنه او ساتنه)

د واړه او د ساده پالنه فرض ده
بې اسرې او لېوني پالنه قرض ده
مور تر ټولو مخکې وړ ده د پالنې
ددې ټولو د ساتنې پاملرنې
نفقه یې ده په پلار په مور پالنه
که مور نیا نه وي په پلار ده پاملرنه

بیـا د پـلار میـنـدې او بیـا یـې دې نیکونـه
بیا سکه خـور ده او بیـا د مـور لـور وینـه
بیـا د پـلار لـور ده او بیـا سـکه تـرور بویـه
چې د مور خـور وي سـکه هغـه ده زویـه
پـه همـدې ترتیـب د مـور ناسـکه خوینـدې
بیا د پلار خویندې سکه او بیا د مینـدې
بیـا د مـور خـالې او بیـا د پـلار خـالې دې
بیـا د پـلار عمـې دې دغـه سلـسلې دې
خـو د پـلار عمـې رامخکـې دې د مـور نـه
بیا ورېرې دې خوله خپل سکني ورور نه
پـه دې مخکـې ترتیـب وګڼـه خـورزې بیـا
پـه همـدې ترتیـب ګڼـه دا انـدازې بیـا
بیـــا د تـــره لورګـــانې وګڼـــه همداســـې
د عمـو لـوڼې پـه دې ترتیـب برلاسـې
بیـا د پـلار د تـره لـور ګـانې د عمـو بیـا
پـــه همـــدې ترتیـــب ګڼـــه د عـصبو بیـــا
لـومړی ورونـه بیـا ورېرونـه بیـا دې ترونـه
بیـا د تـره زامـن همـدا دې ترتیبونـه
چـــې پالنـــه د جلـــی وي نـــو محـــرم بیـــا
عـصبه نـه ضـروري دی پـه اتـم بیـا
خو دا شـرط وروسـته لـه اوو کلـو ضـرور دی
چې دا نـه منـي ناپوهـه دی تـرور دی

کـه دا نـه وي بيـا ذوی الارحـام يـې گـوره
د مور پلار په مخکني ترتيب دي وروره
پــه پالنــه کــې دا شــرط او اعتبــار دی
چې پـالونکی ښـه ثقـه او پرهېزگـار دی
د کــــافر او د فاســـق پالنــــه نــــشته
د نــا اهـــل او منــافق پالنــه نـــشته
د پــردي منکوحـــه نـــه کـــوي پالنــــه
غـلام وينځـه بـه هـم نـه کـوي ساتنه
کـه هيڅـوک نـه وي پالنـه بـه حـاکم کـړي
خو حاکم په شريعت بـه ښـه مـسلم کـړي
دا مرتـــد حاکمـــان مـــه گڼـــه پـــالونکي
دا زمونږ د پـت عـزت نـه دي سـاتونکي
چــې ماشــوم وي د طلاقــې اوه کلــن شــي
په ښو بدو باندې پوه د دين وطـن شـي
نــو اختيــار بــه ورتــه ورکــول شــي وروره
چې لـه پـلاره سره اوسـې کـه لـه مـوره
کـه هـر يـو سره اوسـېږي دا يـې حـق دی
کـه بـدلېږي رابـدلېږي دا يـې حـق دی
يـــو د بـــل لـــه ملاقاتـــه منـــع نـــه دی
د اخـــلاص لـــه التفاتـــه منـــع نـــه دی
نفقـــــه او تربيـــــه ده کـــــه تعلـــــيم دی
دا پـه پـلار پـه پاملرنـه او تـصميم دی

د طلاقـې لـور چـې پېغلـه شـي د پـلار ده
پــه پالنــه تربيــې او ښــه كــردار ده
ودول يــې دي پــه پــلار خرڅــول نــه دي
هــم پــه بــدو وركــول بــدلول نــه دي
پــه پالنــه كــې كــه پــلار متــساهِل وي
يا عـاجز وي يـا مړه وي دی غافـل وي
او د مــور پالنــه ښــه پــه بــصيرت وي
د مور حق دی چې په پام او حفاظت وي
خــو سـاده او لېـونی بـه تـل د مـور وي
په پالنه كې دا حـق بـه ښـه سمـسور وي
نفقــه پــه دغــه ټولــو كــې پــه پــلار ده
ښـه پـه پـام او پـه عـزت او پـه وقـار ده
كه پلار نه وي بيا نږدې په ميراث خور ده
دا لـه وسـه سـره سـمه لـه خپـل كـور ده

***

# فسخــه

چـې نكـاح كـې چـا عيبونـه وي پـټ كـړي
يـا مُـزمِن يـې مرضـونه وي پـټ كـړي
يـا پـټ كـړی يـې حـسب نـسب وي چانـه
دا ټګـــــي ده نـــاروا ده مــــسلمانه
چې ښكاره شي بيا يې خوښه چې ساتي يـې
يا ناخوښـه شـي نكـاح فـسخه كـوي يـې

دغــه فــسخه د نکــاح د دواړو حــق دی
په اسلام کې دا ښه پوخ او محقق دی
پـه دې عیـب د نکـاح فـسخه بیـا روا شـي
دا د فـسخې حـق بیـا دلتـه بـرملا شـي
خو که پټ نه وي دا عیـب ورتـه ښکاره وي
بیــا دا فــسخه وي ناســمه نــاکره وي
***

# ولایت

پــه نکــاح کــې د ولــي رضــا ضــرور ده
بــې ولــي نکــاح زنــا او د تــرور ده
ولـي وایـي سرپرسـت او نـږدې خپـل تـه
چې نږدې وي ضرورت نشته بیـا بـل تـه
دا پنځــه شــرطونه بولــه ولایــت کــې
اسـلام، عقـل، ازادي ده حریـت کـې
بــل بلــوغ دی او ولــي بــه نارینــه وي
ولـي نـه دی د نکـاح چـې ښځینه وي
لـومړی بولـه سرپرسـت چـې سـکه پـلار وي
بیا زامن دي چې نیکان په سمه لار وي
بیـا د مـور او پـلار نـه ورونـه اعیـاني دي
بیـا لـه پـلاره دغـه ورونـه علاتـي دي
بیـا لــه مــوره ورونــه بویــه اخیــافي دي
بیــا زامــن دي د زامنــو انــصافي دي

بيـا زامــن يـــې دي د لوڼــو بيـا ورېرونــه
بيا د خويندو زامن بويـه بيـا دي ترونـه
بيـا يــې بولـه ماماګـان بيـا تـره زامـن دي
بيا زامن دي د ماما چـې ښـه پـتمن دي
ولايـت د هغـه حـق دی چــې لـومړی وي
ښـه اولـیٰ وي مـسلمان عاقـل سـړی وي

***

# جنايات (تېري)

پـه انـسان بانـدې تېـری لـوی جنايـت دی
پـــه ناحقـــه دغـــه ظلـــم معـــصيت دی
پـــه نـــاحق د چـــا وژل هـــم نـــاروا دي
پـه نـاحق د چـا وهـل هـم نـاروا دي
جنايـت کـې درې حقـوق دي پـه تـا بانـدې
د الله، ولــي، مقتــول ژاړې کــه خانــدې
د الله حــق پــه تــوبې بــښل کېــدی شــي
شريعت ته پـه تسليم لـه منځـه تلـی شي
د ولــي پــه عفــوې، ســولې يــا قــصاص دی
په رضا او په خوښۍ او پـه اخـلاص دی
د مقتــول حــق بــه الله ورتــه معــاف کــړي
د مقتول زړه کې پيدا بـه انعطـاف کـړي
جنايــت دی پــه درې ډولــه يــو عمــد دی
دا د کـــسته دی نـــاوړه او ډېـــر بـــد دی

بـل چــې ورتــه وي عمــد تــه دا دویــم دی
بل خطا دی دا په سهوه دی درېیم دی
که پرې پوه وي چې دا بې گونا انسان دی
او حرام یې په مونږ پت او مال او ځان دی
او په داسې شي اخته یې کړي چې مري پرې
په غالب گومان تر مړینې پورې ځي پرې
دا عمـــد دی دا وژل لـــه کـــسته کېـــږي
په هر چل که وي هر یو پـرې حـسابېږي
لکـه کنـډه یـې لـه غـره یـا لـه گړنـگ کـړي
یا یې ولي په ټوپک ورسره جنـگ کـړي
یــا یـــې وولـــي پـــه غـــشي یــا پـــه تـــوره
تمانچې یا په چاکو یې کـړي مـور بـوره
یا ورچـوخ پـه کـوم نازکـه ځـای تېـره کـړي
یـا لغتــه پــه نــازک لکــه د خــره کــړي
یــا یـــې ووهـــي مـــوټر بانـــدې بـــې درېغـــه
یـــا ورننباســـي ســـتنه پکـــې نېغـــه
یـا پـه تېـږه او پـه گټـه پـرې گـوزار کـړي
یا ورگوټ ورته څه زهر کوم غـدار کـړي
یـا یـې واچـوي مـوټر پړانـگ او زمـري تـه
یا لېـوه، مـار او لـړم خطرنـاک سـپي تـه
یـا یـې ټېـل وهـي او بـو کنـدې یـا اور تـه
یـا یـې وتـړي د یـخ یـا گرمـۍ زور تـه

یــا نــاروغ بنــدي تــه نــه کــړي درملنــه
یــا د وږي تــږي نــه کــوي پالنــه
یــا یــې وژنــي پــه بــارودو او بمونــو
یــا یــې تېـل وهــي لــه پاســه د بـامونو
یا یې وژنـي پـه زنـدۍ سا یـې کـړي بنـده
یا یې خلاص کړي په جادو کوډو له ژونده
یا یې وراندې کړي کوم داسې ځای او کار ته
چې ورتلل هلتـه ورتلـل وي انتحـار تـه
یـا پـرې وکـړي څـه د دروغـو شـهادت هـم
چــې هغــه وي د وژلــو جنایــت هــم
لــه وژلــو وروســته دا شــي راڅرګنــده
چې د دروغو ګـواهي وه دا بـې خونـده
لنــډه دا ده چــې پــه هــر ډول وژل وي
او د کسته پـه لـوی لاس دغـه کـول وي
دا عمـد کـې راځـي هـره چـې حیلـه وي
که ښکاره وي که کوم چل که څه پلمه وي
بــل عمــد تــه ورتــه شِــبه عمــد بویــه
د عمــد او د خطـا پــه مــنځ کـې زویـه
دا لـه کـسته پـه یـو داسـې شـي وهـل دي
چې پرې نه مري ارادې کې خوږول دي
خو پرې ومري دې عمل کـې ګوناهګـار دی
پــه ســزا ددې عمــل ښــه ســزاوار دی

لکـه ســوک څپېـــړه یــا وي نـــرۍ لختــه
او اجـل وربانـدې راشـي د کـم بختـه
بـل خطـا دی اراده یــې د څــه ښـکار وي
یـا د بـل مباح ويـشتل یـې ابتکـار وي
خـو خطـا شـي بـې گونـا وربانـدې مـړ شـي
او ويشتونکی په دې کار خپه او پړ شـي
اوس د درې واړو ســـزاوې داســـې گـــوره
ښه یې زده کړه او پوښتنه مه کـړه نـوره
پـه عمـد کـې دی قـصاص پـرې وژل کیـږي
که په یو کـې ډېـر کـسان هـم شـریکیږي
کـه شـریک شـي پـه وژلـو د یـو کـس کـې
وژل کیږي به دا ټول د یو پـه ټـس کـې
هـــم پـــه غـــړو او ټپونـــو کـــې قـــصاص دی
هـــم وهلـــو او ډبونـــو کـــې قـــصاص دی
کـــه ولـــي د مقتـــول وبـــښي قاتـــل بیـــا
د دیـــت دي ورکـــول پـــه مقابـــل بیـــا
په اسلام کـې پـلار پـه زوی نـه وژل کیـږي
مـسلمان هـم پـه کـافر نـه قـصاصیږي
که په زوی کې پلار او بل څوک شریکان شي
یـا کـافر کـې ملـه کـافر او مـسلمان شـي

نــو دا پــلار او مــسلمان نــه وژل کېـــږي
خــو دا بــل او دا کــافر بــه قــصاصېږي
کــه امیــر او حــاکم امــر وکــړي چاتــه
پـــه ناحقـــه د وژلـــو نـــاروا تـــه
بیـــا منـــل ددغـــه امـــر نـــاروا دي
نــاروا کــې د طاعــت کــول خطــا دي
پــه منلــو یــې مــامور هــم قــصاصېږي
او امیــر او دا حــاکم هــم وژل کېـــږي
پـه بچـو مـور او پـلار هـم نـه قـصاصېږي
خو اولاد په مور او پلار بیا وژل کېږي
پـه مرتـد او پـه حربـي کـې قـصاص نـشته
چې واده وي نو زاني کې قـصاص نـشته
پـه ښاېسته او پـه بـدرنګ کې تـوپیر نـشته
پـه پاچـا او پـه ملنـګ کې تـوپیر نـشته
نارینـــه او ښـــځینه کـــې تـــوپیر نـــشته
هـم تـوپیر یـې د صـغیر او کبیـر نـشته
د قاتـــل د میـــراث برخـــه ســـاقطېږي
د مقتـول میـراث قاتـل څخـه ختمېـږي
پــه قــصاص کــې بــه ولــي بــالغ عاقــل وي
هم حاضر به خپل قصاص ته د قاتـل وي

که ولي يا کوم ولي پکې صغير وي
يا غائب يا لېونی په خپل تقدير وي
بيا قاتل تر هغه وخته بندي کېږي
چې صغير د بلوغ وخت پورې رسېږي
او غائب هم راپه کور شي او حاضر شي
لېونی هم راپه سد شي ښه قادر شي
مستحق شي يا د عفوې يا قصاص شي
هر يو کار په بصيرت او په اخلاص شي
که قاتل ته کوم ولي وکړي بښنه
ساقطېږي پرې قصاص مه کړه پوښتنه
بيا ديت دی چې معلوم دی شريعت کې
د اسلام په حکومت او عدالت کې
په قصاص کې زياتی بريد نه ناروا دی
په هر څه کې سر په سر حلال روا دی
حامله به تر هغې نه قصاصېږي
ترڅو خېټې کې ماشوم يې وزېږېږي
او ورېه هم ورته ورکړي دا مجرمه
په ماشوم خو ظلم مه کوه سالمه
که ماشوم ته د تي مور نه پيدا کېږي
بيا يې مور تر دوه کلو نه قصاصېږي

د جــاني د جنايــت پــه څېــر قــصاص دی
لږ او ډېر نه دی په عدل په اخـلاص دی
چــې جــاني وي جنايــت څرنگــه کــړی
همغـــــسې قــــصاصېږي نومـــــوړی
کــه پــه تــوره تمــانچې کــه پــه ټوپـک وي
که په تيږه پـه چـاقو کـه پـه کوتـک وي
کــه قــصاص پــه همغــه ډول محــال وي
بيــا بــه بــل ډول د عــدل اعتــدال وي
د مقتــول ولــي تــه دوه ډولــه اختيــار دی
يا قصاص دی يا ديـت پـه روغـه لار دی
کــه ديــت نــه پــه زيــات ســوله وي روا ده
خــو پــه ښــځو جنکــو بيــا نــاروا ده
دا د ښـــځو ورکـــول بـــدو کـــې نـــشته
ددې بــد عمــل کــول بــدو کــې نــشته
بـــې ديتـــه بـــښل هـــم پکـــې روا دي
کم او زيات اخيـستل هـم پکـې روا دي
قــصاص ســر پــه ســر پــه عــدل برابــر دی
بې لـه ظلـم او زيـاتي پـه يـو نظـر دی
نفس په نفس دی پښه په پښې ده لاس په لاس دی
سترگه سترگه، پوزه پـوزه دا اسـاس دی

غوږ په غوږ دی غابښ په غابښ شونډه په شونډې
گوتـه گـوتې بانـدې ده مه وهـه منـډې
ښی په ښي دی کيڼ په کيڼ غړي پـه غړي
پـام د عـدل کـار کـې نـه شـئ ربغـړي
چـې ممکـن وي بنـد پـه بنـد بـه قـصاصيږي
د هـډوکي مـنځ بيـا نـه برابرېـږي
تېـری نـشته پـه قـصاص کـې مـساوات دی
په شوټي باندې روغ نه دی التفات دی
چې قصاص په کوم کې نه وي بيا ديـت دی
يـا بـښنه تېرېدنـه او ښـه نيـت دی
تـر هـډوکي چـې کـوم ټـپ وي رسـېدلی
پرې قصاص دی په دليل کـې دا راغلـی
په کوم ټپ کې چې د عـدل کـار محـال وي
او راجـح پکـې د ظلـم احتمـال وي
قـصاص نـشته بيـا ديـت دی يـا بـښنه
د اسـلام عـدل تـه وکـړه پاملرنـه
پـه ټپونـو کـې يـو ډول هاشِـمه ده
ورسـره مُنَقلـه او مامومـه ده
بـل پـه دې کـې جائِفـه پـه نـوم يـادېږي
دغه ټـول بـه پـه ديـت بانـدې بـدلېږي

چــې هــډوکي مــاتوي نــو هاشِــمه ده
چې هم مات شي هم بښکاره مُنَقله ده
چې پردې تـه د مغزو کـوم ټـپ رسېږي
مأمومــه يــې دغــه ډول بلــل کېــږي
چـــې دننـــه رســـېدلی وي بـــدن تـــه
جائِفــه ده ملتفــت شــه دغــه فــن تــه
پــه دې ټولــو کــې ديــت دی راروان دی
وروسته وګوره بيـان يـې ښـه عيـان دی
پــه زخمــو کــې اعتبــار دی مــساحت تــه
اعتبــار نــشته د غوښــې کثافــت تــه
کـه شـريک شـي ډېـر د غـړي پـه تلـف کـې
په هر يو قصاص ديت دی دې هدف کې
که يو لاس پرې ، په شريکه ډېر کسان کړي
د هر يو لاس به ور پرې ښه عادلان کړي
کـه لـه ټــپ ټپونـو ومـري نـو قـصاص دی
د اسلام حکم جاري په عام او خاص دی
د قــصاص د ټــپ ګــزک نــه قــصاص نــشته
چې تېری نه وي ددې څه خواص نشته
ټپــي غــړي نــه قــصاص کــې انتظــار دی
چې ښه روغ شي بيا جاري د قصاص کار دی

کـــه د زخـــم او د غـــړي جنايـــت وي
انتظــار تــر رغېــدو بيــا درايــت وي
که ښه نه شي او ترې ومري هـم قـصاص دی
که تېر ښه شي او ونه مري هم قصاص دی
***

# ديت

کـوم يـو مـال چـې پـه بـدل د جنايـت دی
شريعت کې هغه مـال يـاد پـه ديـت دی
مــسلمان دی کــه ذمــي کــه مــستأمن دی
يــا تــړون والا کــافر دی مهــادِن دی
خپل خپل ځای کې د هر يو ديت معلوم دی
محـارِب لپـاره هـر يـو شـی معـدوم دی
د عمــد ديــت جــاني بانــدې حــساب دی
د تېـري پـه انـدازه پـه هـر کتـاب دی
د خطـــا شـــبه عمـــد پـــه عاقلـــه دی
د جـاني پـه نـږدې خپلـو حوالـه دی
لکـه خپـل وي د نـسب د پـلار لـه خوانـه
يــا زامــن لمــسي د دواړو مقتــضا نــه
د ازاد مــسلمان ســل اوښــان ديــت دی
يـا يـې زر مثقالـه سـره زر عـدالت دی

يـــا يـــې دولـــس زره وګڼـــه درهمـــه
علم زده کړه او تـرې مـه کېنـه بـې غمـه
يا يې دوه سـوه غواګـانې دي پـه شـمار کـې
يا يې دوه زره اوزې مېږې دې کـار کـې
پـــه عمـــد شـــبه عمـــد کـــې مغلـــظ دی
د مقتول د ولي برخه او خپـل حـظ دی
دا پنځـه ويـشت يـو کلنـې جـونګۍ بويـه
او پنځـه ويـشت دوه کلنـۍ زمـا زويـه
او پنځـه ويـشت درې کلنـې دي حِقـې دي
او پنځه ويشت د څلور کلـو جـذعې دي
پـه دې نـورو کـې تغلـيظ نـشته اسـان دي
يـو تـر بلـه مـساوي او پـه يـو شـان دي
پـه خطـا کـې لـه دې هـر يـوه نـه شـل دي
او شل يو کلن جونکي نو ټول يې سل دي
لـــه غواګـــانو يـــو کلـــن او دوه کلـــن دي
او لــه مېــږو اوزو دوه او درې کلــن دي
نــيم لــه يــو او نــيم لــه بـل پکــې روادي
خو عيبجن بـه پکـې نـه وي روغ أدا دي
د ازاد کتـــــابي نـــــيم ديـــــت دی وروره
نه ترې زيات دی او نه کم دی ورته ګوره

کــه ذمــي کــه معاهــد کــه مــستأمِن دی
خو جاني يې نيم ديت باندې ضامن دی
او دا نــور چــې کــافران وي او ذميــان وي
معاهـــد او مـــستأمن وي مـــشرکان وي
د هـــر يـــو ديـــت اتـــه ســـوه درهمـــه
خــو حربـي کـافران وژنـه ښـه بـې غمـه
او د ښــځو يــې څلــور ســوه دي نــيم دی
شـيطان ورته شـيطان کـافر رجـيم دی
کـافران او مـشرکان چـې ذميـان نـه وي
معاهـــد او مـــستأمن پـــه بيـــان نـــه وي
بيا حربيان دي مال او ځان يې غنيمـت دی
ځان يې وژنه مال يې اخله درايـت دی
مرتـــدان يـــې بيـــا لـــه مخـــې وژنـــه وروره
چې دې وس ورباندې برشومه يې گـوره
هـــم ټپونـــه د ديـــت پـــه تناســـب دي
ورتـــه گـــوره د نـــسبت پـــه تناســـب دي
لــه دربيمــې د ديــت چــې ديــت کــم وي
نـــر او ښـــځه برابـــر پـــه دې کـــړم وي
چــې خُنثــیٰ کلــه مــشکل وي نــر ښــځی وي
په يو وخت کې وي هم ښځه هم سړی وي

نـو دیـت یـې نـیم د ښـځې نـیم د نـر دی
مجموعـه د نـر درې رُبعـې برابـر دی
هـم د وینځـې مریـي دیـت قیمـت دی
چې هر څو یې وي قیمت هغه دیت دی
پـه دې دواړو کـې خطـا او عمـد یـو دی
تـوپیر نـه لـري د دواړو دابـد یـو دی
د مـور خېټـې کـې بچـي پـه زیـانولو
مکلـف دی د دیـت پـه ورکولـو
دا جنـین کـه ښـځینه کـه نارینـه وي
پـه دیـت کـې دواړه یـو مـساویانه وي
د هـر یـو دیـت یـا وینځـه یـا غـلام دی
دغـه حکـم شـریعت کـې د اسـلام دی
خـو کـه ولـوېږي لـه شـپږو میاشـتو پـورې
بیا پـوره دیـت دی مـه وایـه بیـا نـورې
کوم یو غړی چې یـو یـو دی پـه انـسان کـې
د هغـه دیـت پـوره دی پـه عیـان کـې
لکـه پـوزه شـوه یـا ژبـه شـوه یـا خوټـه
صـراحت نـه پرتـه نـه کېـږي دا پټـه
پـه دې ټولـو کـې دیـت د یـو انـسان دی
برابـر پکـې ماشـوم بـوډا او ځـوان دی

او کوم غړي چې دوه دوه وي په بدن کې
لکه سترګې یا غوږونه په هر تن کې
یا تیونه او یا شونډې یا لاسونه
او یا پښې یا مرغیړي شو دوه بمونه
په دې ټولو کې په غبرګو کې دیت دی
د پوره انسان دیت په بصیرت دی
او په یو کې نیم دیت د یو انسان دی
په همدې ډول دا حکم راروان دی
هم پوره دیت د ښځې فرج کې ګوره
په یوې شونډې یې نیم دیت دی وروره
تناسب د ښځینه د ښځینه دی
او حساب د نارینه د نارینه دی
چې څلور وي په څلورو بیا دیت دی
او په یو یې څلورمه په حجت دی
لکه زېزمو څلور واړو کې دیت دی
دا د یو انسان پوره په روایت دی
په یوې کې د دیت ده څلورمه
د پنځه ویشتو اوښانو یې منمه
په یوې ګوتې د پښې وي که د لاس وي
لس اوښان دي دا به ټول په ښه احساس وي

پـه لـس گوتـو بیـا پـوره دیـت حـساب دی
دغـه حکـم مـا لیـدلی پـه کتـاب دی
درې بندونه هرې گـوتې کـې پـه شـمېر دي
لس اوښان په دې تقسیم په دغه څېر دي
پـه دیـت کـې د هـر بنـد برخـې عیـان دي
د یواوښ درېیمه نورهم درې اوښان دي
د غاښـونو د هـر غـاښ پنځـه اوښـان دي
ټول غاښونه د واړه غټ په یـو شـان دي
د حواسـو پـه هـر حِـس پـوره دیـت دی
دا راغلـی پـه دلیـل او پـه حجـت دی
لکـه حـس د ذائقـې یـا د لیـدو شـو
یـا هـم حـس د بویولـو اورېـدو شـو
د هـر حـس پـه ړنگېـدو پـوره دیـت دی
پـه دلیـل د روایـت او درایـت دی
د جِماع قـوت کـه ړنـگ شي هم دیـت دی
د پـوره انـسان دیـت پـه بـصیرت دی
کـه جمـاع د چـا شـي ړنگـه او لیـدل هـم
بویـول او ذائقـه او اورېـدل هـم
نـو پـه دې کـې بیـا پنځـه دي دیتونـه
هـر دیـت د یـو انـسان دی لـه سـمونه

گونگولـــو بانـــدې هـــم پـــوره ديـــت دی
هم ديـت پـه لېونتـوب پـه درايـت دی
هـــم پـــوره ديـــت ګنـــه پـــه شـــلولو
د ميتيـــازو دی پـــوره پـــه بنديـــدلو
کـــه عـــاجز شـــي د يـــو تـــوري لـــه ويلـــو
نـــو ديـــت بـــه شـــي د تـــورو پـــه وېشلو
خپلـــه برخـــه د ديـــت ده د هـــر تـــوري
د هجـــا د تـــورو برخـــو تـــه بـــه ګـــوري
د وېـــښتانو د ســـر هـــم پـــوره ديـــت دی
هم د وروځـو ښـه پـوره پـه روايـت دی
ددې ټولـــو ښـــو هـــم ديـــت پـــوره دی
او د ږيـرې هـم پـوره ديـت کـره دی
د يـوې وروځـې پـوره هـم نـيم ديـت دی
پـه کنـډو د هـر تقـسيم پـه درايـت دی
د چـــوکړ د يـــوې ســـترګې هـــم پـــوره دی
دا ديـــت د يـــو انـــسان دی او کـــره دی
د چـوکړ د روغـې سـترګې پـه قـصاص کـې
يوه روغه سترګه وځي پـه اخـلاص کـې
او ديـــت د يـــوې ســـترګې ورســـره دی
دا حـساب د عـدالت پـه تـول کـره دی

د چـوكړ پـه روغـې سـترګې نظـر درومـي
پـه يـوې ډيـوې رڼـا سراسـر درومـي
دا يـــــوه ځكـــــه د دوه و برابــــــر ده
چــې دا نــه وي دنيــا ټولــه مــستتر ده
كــه چــوكړ د روغ ړنــده كــړه يــوه ســترګه
نــو قــصاص نــشته ديــت دی ای بزرګــه
كه چوكړ د روغ ړنـدې كـړې دواړه سـترګې
نو قـصاص او نـيم ديـت دی ای بزرګـې
دا تـــوپير دی د عمـــد خطـــا كـــې نـــشته
په خطا كې بيا تـوپير پـه چا كـې نـشته
د مـــخ ســـر ټپونـــه لـــس ډولـــه دي وروره
ښه يې زده كړه درته شمېرمه يـې ګـوره
لومړی ټـپ يـې حارِصـه ده چـې ټپـي شـي
ټپ يې لږ وي وينې نه شي خوزخمي شي
او دويـــم يـــې بازِلـــه پـــه نـــوم يـــادېږي
دامِيـــه او دامِعـــه هـــم بلـــل كېـــږي
دا هغـه دی چـې لـږ وينـې شـي ډېـر نـه وي
له پوستكي نه هم غوښې تـه تېـر نـه وي
او درېـيم يـې باضِـعه دی چـې لـږ ډېـر وي
له پوستكي نه هم غوښـې تـه ورتېـر وي

ځلـــــورم متلاحِمــــــه غائِــــصه ده
باضــعې نــه لــږه زياتــه انــدازه ده
او پــنځم يــې ســمحاق بــولي داوي تللــی
تــر هــډوکي خــو لا نــه وي رســېدلی
پــه دې ټولــو کــې د ســولې فيــصله ده
دا قاضــي تــه او جرګــې تــه حوالــه ده
خـــو د زيـــد او د علـــي فيـــصله دا ده
د احمد هـم پـه همـدې بانـدې سلا ده
بــازلې کــې يــو اوښ وګڼــه ديــت دی
باضعې کې دوه اوښـان ښـه درايـت دی
متلاحمـــې کـــې درې اوښـــان ګڼـــل دي
پـه سـمحاق کـې د څلـورو ورکـول دي
حارصـــې کـــې د ټپـــي خوشـــحالول دي
څه نا څه په دغـه پړه کې ورکـول دي
چـــې هـــډوکي کـــړي ښـــکاره موضِـحه ده
دا پنځــه اوښـــان ديـــت مکافحـــه ده
کــه لــه ســر نــه يــې ترمخــه ســرايت وي
بيا به دوه چنده دا لس اوښان ديـت وي
هاشمې کـې لـس اوښـان دي ښـه يـې واوره
جنايت چې کړې اوس مه اوباسه خـاوره

ورپسې منقله چې بلل کېږي
په پنځلسو اوښانو به خلاصېږي
ماومې کې د پوره دیت دریمه
ورکول دي دې کې نشته دی دویمه
هم د دري دېرشو اوښانو ورکول دي
د یو اوښ دریمه هم ورزیاتول دي
جائفې کې هم دریمه د دیت ده
ماومې غوندې پوره په درایت ده
ددې ټولو تفسیر مخکې دی راغلی
په تېر بحث کې ما هر یو دی لیکلی
که ګولۍ تېرو بېر ووځي بدن نه
بیا یې دوه جائفې وګڼه دې فن نه
که پښتۍ ګروه شي جوړه بې توپیره
پکې یو اوښ ورکول دي له تدبیره
خو دا هله چې ټپ نه وي په ظاهر کې
د ټپ حکم مخکې تېر شو مفسِر کې
ملاکې هم پوره دیت دی بې نقصانه
هر یو زده کړه چې فقیه شې مسلمانه
نامعلوم چې د کوم ټپ ماتې دیت دی
په هغو کې ښه د عدل حکومت دی

دا ټپي به روغ غلام یا وینځه فرض کړي
او قیمت به یې معلوم په اټکل قرض کړي
بیا به پس له رغېدو د ټپ اټکل کړي
چې قیمت څومره کمېږي دا به حل کړي
چې قیمت شو څومره کم هغه دیت دی
دا د عدل او حکمت ښه درایت دی

❋❋❋

# عاقله

عاقله د نسب خپل دي چې ملاتړ وي
او اړتیا کې د ملاتړ کولو وړ وي
د خطا دیت هم حق په عاقله دی
د جنین دیت پرې هم په فیصله دی
په فقیر د عاقله کې ونډه نشته
هم په ښځه فیصله کې ونډه نشته
هم دا برخه نه په وینځې او غلام شته
نه بدل د دیانت باندې دا عام شته
عاقله چې وي بې وسه له اداء نه
بیت المال به دغه ورکړي له بقاء نه
عاقله که د چا نه وي بیت المال بیا
ورکوي دغه دیت په دغه حال بیا

عاقلــه بانــدې څــه نــشته پــه ديــت کــې
د دليــل او د حجــت پــه رعايــت کــې

***

# کفــاره

پـــه خطـــا، شِـــبه عمـــد کـــې کفـــاره ده
آزادي د يـــو غـــلام وينځـــې پـــوره ده
کــه دا نــه وي بيــا روژې نيــول دي وروره
مسلــسلې دي دوه مياشــتې نــشته نــوره
کومه ښځه چې ماشوم کړي ځـان نـه لانـدې
او ويده وي پوهه نه شي پـه دې بانـدې
يــا پــه تــي ورتــه سـابنده پــه ويــدو کــړي
ځان اخته په دغه کار پـه اندېښنو کـړي
نــه ديــت شــته پــه دې کــار نــه کفــاره شــته
نــه نيمگــړې څــه سزا او نــه پــوره شــته
دغـــه ښـــځه هـــم غمجنـــه خـــوارکۍ ده
هـــم زهيـــره اندېـــښمنه گلمکـــۍ ده
پــرې لــه پاســه کفــاره لــه کومــه راغلــه
بـــې دليلـــه فيـــصله لـــه کومـــه راغلـــه
پــه حــديث کــې لــه ويــده دی قلــم پورتــه
مکلــف نــه دی لاس مــه اچــوه تــور تــه

***

# قسامت

قـــسامت ډېـــر قـــسمونه اخيـــستل دي
پـه دعـوې د قتـل دا پـوره كـول دي
كه كوم مړى په كوم ځاى كې مونـدل كېږي
او قاتـل يـې پـه ښـكاره نـه معلـومېږي
څېرمـه پـروت وي كـوم يـو كلـي قبيلـې تـه
خلك راشي كـوم قاضـي تـه فيـصلې تـه
غالـب ظـن پـه دغـه كلـي كـې پـه چـا وي
او ممكن وي چې اختـه پـه دې بـلا وي
او دعــوې لپــاره هــم كــوم يــو لامــل وي
لكــه پــاتې دښــمني لــړل تپــل وي
يـا څـه خلـك لـه مقتـول خـواره واره شـي
د كوم يو مخ په دعوې باندې سپېره شي
گواهــان نــه وي پــه نــښو څــه دعــوه وي
پـه غالـب گومـان د خلكـو دا پـوره وي
او دعـــوه پـــه مكلـــف وي او امكـــان وي
ددې قتـل او د قتـل وصـف عيـان وي
متفــق پــه دې دعــوې كــې وارثــان وي
او دعـوه پـه معـين پـه ښـه بيـان وي
پنځــوس كــسه بـه د مـړه وارثـان راشـي
پــه كولــو د قـــسم بــه هويــدا شـــي

دغــه ته‌ــول بـــه مکلـــف او نارينـــه وي
نــه ماشــوم نــه لېــونی نــه ښـځينه وي
دا قـــسم چـــې پـــه شـــرطونو برابـــر وي
ته‌ول يې واخلي دې قسم کې بيا اثـر وي
پـــه دې لار د وارثـــانو ثابـــت حـــق شـــي
يا قصاص او يـا ديـت پـرې محقـق شـي
بـې دليلـه کـه دعـوه پـه کـوم يـو کـس وي
بيـــا قـــسم د همغـــه لپـــاره بـــس وي
وارثــان کــه قــسم نــه کــړي قــسامت کــې
بيا به غواړي له قاتل نـه دې صـفت کـې
پنځـوس کـسه بـه هغـوی نـه قـسم وکـړي
پـه شـرطونو برابـر بـه يـې سـم وکـړي
نــه مــو کــړی نــه خبــر يــو لــه دې کــاره
ته‌ول بري شول له دې قتـل پـه دې لاره
که قسم نه کـړي جـوړېږي پـه دوی حـق بيـا
دغــه حــق د وارثــانو دی مطلــق بيـــا
کـــه نـــه خپلـــه قـــسم اخيـــست وارثـــانو
نـــه پـــه نـــورو و بـــاور د مـــدعيانو
بيا ديـت پـه بيـت المـال ددې مقتـول دی
دغــه رنگــه روايــاتو کــې منقــول دی
که په حج يا پـه بـل ځـای کـې ازدحـام وي
وژل شوی څوک په دې کې په ناپام وي

او قاتــل يــا قــاتلين يــې معلــوم نــه وي
څــه دعــوه د وارثــانو پــه كــوم نــه وي
نو ديت ددې مقتول په بيت المال دی
د اســلام حكــم د عــدل اعتــدال دی

***

# حـــدود

پــه اســلام كــې د جرمونــو مخنيــوی دی
د مظلــوم او د پرېــوتي لاســنيوی دی
د ادب لپـــاره ډېـ دی پـــه اســـلام كـــې
هر يو كار ښه مهذب دی په اسلام كې
دې لپـــاره چـــې وګـــړي پرهېزګـــار شـــي
لـــه جرمونـــو او ګونـــاو راايـــسار شـــي
ګونـــــاهونو تـــــه ســـــزاوې مقـــــرر دي
څـه حـدود دي او پـه عـدل برابـر دي
كــه اســلام پــوره جــاري او شــريعت شــي
عــدالت بانــدې ولاړ يــو خلافــت شــي
د اســـلام اقتـــصادي نظـــام شـــي پلـــی
سياســـي اجتمـــاعي نظـــام شـــي پلـــی
نه پاسپورټ وي نـه ويـزه وي نـه بنـديز وي
ازادي هم په ختيز هـم پـه لوېـديز وي
د هغــه وي چـــې چـــا شـــاړه كـــړه ودانـــه
دا غلـې بـه شـي هـم ډېـرې هـم ارزانـه

دغـه تېـل زېرمـې شـريکې شـي د ځمکـې
دا کـرېږې وړې ټـولنې بـه شـي ورکـې
پـه وړيـا توګـه حقـوق ورکـول کېـږي
زکاتونـه پـه بـې وزلـو وېـشل کېـږي
بيـت المـال پـه ټولـو يـو رنګـه ډيـوه وي
د اميـر او د مـزدور برخـه يـوه وي
نـه د ښـځو خرڅـول نـه بـدلول وي
نـه رشـوت نـه درغلـي لـړل تېـل وي
حکومـت د امنيـت صـحت وي ټـول وي
هر يو کار پـه اهليـت تميـز او تـول وي
فيـصلې د عـدالت مـو هـم وړيـا وي
روغتونونـه د صحت مـو هـم وړيـا وي
پوهنتـون مـو هـم وړيـا او د هـر چـا وي
هر سمون مـو هـم وړيـا او د هـر چـا وي
بيا به ولـې څـوک بـې ځايـه دغـه غـلا کړي
يا بـه ولـې جنـګ جـدل قتـل زنـا کـړي
بيـا وار نـه راځـي د حـد او د حـدودو
بيا به ژوند وي د هـر چـا نـه د محـدودو
کـه پـوره اسـلام نافـذ نـه شـي عمـل کـې
نـو يـواځې حـدود نـشته مکمـل کـې
اوس تفـصيل تـه د حـدودو غـوږ ښـه کېـږده
بـې دليلـه او عبـث خبـرې پرېـږده

دي حــدود پــه هغــه چـا چــې مکلــف وي
هم بالغ وي ویښ عاقل وي په هدف وي

پـه تحـریم بانـدې هـم پـوه وي ملتـزم وي
مسلمان وي که ذمـي وي چـې ظـالم وي

په جومات کې به هـم حـد نـه جـاري کېـږي
شفاعت بـه هـم پـه حـد کـې نـه قبلېـږي

هــم پــه حــد کــې پــه ولاړه وهــل کېــږي
غلیظه عـورت سـر مـخ بـه ساتل کېـږي

ښـــځینه وهـــل پـــه ناســـته بانـــدې بویـــه
پټــول یــې د ټــول ځــان دي زمـا زویـه

نــور بیـا هـر غـړي تـه خپلـه برخـه ورکـړه
چې ټپي نه شي په پام ورته نظر کړه

کـــــوتکی بــــه منځنــــی وي د وهلـــــو
د کوتــک او لختــې مــنځ کــې د ګنلــو

کوتکی بـه نـه ډېـر سـخت او نـه خنـډن وي
د ادب ډب تــه بــه جــوړ د مـاښیجن وي

د مجــرم نـــه غځـــول او نـــه تـــړل شـــته
نـــه جامونـــه د مجـــرم بربنـــډول شـــته

د کمیس پرتوګ ایستل یـې هـم حـرام دي
په ګینګړو سوړو وهل یې هم حـرام دي

د کميس لاندې بنـين چـې کـوم نـازک دی
هغه مه باسه گنجي پرک دی سپک دی[1]

دا زياتي جـامې تـرې اوباسـه کـه کـوټ دی
که واسکټ، کورتی، چپن پوستين که بوټ دی

پــه هــډوکو وهــل نــشته پــه مــا گرانــه
په غوښـن ځـای يـې وهـل دي مـسلمانه

دا وهل بـه نـه ډېـر سـخت وي نـه ډېـر نـرم
چې پوستکی ټپي نه شـي پـه دې شـرم

چــې دا ودردېــږي نــورو تــه عبــرت شــي
له تېري نه بـچ د خلکـو پـت عـزت شـي

د وهــونکي بايــد لاس دومــره لــوړ نــه شــي
چې تخرگ يې د ليـدو کتـو وړ نـه شـي

پـه يـو ځـای بـه هـم وهـل نـه تکرارېـږي
پـه هـډوکي نـه، پـه غوښـو وهـل کېـږي

زړه لــه پاســه يــې وهــل هــم نــاروا دي
پــه وهلــو کــې وژل هــم نــاروا دي

❋❋❋

---

[1] گنجي پرک: د پښتنو ځينې قبيلې لکه دا ورکزومموزي ، نازک بنين ته وايي .

# د زنا حد

نـاواده چــې کـوم هلـک او یـا جلـۍ وي

او زنـا وکـړي بــې پتــه وي لـولۍ وي

ســل درې ددغـــه هـــر یـــوه وهـــل دي

او یو کال له خپلې سیمې نـه شړل دي

پــه زنـا کــې اعتــراف یــا ګواهــان دي

ګواهان یـې بیـا څلـور دي عـادلان دي

اعتـراف یــې هــم څلـور ځلـې پــوره دی

په یو ځای وي که په ډېرو وي کـره دی

ګـــواهۍ کـــې بـــه دا وایـــي مـــونږ لیـــدلي

لانـدې بانـدې مـو دا دواړه دي نیـولي

لکـــه تللـــی ســـلایي وي پــــه رنجړومـــه

مـــونږ همدغـــسې لیـــدلي دي منظومـــه

❋❋❋

# د قذف حد

کــه پــه پــاکو د زنـا لګـوي تـور څـوک

او رانه وړي ګواهان په دې څلور څـوک

دا قــذف دی پــه قــذف کــې بیـا دُرې دي

ګواهان یې یو که دوه دي او که درې دي

پــه قــذف کــې د اتيــا درو وهــل دي

پـه دې تور باندې همدا پـوره کـول دي

پـه فاسـق فـاجر پـه تـور کـې قـذف نـشته

چې تور، تور باندې کړې پورې هدف نشته

پــه غــلام وينځــې د نيمــو درو حــد دی

د ازاد پــــه نيمــــايي دا محــــدد دی

کــه ازاد وي څــه او څــه لا ازاد نــه وي

خپل حساب دی پکې ظلم فـساد نـه وي

پــــه شــــرابو د اتيــــا درو وهــــل دي

چې نـشه راوړي شـرابو کـې گڼـل دي

لږ کـه ډېـر وي چـې نـشه راوړي شـراب دي

که نږه وي که مخلـوط وي د عـذاب دي

کــه چــا وکــړې د شــرابو کــانگې مــانگې

يا تـرې تللې د شـرابو د بـوی وړانگـې

يــا نــشه وي پــه ښــکاره او پــه څرگنــده

حد جاري دی په دې درې واړو له پنده

پــه اقــرار او اعتــراف حــد نافــذېږي

عـادلان دوه گواهـان هـم منـل کېـږي

که په حد کې زياتی وکړي او پـرې مـړ شـي

نو وهونکی په دې کار باندې بيا پړ شـي

بيا ديت ورباندې حق دی چې يې ورکړي
او لـه ځانـه د گونـا لـرې خطـر کـړي
کـه زيـاتی نـه وي او ومـري نـو اجـل دی
نـه نيـولی او نـه پـړ پـه دې عمـل دی

***

# د واده شوي حد

چــې واده وي نارينــه کــه ښــځينه وي
او زنـــا وکـــړي ثابتـــه بيِّنـــه وي
او څلـور وي گواهـان لکـه چـې تېـر شـول
هسې نه چې ما ويلـي تـا نـه هېـر شـول
يــا پخپلــه اعتــراف وکــړي پــه جــرم
له خپل ځان سره انصاف وکړي په جـرم
نـو بيـا رجـم دی پـه تيـږو يـې ويـشتل دي
د ډبــرو پــه ويــشتلو يــې وژل دي
د زنـا حـد تـه حاضـر بـه هـم امـام شـي
يـا نائـب او مؤمنـان بـه حاضـر عـام شـي
نــه پــه رجــم کــې د کنــدو جــوړول شــته
نــه د ښـځې نـر تـړل يـا ښـخول شـته
لواطــت کـــې د فاعـــل مفعـــول وژل دي
کـه واده وي او کـه نـه وي دا کـول دي

گواهـــان چـــې وي او وتـــښتي لـــه حـــده

بيا يې مه پرېږده وهـه يـې لـه دې بـده

اعتـــراف كـــه وي او نـــه وي گواهـــان بيـــا

او منكر شـي او يـا وتـښتي پـه ځـان بيـا

پـسې مـه ځـه بيـا يـې پرېـږده آخـرت تـه

د الله د لـــويې ورځــــې عـــدالت تـــه

شـــاهدي كـــه د څلـــورو يـــو شـــان نـــه وي

او لــه دروغــو شــهادت پــه امــان نــه وي

بيـا پـه ټولـو د قـذف حـد جـاري كيـږي

پـــه قـــوي شـــبهاتو حـــد نـــه نافـــذيږي

چـــې شـــبهې وي كلـــه ســـمې او معقـــولې

بهـــانې او حيلـــې نـــه وي، وي مقبـــولې

بيـــا بـــه حـــد نـــه نافـــذيږي پـــه شـــبهاتو

چـــې پـــوره وي برابـــرې پـــه صـــفاتو

كـــه گـــونگی اشـــاره وكـــړي پـــه قـــذف كـــې

حـــسابيږي چـــې جوتـــه وي هـــدف كـــې

دا قـذف كـه پـه نـاروغ يـا نـږدې خپـل وي

په خصي وي په بوډۍ او يا پـه بـل وي

چې ثبوت نه وي دې ټولو كې بيـا حـد دی

دغـــه تـــور مـــسلمانانو كـــې ډېـــر بـــد دی

د مقــذوف پــه عفــوې حــد د قــذف نــشته
دُرې نــشته او څپېــړه پــه کــف نــشته
او دا ځکـه چــې دا حـد د مقـذوف حـق دی
او مقذوف يـې پـه بښنې هـم أحـق دی
کــه زانــي، لــوطي تړنــی ووايـــي چاتــه
يـا کـوني، لـولی، کچنـی ووايـي چاتـه
دا لفظونـــه ټـــول قـــذف کـــې حـــسابېږي
شاهدان چې نه وي حـد پـرې نافـذېږي
د چـــا ژبـــه چـــې وتلـــې وي لـــه واکـــه
او خبــرې يــې کاواکــه وي بــې باکــه
او کنځلــې کــوي ډېـرې جنـګ جـدل کـې
او تقـویٰ نـه لـري قـول او عمـل کـې
د هغـــه لـــه خـــولې راوځـــي ګـــډې وډې
او اکثـــره د قـــذف وي رډې بـــډې
پـــه چـــا تـــور لګـــول لويـــه ګونـــا بويـــه
بـــې دليلـــه تهمـــت مـــه لګـــوه زويـــه
د هــر چــا هــرې خبــرې پــسې مــه ځــه
بـې تـوپيره نـږدې لـرې پـسې مـه ځـه
خپل عزت، پت او عفت که په چا ګران وي
نو د بـل د پـت عـزت هـم قـدردان وي

چې پخپله څوک بې پت او بې عزت وي
بې پروا د بل په پت او په عفت وي

## د غلا حد

د غلا حد د غله او غلې لاس غوڅول دي
د مړوند په بند کې ښی لاس پرې کول دي
په احتياط او اسانۍ يې پرې کول دي
بيا يې تېلو يا غوړو باندې داغل دي
دا داغل پخوا د وينې بندول وو
په همدې ترتيب د ځان او لاس ژغورل وو
که اسانه اغېزمنه بله لار وي
د دوا او درملنې اِبتکار وي
بيا ضرور نه دي داغل او سوځول يې
ډېر اړين دي درملنه او ګنډل يې
که طبيب لاس ته تخدير او نشه ورکړي
او په دې ترتيب ترې لرې ډېر خطر کړي
بې خطره او اسان عمليات کړي
ښه دارو او ښه درمل ورته ورزيات کړي
دا ضرور کول په کار دي په دې کار کې
اساني کول اړين دي په دې لار کې
لاس به راکاږي چې غوڅ يې روغ په بند کړي
دغه کار به نورو خلکو ته يو پند کړي

دا پوستکی بـه راکـاږي د مـټ خـوا تـه
چـې اسـان شـي د ګنـډلو مقتـضا تـه
که دويـم ځلـې غـلا وکـړي پـرې کـول دي
بيا د کيڼې پښې خو پونده پرېښودل دي
او درېـيم ځلـې د کـيڼ لاس غوڅـول دي
څلورم ځلې د ښۍ پښې پرې کـول دي
پښو کې پوندې پرېښودل دي په دې حد کې
نور قدم يې غوڅول دي په دې حد کې
د غلا حـد کـې دغـه شـپږ شـرطونه يـاد کـړه
مخنيـوی د هـر ظـالم او د فـساد کـړه
لومړی دا چې مال په پټه باندې غـلا کـړي
دغه مـال وي محتـرم چـې دا بـلا کـړي
دويـم شـرط د مـال نـصاب تـه رسـېدل دي
او درېيم د ساتل شوي مال پټ وړل دي
څلورمـــه د دينـــار دغـــه نـــصاب دی
يو مثقال سره زر دينار دغـه حـساب دی
يـــا د ســـپينو زرو درې درهمـــه کېـــږي
دا نـــصاب پـــه دغـــه ډول حـــسابېږي
سـاتل شـوی مـال پـه حـرز کـې بلـل کېـږي
پـاملرنې لانـدې حـرز کـې ګڼـل کېـږي
لکـه واخلـې کـور کـوټې يـا پـه دوکـان کـې
يا صندوق کې څوکيدار لاندې مکان کې

یا ګېر ځای کې یا شپانه سره ورشو کې
یا جبونو یا پنډغالو د شپنو کې
ځلورم شرط یې ثبوت یا په اقرار دی
یا دلیل په لاس کې مال ددې غدار دی
یا هم دوه دي ګواهان خو عادلان دي
شهادت باندې کره پوره عیان دي
او پنځم یې د قوي شبهې عدم دی
په ګومان باندې د حد عمل ناسم دی
بیا شپږم یې د مالک مطالبه ده
چې طلب نه وي په دې کې بیا شبهه ده
د حربي کافر د مال غلا غنیمت دی
دغه مال مونږ ته حلال په هر صورت دی
په ښکاره وړلو د مال د غلا حد نشته
په غاصب هم دغه حد محدد نشته
او دا ځکه مخنیوی د دوی اسان دی
مال ترې واخله او تعزیر په دوی عیان دی
مخنیوی د غلا ستونزمن دی ځکه حد دی
د غلا کار دی ډېر په پټه او ډېر بد دی
چې منکر له عاریته شي نو غلا ده
په دې کار د غلا سزا هم برملا ده
مخزومي ښځې به اخیستل ځیزونه
لوښي موخي څه و کارې او پسولونه[1]

[1] وكارې: د ځینو پښتنو په لهجه کې سامان یا لوښو ته ویل کېږي.

بیــا بـــه شـــوله پـــرې منکـــره ماڼیجنـــه
روږدې شوې په دې کار وه دا دروغجنه
لاس یې پرې شـو پـه دې کـار د درغلگـرې
دا د غلـــو او درغلگـــرو وه ملگـــرې
مـــور او پـــلار دي یـــا نیاگـــانې او نیکونـــه
یـــا اولاد وي یـــا وي ښـــځې او مړونـــه
یـو تـر بلـه د غـلا حـد پـه دوی کـې نـشته
نفقه ده کـوم یـو بـد پـه دوی کـې نـشته
له دې پرتـه نـور پـردي او خپلـوان یـو دي
نر او ښځې بوډاگـان او ځوانـان یـو دي
نــه د لاس پــرې کــول شــته پــه ماشــومانو
نـــه پـــه وړو نـــه پـــه ســـروپو لیونیـــانو
چـــې پـــه ونـــو پـــه پټـــو میـــوې غلـــې وي
او اړتیـــاوې او د ولـــږې سلـــسلې وي
حـد پـرې نـشته او خـوړل یـې ښـه روا دي
ذخیـره ځـان سـره وړل یـې نـاروا دي
مجاهد یې د اړتیا پـه وخـت کـې وړی شـي
هم یې دلته هم سنگر کې یې خوړی شي
چې جیبونه وهـي لاس یـې بایـد پـرې شـي
که دا نه وي یو به دوه او دوه به درې شي
***

## د ساحر حد

**د کـــوډګر او د ســـاحر حـــد قتلـــول دي**

**په اسلام کې ددې جرم حد وژل دي**

**دا ساحر او کوډګر مه پرېږدئ فساد دی**

**په اسلام کې هر فساد سره جهاد دی**

***

## لار وهونکي او تښتوونکي

**په وسلې او زور چې څوک وي لار وهونکي**

**یـــا د ښـــځو ماشـــومانو تـــښتوونکي**

**یـــا پیـــسو لپـــاره خلـــک تـــښتوي دوی**

**پـه وسـلو بانـدې وګـړي وېـروي دوی**

**که وژلی یې وي څوک مال یې وي وړی**

**وژل کېـــږي راځړېـــږي نومـــوړی**

**کــه مـال نــه وي او وژلــی یــې انـسان وي**

**ځـړول نـشته وژل یـې ښـه عیـان وي**

**کــه اخیـستی یــې وي مـال او وژل نــه وي**

**غوڅولو د لاس پښې کې بـه بـل نـه وي**

**دا ښـی لاس او کیڼـه پښه بـه یـې غـوڅېږي**

**ددې بـــد عمـــل ســـزا بـــه وررســـېږي**

**کـــه یـــواځې وېـــرول وي نـــه وژل وي**

**نه د مال وړل وي او نه څـه تـښتول وي**

بیـا شـړل دي لـه وطنـه چـې اصـلاح شـي
چـې ملګـري د تـوبې او د فـلاح شـي
کـه ملګـري وي او ځينـې يـې وژل کـړي
او څوک مال واخلي او ځينې تښتول کړي
نو دا ټـول بـه وژل کېږي پـه دې حـد کـې
هم به دار باندې ځړېږي په دې حد کې
هـم بـه غـسل جنـازه وربانـدې کېـږي
هـديرې د مـسلمان کـې بـه ښـخېږي
دغـه ټـول محـاربين دي پـه اسـلام کـې
په دې ځمکې مفسدين دي په اسلام کې
که څوک دوی کې توبه ګار او پرهېز ګار شي
له نيولـو مخکـې دوی پـه سـمه لار شـي
د الله حقـوق شـړل وژل پـرې نـشته
هـم د لاس پـښې غوڅـول ځـړول نـشته
د بنده حقوق قصاص وربانديې حق دی
هم ترې مال اخيستل حق او محقق دی
پـه بـښنې لـه دې کـاره هـم خلاصـېږي
پـه تـوبې او پـه بـښنې بـښل کېـږي
د خپل مال او ځان دفاع دربانديې فـرض ده
پـه ممکنـې او اسـانه دغـه قـرض ده
که د ځان پت مال دفاع کې دې څوک مړ کړ
قصاص نشته ځان دې خلاص هغه دې پړ کړ

دې دفاع کې که ته ومرې نو شهید يې

لـه عذابـه او گـو نـا څخـه بعيـد يـې

هـم دفـاع لـه مـسلمانه پـه تـا فـرض ده

هم له دين کور او له ځانه په تا فرض ده

کـه د چـا کـور تـه ورگـوري څـوک دننـه

په کوم وت سوړې او چاود کې بې له څه نه

او دا سـترگه يـې ړنـده کـړي پـه ويـشتلو

يـا د ډکـي يـا کـوم شـي پـه چوخولـو

نـو دا سـترگه يـې ده هـدر بـې قـصاصه

بې ديته هيڅ پـه هيڅـه بـې اخلاصـه

جرم نـه دی ناځـاپي ليـدل خـلاص ور کـې

گونـا نـشته د پـاک زړي دې نظـر کـې

***

# تعـزيـر

چـې سـزا معلومـه نـه وي شـريعت کـې

د کـوم جـرم او گونـا وي ديانـت کـې

د هغـه سـزا قاضـي تـه حوالـه ده

د قاضـي پـه فيـصلې يـې فيـصله ده

دا سـزا تعزيـر نـومېږي پـه اسـلام کـې

ټول شرطونه يې ښه ونيسه په پام کې

د گونـا چـې نـه کـوم حـد نـه کفـاره وي

د هغـه سـزا تعزيـر بانـدې پـوره وي

دا تادیــــب دی پـــه رټنـــه پـــه وهلـــو
پـــه خبـــرو یـــا پـــه بنـــد یـــا پـــه شـــړلو
لـــس دُرو نـــه زیـــاتې نـــشته پـــه تعزیـــر کـــې
لـــه یـــوې تـــر لـــسو ونیـــسه تقـــدیر کـــې
پـــه تعزیـــر کـــې نـــه د ږیـــرې کلـــول شـــته
نه کوم ټپ او نه د غړي پرې کـول شـته
هـــم روا تعزیـــر بالمـــال دی پـــه اســـلام کـــې
خو هر کار کې اعتدال دی په اسلام کې

***

## د باغیانو او خارجیانو توپیر

که څه خلـک د حـاکم خـلاف پـاڅون کـړي
په دلیل یې د بـدلون او د سـمون کـړي
هم ځواکمن وي هم ملاتـړ کـې وي غـښتلي
پـه سـائغ تاویـل وي دوی را پاڅېـدلي
او حـــاکم وي مـــسلمان نـــه منـــافق وي
نه مرتـد وي نـه فـاجر وي نـه فاسـق وي
دا باغیان دي دوی ته مخکې نـصیحت دی
پـــه جرگـــو او پـــه خبـــرو قناعـــت دی
کـــه حـــاکم کـــې څـــه تقـــصیر ظلـــم شـــبهه وي
بایـد لـرې یـې کـړي سـوله بـه کـره وي
کـــه دا نـــه وي قناعـــت بـــه ورتـــه ورکـــړي
پـــه دلیـــل بـــه دا خبـــرې رابهـــر کـــړي

لــه دې مخکــې نــاروا ور ســره جنــګ دی
جنګ غمونه دي دردونه دي ګړنګ دی
کـــه پـــه ســـولې دا خبـــره شـــوه تمامـــه
نـــو بيـــا نـــه ښـــايي نـــاوړه او ناړامـــه
کـــه کولـــه يـــې لـــه حـــق ســـرغړونه
بيا نو جنګ دی نوره مه کوه پوښتنه
رعيـت بـه بيـا حـاکم سـره ملاتـړ کـړي
چې باغيان د حق منلو ته ښه اړ کړي
پـــه باغيـــانو نـــه بمبـــار کـــول روا دي
نـه سـېځل او نـه يـې عـام وژل روا دي
د بچـــو ښـــځو وژل يـــې نـــاروا دي
تـــښتېدلي پـــسې تلـــل يـــې نـــاروا دي
چـې تـسليم شـي بيـا نيـول يـې نـاروا دي
د ټپيـــانو قتلـــول يـــې نـــاروا دي
نـــه يـــې مـــال چاتـــه روا پـــه غنيمـــت دی
نه کافر دی خو دا کار يې فضيحت دی
خـــوارج هغـــه بـــې لارې خارجيـــان دي
چې وتلـي پـه عـادل ښـه مـسلمان دي
چـې حـاکم ښـه مـسلمان وي او عـادل وي
يـو امـت يـو خلافـت وي، معتـدل وي
نـــه مرتـــد وي نـــه ملګـــری د کـــافر وي
نه وضعي قانون لري او نه ساحر وي

اداره یـــې وي غـــښتلې پرهېزګـــار وي
شـریعت یـې نافـذ کـړی پـه اصـرار وي
نــه بـــې وســه نــه معیــوب نــه لېــونی وي
ښـه کـره پـوره هرڅـه کـې منځنـی وي
او ددې عــادل خــلاف کـــې څـــه وګـــړي
شـــي راپورتـــه خـــوارج دي نومـــوړي
بیا د دوی خلاف هم جنګ په مونږه فرض دی
په خپل دین او امت ننګ په مونږه قرض دی
اوســـني چـــې حاکمـــان دي مرتـــدان دي
قوانین یې دي وضعي دوی کـافران دي
کــه فرضــاً مــسلمانان شـــي او هــم ډېـر وي
دولتونـه یـې بېـل بېـل او تېـر و بېـر وي
نو د دوی خلاف پاڅون هم فـرض عـین دی
دوی وژل په دوی شبخون هم فرض عین دی
ترڅـو یـو شـي خلافـت او یـو امـت شـي
سل په سـلو کـې نافـذ هـم شـریعت شـي
دغه تنګ پنـګ سیاسـي بریدونـه ړنـګ شـي
امنیت شي عـدالت غیـرت او ننـګ شـي
دا بـې شـمېره اوسـني چـې حاکمـان دي
دا لـه څېرمـه مرتـدان او طاغوتـان دي

چې د دوی خلاف جنګېږي توریالي دي
دا پتمن دي مېړني او ننګیالي دي
نه باغیان نه خوارج دي غیرتیان دي
دا په دین مین نړه مسلمانان دي

***

## د مرتدانو احکام

مرتد هغه دی چې ستون شي له اسلامه
او د کفر مرتکب شي دا بدنامه
قبول کړی یې اسلام وي بیا کافر شي
دا بد مرغه کبرجن متنفر شي
په ملنډو، په خبره که په کړۀ وي
که په شک په عقیدې وي که په زړه وي
که څه شرک وکړي الله سره په ذات کې
په نومونو عبادت یا په صفات کې
یا انکار وکړي له رب یا یې صفت نه
چې ثابت وي په اجماع یا عبادت نه
یا بچی یا ښځه وګڼي الله ته
یا کنځل وکړي الله، رسول الله ته
د الله له کوم کتابه انکار وکړي
پېغمبر یا له حسابه انکار وکړي

يـا منكـر شـي لـه تقـدير يـا لـه قيامتـه
يـا منكـر شـي لـه دوزخ او لـه جنتـه
پربشـتو بيـا ژونـد بعثـت څخـه منكـر شـي
يـا لـه خـتم نبـوت څخـه منكـر شـي
پـس لـه خـتم الانبيـا والمرسـلين نـه
محمـد نـه رحمـة للعـالمين نـه
څـوک دعـوه د نبـوت وكـړي كاواكـه
يا تصديق ددې دروغجن وكړي بې باكه
د اسـلام لـه څـه احكـامو نـه منكـر شـي
لـه حلالـو يـا حرامـو نـه منكـر شـي
پـه كـوم حكـم د اسـلام وهـي ملنـډې
پـه آيـة د پـاک كـلام وهـي ملنـډې
لـه اسـلامه پرتـه بـل ديـن تـه حـق وايـي
باطل دين او قانون ښـه ګڼـي او سـتايي
يـا كـافر تـه جاسوسـي كـوي جاسـوس وي
يـا كـافر سـره ملګـرى وي دووس وي
يـا قـانون جـوړ كـړي خـلاف لـه شـريعته
يـا نافـذ كـړي بـل قـانون دغـه بـې پتـه
يـا پـوليس وي د وضـعي قـانون حـامي وي
د وضعي قـانون ملګـرى وي پـوځي وي

يــا شـــريک وي پـــه نظـــام د طاغوتـــانو
مـــامورانو نـــه تـــر پورتـــه وزيرانـــو

د وضـعي قـانون قاضـي وي يـا وکيـل وي
يا لاسپوڅی د ښکېلاک وي يا عميل وي

يـــا خـــلاف د مجاهـــد او د جهـــاد وي
مخـــالف هـــم د امـــت د اتحـــاد وي

يـا وضـعي قـانون تـه غـاړه ږدي پـه خوښـه
فيـــصله وروړي دا هـــم ده يـــوه نـــښه

يـا څـه شـک کـوي پـه کفـر د کـافر کـې
د وضـعي قـانون طـاغوت متکبـر کـې

يـــا کنځـــل کـــوي اصـــحابو د نبـــي تـــه
هـم نـسبت کـوي د کفـر صـحابي تـه

يـــا علـــي ګڼـــي اِلٰـــه مؤلهـــه وي
يـــا علـــي ګڼـــي نبـــي مؤنبـــه وي

يـا جبريـل ګڼـي خطـا پـه رسـالت کـې
پـه راوړلـو کـې د وحـې او بعثـت کـې

يـا کـوم حـد وګڼـي ظلـم پـه اسـلام کـې
کفـر وګڼـي افـضل پـه کـوم مقـام کـې

يـــا نقـــصان او کمـــی وګڼـــي قـــرآن کـــې
يا تحريف او ترميم وګڼي دې شان کې

یــا دا وایــي چــې قــرآن مــنم بــې شــکه

خــو حــدیثو نــه منکـر وي ښـه پـه کلکـه

یـا باطـل تاویـل ګنـي پـه دې قـرآن کـې

چې اعمال ساقطوي د صـوفي شـان کـې

شـریعت او طریقـت مـنځ کـې تـوپیر کـړي

د اسلام احکام ساقط له کوم یو پیر کړي

دا هـــر ډول اِرتـــداد دی لـــه اســـلامه

ســـتنېدل او اِبتعـــاد دی لـــه اســـلامه

د توحیــد او شــرک څېړنــه ده مــا کــښلې

پــه کتــاب کــې د توحیــد ده مــا لیکلــې

هلتـــه وګـــوره تفـــصیل ددغـــه دواړو

چې ښه پـوه شـې پـه ډولونـو ددې واړو

مرتــد وبلــه اســلام تــه چــې راســتون شــي

که راستون شي مال او ځان به یې مصئون شي

کــه تــر درې ورځــو توبــه وباســي ښــه ده

دا خبره له جنګ درې ورځـې ګوښـه ده

که راستون نه شي تر درې بیـا یـې وژل دي

مرتد مه پرېږده پـه تـوره یـې وهـل دي

ځینـې درې ورځـې هـم نـه ورکـوي وروره

چې مرتد شي وایي هیڅ مه ورتـه ګـوره

خـوکـه دوه ځلـې مرتـد شـي توبـه نـشته
بيـا وژل دي لــه دې بلــه رتبــه نــشته
د زنـديق توبـه هـم نـشته پـه اسـلام کـې
دا نفـاق او عنـاد دواړه لـري پـام کـې
لــه مرتــد ســره نکــاح نــشته اســلام کــې
لـه مرتـد سـره فـلاح نـشته اسـلام کـې
لــه مرتــد ســره نــه ســوله نــه تــړون شــته
له مرتد سـره نـه مينـه نـه ژونـدون شـته
لــه اصــلي کــافر نــه مخکــې مرتــدان دي
دوی وژل دي او بيا وروسته کافران دي
د مرتــد مــال غنيمــت دی مجاهــد تــه
د جهــاد د عبــادت بنــکلي عابــد تــه
مرتــدان چــې دا زمــونږ د زمــانې دي
او مجهول په خپل ټبـر او خپلخـانې دي
دا ملګـــري د طـــاغوت او طاغوتـــانو
چـې پنـا وي د خپـل کـور لـه انـسانانو
د دوی ښـــځې او بچـــي مـــسلمانان دي
که خبـر نـه وي بـې شـکه معـذوران دي
کــافران دي کــه خبــر وي او راضــي وي
د هغــوی د خپلــولۍ متقاضــي وي

***

# حلال او حرام خواړه

په خوړو څښو کې حلال او څه حرام دي
ټول معلوم په شریعت کې د اسلام دي
حرام بېل دي بیان شوي نور حلال دي
د حلالو خوړل هم په اعتدال دي
نه په بخل نه اسراف دي منځلاري ده
د ګټلو لار حلاله او خواري ده
خواړه دوه ډوله دي يو يې زرغوني دي
ددې ځمکې دا غلې مېوې داني دي
سابه ګان او ترکاری دي په اقسامو
بل يې غوښې دي د ژويو خاصو عامو
په دې ټولو کې پیاوړې قاعدې دي
چې ورلاندې دا ټول لرې او نږدې دي
قاعده په نباتاتو کې دا زده کړه
ښه يې یاده کړه او زوته يې پوره کړه
چې نجس نه وي مسکر او مفتر نه وي
ضرر نه لري انسان ته مضر نه وي
هغه ټول روا حلال دي بې له شکه
حلال خوره او له حرامو مه کړه څکه
دا نجس مسکر مفتر واړه حرام دي
چې ضرر لري مضر واړه حرام دي

نجــس هغــه چــې پلیــت وي او نــاولي

ناپاکــان د شــیطانانو پــسې تللــي

لکـه غـول میتیـازې واخلـې سـوټې پچـې

یا خرېشنه وي یـا مرداري لمـدې وچـې

یــا هــم وینــه راوتلــې لــه حیوانــه

یـا وراسـته پلیـت بدبویـه پـه مـا ګرانـه

دا نجــس عندالــصحابه ټــول حــرام دي

پاک حلال دي په بریدونو او په پام دي

مــسکر هغــه د نــشې دي ټــول ځیزونــه

چې نشه راوړي او رنګ یې کړل کورونه

هېرویین پوډر او چـرس دي کـه شـراب دي

که اپین چلم نسوار دي ټول خراب دي

دغــه ټــول حــرام حــرام دي نــاروا دي

د مــلا کــه د امــي کــه د هــر چــا دي

چې نـشه یـې ډېـر راوړي لږ یـې حـرام دي

وچ لامده په دې کې یو ډول او عام دي

چې سستي بـې هوښـي راوړي نـو مفتِـر دي

نــاروا دي لکــه عــام چــې مخــدِر دي

جراحـــــي عملیـــــاتو کــــــې روا دي

نــور هــر ډول تغــذیې کــې نــاروا دي

مـضِر هغـه چـې ضـرر وي پکـې زیـان وي

یــا وژونکــي کړوونکــي د انــسان وي

لکــه زهــر شــو قاتــل يــا شــنډوونکي
د انــسان شــو يــا د عقــل نړوونکــي
يـا بـدن تـه تـرې کـوم بـل ضـرر رسـېږي
لکه تبې يا کوم مـرض تـرې پيـدا کېـږي
دويم غوښـې دي درې ډولـه يـو مرغـان دي
بـل د وچـې حېوانـات او بـل کبـان دي
قاعـــــده د حيوانــــــاتو او مرغـــــانو
دغـــه زده کـــړئ ای ملگـــرو مؤمنـــانو
چــې پليــت نــه وي نــاولي نجــس نــه وي
او خــوړلي يــې نــاولي پــه نــس نــه وي
او تحـريم يـې هـم راغلـی پـه نـص نـه وي
او له عامو څخـه خـاص او اخـص نـه وي
حېوانــــاتو کــــې ذونــــاب داړورنــــه وي
څيروونکــی او ښــکاري ځنــاور نــه وي
ټول حلال دي چې حـلال پـه بـسم الله وي
او الله اکبـــــر نـــــوم پـــــرې د الله وي
خـر کچـر دواړه پـه نـص بانـدې حـرام دي
داړور، واړه پـه نـص بانـدې حـرام دي
رببــاعي پـــسې ښلـــور داړې انيـــاب دي
لــه دې نــورو راوتلــي دغــه نــاب دي
لکـه سـپی، خنزيـر، لېـوه، پيـشو، زمـری شـو
پړانگ، نولی، کوړ او گيدړ او سورلنډی شو

یا شوه یېږه یا بګوه یا شیژګی شو
سیمساره پیل یا بیزو یا نیمچګی شو
دغه ټول دي ناروا دا ټول حرام دي
پاک او ساک سوچه کارونه د اسلام دي
له دې پرته حېوانات نور ټول روا دي
حشرات او خځنده ټول ناروا دي
لکه مار، لړم، مچی، بامبور غونډل شو
ټول حرام دي د ضرر که د اجل شو
چرمخکی شوه یا کربوړی ګونګټان شو
یا پټ سترګي شو یا مږې موږکان شو
چرچري مېږي ژورې او یا ورږې
یا کټملې شوې منګوړې او یا سپږې
یا شو ماشي یا چینجي او یا مچان شو
یا شوې زنزې پیشوګی یا پتنګان شو
سلايي پرپرکي نور حشرات شو
یا غوباړي شو یا کوني مضرات شو
د کاتی ملخان پاک حلال روا دي
دا واړه ملخان مه خوره ناروا دي
د انسان غوښه حرامه ناروا ده
د حلال حیوان حلاله او روا ده
قاعده ده په مرغانوکې دا وروره
چې مخلب لري حرام دی ورته ګوره

مخلب پنجې دي چې نيسي پرې ښيزونه
ښيروونکي وي او خوري پرې خوراکونه
نور مرغان خوري يا په پنجو خوري مردارې
د کړو نوکو حرام دي دا به ښارې
لکه واخلې ټپوسان يا کجيران شو
يا بارۍ شوې يا باخې شوې يا بازان شو
يا چې خوري دغه مردارې لوی کارغان شو
يا گونگی شو يا شاهين شو يا طوطيان شو
يا شينکوسی شوپرک شو يا مارخور شو
يا بادوړی او يا بل کوم مردارخور شو
دغه ټول دي ناروا او نور حلال دي
هم دي تاته هم د خپل او انډيوال دي
ناروا له حيوانا تو جلاله ده
گنده خور غول خور همدا دي فيصله ده
دا غول خور او گنده خور چې کوم حيوان وي
غول خواره گنده خواره چې کوم چرگان وي
د هغو غوښې هگۍ دي هم حرامې
د هغو شېدې سپرلۍ دي هم حرامې
دا په درې ورځو ترلو حلالېږي
پاک خوراک په ورکولو دا پاکېږي
اعتبار يې په اکثر خوراک حساب دی
چې اکثر خوراک يې پاک وي پاک حساب دی

چــې اکثــر يــې وي گنــده بيــا جلالــه ده
جلالـــه ټولـــه ناپاکـــه سلـــسله ده
ځينـــې ځينـــې جلالــه وي اکثــر نــه وي
جلاله چې نه وي بيا څه خطر نه وي
ټــول چرگــان گنــده گټــل هــم نــاروا دي
چې گنده وي بيا خـوړل هـم نـاروا دي
ښې حلالې دي اوزې دي او که مېږې
که اوښان دي که غواگـانې او کـه مېـښې
دا اســونه هــم بــې شــکه پــاک حــلال دي
شکانه سوې هم حلال او بې جنجال دي
وحشي خره چې زېبرا بولي هم حلال دي
هم حلال غرڅه، هوسۍ بې له وبال دي
کــه گـــوزه کـــه کـــوتې کـــه خـــادمۍ ده
وحــشي غــوا کــه ذرافــه وړه ټــاغۍ ده
کــه ښــارو ده کـــه چينچټـــه کـــه کـــوتره
کــه طــاوس دی، گونگيــشتکه برابــره
کــه سيـــسۍ ده او کـــه زرکـــه کـــه خـــراړه
مرغاوۍ کـه کورکـوړۍ حـلال دي واړه
کـــه ســـيارکې دي کـــه چتـــي مـــړزان دي
که تيتر دي پيلمرغان دي که چرگان دي
يـا کـه زاڼــې اوښ مرغـان شـتر مرغـان دي
ټټيوټ، تنزري، ډينگ يا نور چوغان دي

دغـه ټـول او داسـې نـور حـلال حـلال دي
چې ذوناب ذو مخلب نه وي بې جنجال دي
شمــشتی ده هــم حلالــه پاکــه ســاکه
چې حلاله دې کړه خوره يې بې له باکـه
کــوني کبـر او چنگــاښ چــې بلـل کېـږي
او يا هـم پمبـه چـولاو پـه نـوم يـادېږي
پاک حـلال دی بـې لـه شـکه حـرام نـه دی
خو د ځینـو یـې خوړلـو تـه پـام نـه دی
دويـــم غوښـــې د اوبـــو دي د ســـيندونو
د ويـــالو او د ډنـــډونو او بحرونـــو
ټول حلال دي پـه اوبـو کـې چـې اوسېږي
پــه کبــانو او پــه پــاکو حــسابېږي
پــه حــديثو کــې چینډخــه نــاروا ده
نــوره هــره د اوبــو غوښــه روا ده
د کــب ذبحــې حلالــې تــه اړتيــا نــشته
دې کـې بلـې فيـصلې تـه اړتيـا نـشته
لــه اوبــو نــه چــې راووځــي او مــړ شــي
پـاکوه يــې پخــوه يــې تاتــه پــړ شــي
چې اوبـو کـې مـړ کـب ومـومې او پـاک وي
بوی يې نه وي کړی وړ بيا د خوراک وي
پـاک حـلال تـل پـه حلالـه لاره وخـوره
که دې کړکه څه نه کېږي بيا يې مه خوره

خـو حـلال تـه حـرام مـه وايـه بـې ځايـه
که حـرام وي بيـا حـلال ورتـه مـه وايـه
چـې يـواځې پـه اوبـو کـې کـوم اوسـېږي
او چې وچـې تـه راوځـي نـو مـړ کېـږي
هغـــه ټـــول حـــلال روا دي او کبـــان دي
تمـساح نـه دی روا نـور پکـې عيـان دي
چـې پـه ولـړه کـې اړتيـا وي حـلال نـه وي
د اړتيـا پـه کـچ مـرداره وبـال نـه وي

❋❋❋

## حلالــول

د حـــلال حيـــوان پـــاکي حلالـــول دي
پـــه نامـــه يـــې د الله ذبحـــه کـــول دي
تـــــه بـــــسم اللهِ و اللهُ اکبـــــر وايــــه
حلالـې او د ښـکار ږز کـې همـدا سـتايه
پـــه يـــواځې بـــسم الله حـــلال او پـــاک دی
که تکبير نه وي بې شکه او بې بـاک دی
حلالـــې کـــې دغـــه درې ځايونـــه بويـــه
غوڅوه يې چې دا وينه شـي تـرې تويـه
دادسـا کلکـه مـرۍ هـم پـرې کـول دي
د خوراک د سرې مرۍ هم غوڅول دي
د مـــرۍ خـــوا تـــه د وينـــې غـــټ رګونـــه
پـرې کـول دي کـوم چـې وينـه بهوينـه

د هـډوکي پـرې کـول پـه دې کـې نـشته
هم د څـټ ورمـاتول پـه دې کـې نـشته

د مـــرۍ ذبحـــه کـــول کـــه وي ناشـــوني
بيا د هغو پرې کول دي چې وي شـوني

لکه پرېوځي کوم څاروی لاندې په څا کې
سـر يـې ښـکته وي نـښتی پـه بـلا کـې

بيـا د هـر ځـاى پـرې کـول حلالـول دي
پـه دې ذبحـې د الله نـوم اخيـستل دي

پـه تېـرې چـړې پـه هـر څيـري کـوونکي
حلالـه ده چـې هغـه وي پـرې کـوونکي

بې لـه غـاښ او لـه نوکـانو نـور صحيح دي
دغــه ټــول حلالـــوونکي او مبـــيح دي

پـــه ويـــشتلو د ټوپـــک هـــم حلالېـــږي
د الله نوم چـې پـرې واخلـې روا کېـږي

کـــه د غـــشي پـــه تېـــرو وي لګېـــدلی
په ګـولۍ يـا پـه چـړو دې وي ويـشتلی

پـه دې ټولـو د الله پـه نـوم حـلال شـي
بـې لـه ذکـره د الله حـرام وبـال شـي

پـــه دې ټولـــو وژل شـــوي روا کېـــږي
که څه ذبحه نه وي هـم پـه دې پـاکېږي

که ژوندی دې کړ راګير بيـا يـې حـلال کـړه
د الله په نوم يې ذبحه په دې حال کـړه

کــه پــه کــاڼي پــه کوتــک وي لګېــدلی
يــا لــه غــره وي کنــډه شــوی ټکېــدلی
يــا پــه ښــکر وي وهــل شــوی يــا داړلــی
وي لېـــوه يـــا ځنـــاورو وي څيرلـــی
نـــو کـــه مـــړ و بيـــا حـــرام دی نـــاروا دی
که دې ذبحه کړ نو پـاک حـلال روا دی
زنـــدی شـــوی بـــې لـــه ذبحـــې نـــاروا دی
خو هر يو ژوندی په ذبحـې بيـا روا دی
هـــر حېـــوان پـــه دغـــې ذبحـــې حلالېـــږي
خـــو د اوښ لپـــاره نحـــر ټاکـــل کېـــږي
نحـــر دا چـــې پـــه ولاړه بـــه ګونـــډه شـــي
په دې کار بـه مطمـئن او ښـه ډاډه شـي
د غړانګې بېخ کې ځـای چې کـوم ژور دی
لـــه ســـينې نـــه پـــاس ددغـــه ځنـــاور دی
دغه ځای په ښې تېرې چړې سوری کـړه
ښی او کيڼ لور ته يې څيرې ورنری کړه
د الله پـــه نـــوم چـــې وشـــي دغـــه نحـــر
او راتـــش شـــي دا د زړه د وينـــو بحـــر
او راپرېـوځي سـا تـرې ووځـي او مـړ شـي
نـو ايـستو تـه د څرمنـې وړ او پـړ شـي
د اوښ نحـــــر فـــــضيلت ذبحـــــه روا ده
او د ذبحـــې والا نحـــر هـــم دوا ده

حلالـه چـې څـوک کـوي بايـد عاقـل وي
او معلــوم ورتـــه د ذبحـــې مـــسائل وي
مميـــــز وي مـــــسلمان يـــــا کتـــــابي وي
پـروا نـشته يهيـودي کـه نـصراني وي
د الله پــــه نــــوم چــــې ذبحـــــه وي روا ده
د الله پـه نـوم چـې نـه وي نـاروا ده
پــــروا نــــشته نارينــــه کــــه ښــــځينه وي
نا سنت، ړونـد يـا جنـب يـا حائـضه وي
کــه فاســق وي حلالــه يــې هــم روا ده
د الله پـه نـوم بـې غمـه بـې سـودا ده
حلالـــــه د لېـــــوني هــــم نـــــاروا ده
د مرتــــد او وثنــــي هــــم نـــــاروا ده
نــــاروا د کمونــــست او مجوســــــي ده
د نــشه، هنــدو او ســک او قاديـاني ده
د زنــــديق او نــــصيري هــــم نـــــاروا ده
پروېــزي، اســماعيلي هــم نــاروا ده
پــه چــاکو او پــه چــړې ذبحـــه روا ده
پــه بکــرې او درمــې ذبحـــه روا ده
پــه تېــره لرګــي شيــشې هــم حلالېــږي
پـه تېـره او پـرې کـوونکي روا کېـږي
د حېــوان مــخ د قبلــې لــوري تــه بويــه
څملول يې هم پـه کـيڼ اړخ دي زويـه

که په خېټې د ځاروي کې کوم بچی وي
د الله په نوم حلال دغه ځاروی وي
دا بچی که مړ راووځي حلال دی
دا د مور په ذبحې ذبحه په هر حال دی
که راووځي ژوندی باید حلال شي
د الله په نوم به ذبحه بې جنجال شي
او که لږ حرکت وکړي او بیا مړ شي
دا حلال دی دا د مور په ذبحې پړ شي
که کوم سپي تعلیم زده کړی وي ښکاري وي
او په ښکار دې ورلېږلی دا کاري وي
د لېږلو وخت کې نوم د الله یاد وي
په دې کار باندې به پاک د ښکار مراد وي
دغه سپی چې کله ښکار وکړي حلال دی
که مړ شوی وي روا په دغه حال دی
خو که سپي وي لږ خوړلی بیا حرام دی
دا سپي ځان ته دی نیولی ناتمام دی
که ژوندی و بیا یې ذبحه کړه چې پاک شي
او په ذبحې ښه حلال او د خوراک شي
که کوم بل سپی ستا له سپي سره ولاړ و
ښکار د دواړو منځ کې پروت مجهول لتاړ و

بیـا یـې مـه خـوره دا شـکي او نـامعلوم دی
تا یاد کړی په خپل سپي د الله نـوم دی
ددې بـل سـپي ښـکار ناپـاک او نـاروا دی
د الله نوم پرې یاد نـه دی لامـل دا دی
د ښـکاري بـاز او بـاخې حکـم هـم دا دی
بسم الله باندې یې ښـکار حـلال روا دی

❋❋❋

# عقـــیقه

چې ماشوم وشي په ښـي غـوږ یـې اذان دی
او په کیڼ غوږ اقامت ښه پـه اِذعـان دی
اضـحیه شـوه پـه اختـر کـې مخکـې تېـره
قربـاني د لـوی اختـر دې مـه شـه هېـره
د ماشـــــوم پـــــه زېږېـــــدلو عقیقـــــه ده
دا پـه اومـې ورځ خیـرات او صـدقه ده
د هلــک لپــاره دوه پــسونه حــلال کــړه
که دوه نه وي یـو روا دی اعتـدال کـړه
لـه جلـۍ نـه یـو حـلال کـړه زمـا وروره
دا پـه اومـه ورځ سـنت ده بـې لـه زوره
هـم پـه اومـه ورځ د نـوم یـې ایـښودل دي
هم پـه اومـه ورځ د سـر یـې کلـول دي

دا وېښتان يې سپينو زرو سره تول کړه
چې هر څومره شو خيرات بيا دغه تول کړه
که په اومه نه شوه بيا ده څوارلسمه
او که نه شوه بيا يې بوله يويشتمه
که له اومې شوه خطا نو بيا روا ده
چې په هرې ورځې وشي بې پروا ده
هم پخپله يې خوړی دا عقيقه شي
هم خوړی يې په خپلوانو او مېلمه شي
کلي کور او ګاونډيانو خيال يې ساته
مسکينانو بې وزلانو خيال يې ساته
دا چې وايي چې هډوکي به يې روغ وي
هسې وايي څه خبرې هسې دروغ وي
که پخه په چا خورې يا ورکوې خامه
پروا نشته ورکوه يې ښه له پامه
❋❋❋

# جامې

دا جامې هم د انسان يو ضرورت دی
د الله له لوري مونږ باندې نعمت دی
په جامو باندې عورت زمونږ پټېږي
زمونږ پت عزت عفت پرې خوندي کېږي

ساتل کېږو پرې يخنـۍ او لـه ګرمـۍ نـه
جوړې شوې وي لـه تـار کـه لـه وړۍ نـه
په جامو کې هم ښکلا زيب و زينت دی
په جامو کې هم صحت او هم حشمت دی
د عـورت پټـول فـرض دي پـه اسـلام کـې
د جـامو شـرطونه ونيـسه پـه پـام کـې
جـامې پـاکې او درنـې سـنګينې سـاته
عـورت مـه ښـکاره کـوه هيڅکلـه چاتـه
ښـې او ښـکلې جـامې واغونـده روا دي
د ريــښمو نارينــه تــه نــاروا دي
هـم سـره زر پـه نارينـه بانـدې حـرام دي
د شـهرت کبـر حرامـې پـه اسـلام دي
دغــه دواړه بيــا روا دي ښــځينه تــه
دا ســاده رنګونــه بويــه نارينــه تــه
ښــځينه تــه نــاروا د نارينــه دي
نارينــه تــه نــاروا د ښــځينه دي
د لمانځه بحـث کـې تېـر د عـورت بريـد شـو
ما چې وليکل نو ستا د سـترګو ديـد شـو
د اِسـبال بحثونـه هلتـه دي تېـر شـوي
دلتـه بويـه څـه بحثونـه نـوي نـوي

چې عورت پکې معلوم او یا ښکاره شي
دا په دواړو ناروا او ناکره شي
هم اسراف په هر یو شي کې ناروا دی
اعتدال په هر یو شي ښه د هر چا دی
که مالدار وې مالداري ځان کې ښکاره کړه
که غریب وې نو بیا صبر گوزاره کړه
پیوندي جامې نه شرم او نه عار دی
د صورت سیرت پاکۍ ته اعتبار دی
دا گلداري رنگینې د ښځو بویه
نارینه ته ساده ښې دي زما زویه
نارینه زیړ پیړ او شخ ښه معلومیږي
ښویه پیه ښځینه سره جوړیږي
د سرو سپینو زرو لوښي هم حرام دي
نارینه او ښځینه لپاره عام دي
که ناروغ وي یا مضطر وي ورته اړ وي
بیا ریښم او سره زر دواړه ورته وړ وي
درې څلور گوتې ریښمو کې باک نشته
نارینه ته خو د زیاتو یې واک نشته
که ریښمو سره گډ وي نور تارونه
اوبدل شوي وي دې دواړو نه رختونه

نــور تارونــه پــه رېــښمو هــم غالــب وي
او په رنګ باندې ساده ښکلي جالب وي
د اکثــر حکــم دکــل دی بیــا خبــر شــه
نارینــه تــه هــم روا دي معتبــر شــه
کـــــه د ســـــپینو زرو ګوتـــــه وي روا ده
نارینه تـه ښـه بـې خوفـه بـې سـودا ده
جـــواهر قېمتـــي کـــاڼي ټـــول روا دي
نارینـــه او ښـــځینه تـــه بـــرملا دي
دا نکریــزې او ســینګار ښــځو تــه بویــه
پــروا نــشته چــې وړه وي او کــه لویــه
دا ســینګار د نارینــه بــس نــارینتوب دی
مېړنتوب دی، سړیتوب دی، سړیتوب دی
نارینـــه تـــه نـــاروا ســـینګار د ښـــځو
نارینـــه تـــه نـــاروا کـــردار د ښـــځو
نــور وېــښتان لګــول ښـځو تـه حـرام دي
د تــور پېــوي تــړل ښځو تـه حـرام دي
وروځو مخ نه یې وېښتان ویستل حرام دي
هم د ښځو دا د سر خرېیـل حـرام دي
شـــنه خالونـــه کوچـــاني لګـــول نـــشته
پـه غاښـو کـې فاصـلې جـوړول نـشته

کــه بریتونــه وي د ښــځو یــا وي پیــره
بیــا ایــستل ورتــه روا دي لــه تــدبیره
دا وســمې او تــور رنگونــه د وېــښتانو
نــاروا دي پــه نــر، ښــځې مؤمنــانو
او نکریــزې پــه ســر ږیــرې ښــې روا دي
باک یې نشته د ثواب دي د هـر چا دي
دېوالونــو تــه پــردې هــم نــاروا دي
خــو کړکیــو دروازو تــه بیــا روا دي

***

## لوړې (قسمونه)

پـــه صـــفاتو د الله او پـــه نومونـــو
اخیـستل کیـږي د لـوړو قـسمونو
پــه قــرآن بانــدې قــسم کیــږي روا دی
دا کــلام دی د الله صــفت یــې دا دی
پــه ســورت پــه یــو آیــت هــم لــوړه کیـږي
د الله پــه نــوم صــفت هــم لــوړه کیــږي
پــه مخلــوق لــوړه کــول کفــر او شــرک دی
په مخلوق قسم خوړل کفر او شرک دی
نــه پــه نــوم د پیغمبــر قــسم روا دی
نــه د چــا پــه نــوم او سـر قــسم روا دی

پــه درې ډولــه دي دا لــوړې قـــسمونه
منعقــد، غمــوس او لغــو يــې ډولونــه
منعقـد هغـه قـسم دی چـې ښـه کلـک وي
د راتلونکي وخت لپاره وي بې شک وي
لکـه وايـــي پـــه والله چـــې دا بـــه وکـــړم
يـا دا وايـي پـه والله داسـې بـه نـه کـړم
او لـــه زړه نـــه دا قـــسم وي ښـــه پيـــاوړی
چـې وفـا نـه کـړي حانـث دی نومـوړی
غموس دا دی چې په دروغـو د ماضـي وي
د چا مخکې يا په مـخ کـې د قاضـي وي
قـــسم خـــور بـــه وردننـــه دا قـــسم کـــړي
د دوزخ په سرو لمبو کې به يې تم کـړي
بــل دی لغــوه بــابيزه دی بــې لــه نيتــه
وي په ژبـه نـه وي کلـک د زړه لـه چتـه
لکـه وايـي تـل والله چـې داسـې کـار دی
دا لـه زړه نـهٔ دی او زړه تـه اعتبـار دی
منعقــد چـــې پـــوره نـــه کـــړې کفـــاره ده
پـه غمـوس لغـو کـې نـشته نـاپوره ده
د غمـــوس قـــسم گونـــا ده ډېـــره لويـــه
کفــاره يـــې ځکـــه نـــشته زمـــا زويـــه

او چې لغولـه زړه نـه وي دا معـاف دی
چې قسم يې نيت کې نه وي زړه يې صاف دي

خولـه پـه ډېرو قسمونو عـادت نـه کړې
قسم خور سره بـه کله صحبت نـه کړې

نـه ويـده نـه لـه ماشـوم نـه قسم کېږي
نـه پـه زور نـه لېـوني څخـه سمېږي

د خيـر کـار نـه قسم مـه کـړه مسلمانه
که قسم دې وکړ بيا شه پرې پښېمانه

قسم مـات کـړه کفـاره د لـوړې ورکـړه
دې ترتيب باندې له ځان لرې خطر کړه

کـه چـا وويـل ان شـاء الله قسم کـې
مخکې وروسته لـه قسمه دغـه دم کـې

تـرک يـا فعـل د کـوم کـار يـې معلـق کړ
د الله پـه مشيئت يـې محقـق کـړ

حانـث نـه دی پـه کولـو نـه کولـو
پـه دې کـار کـې د قسم پـه ماتولو

پـه کولـو د مکـروه کـه څـوک قسم کـړي
يا پـه تـرک د مستحب دغـه قدم کـړي

مـاتول ددې قسم بيـا ښـه سـنت دي
کفـاره ورکـول هـم پـه شـريعت دي

پــه کولــو چــې قــسم د مــستحب کــړي
یـا پـه ترکـو د مکروهـو پـه ادب کـړي
بیــا مکــروه دا مــاتول ددې قــسم دي
ورکـــول د کفــارې پکـــې اتـــم دي
کــه قــسم وکــړي د فرضــو پــه کولــو
یـا قـسم کـړي د حـرام پـه نـه کولـو
مــاتول ددې قــسم یــې بیــا حــرام دي
هـم گونـا هـم کفـاره پکـې تمـام دي
کــه قــسم کــړي پــه کولــو د حرامــو
پرېــــښودو د فرائــــضو او احکـــامو
مــاتول ددې قــسم وربانــدې فــرض دي
ورکـول د کفـارې وربانـدې قـرض دي
که حلال په ځان حرام کړي دا قسم دی
د ظهـار حکـم تېـر شـوی پـه قلـم دی
دغــه نــور حــلال پــه چــا نــه حرامېـږي
خــو ضــرور پــرې کفـاره د قـسم کېـږي
کــه چــا وویــل دا کــار کــه چېرتــه وکــړم
یـا دا ووایـې کـه دغـه کـار ونـه کـړم
نــو کــافر بــه یــم اسـلام نــه بــه بېـزار یــم
یـا الله یـا بـه نبـي نـه پـه انکـار یـم

کـــافر نـــه دی د قـــسم پـــرې کفـــاره ده

که حانث شي دا پرې بـه کـره پـوره ده

خـــو عـــادت پـــه دې خبـــرو دی نـــاوړه

ځـــان دې وســـاته نـــاوړه څخـــه مـــړه

کـه قـسم کـې نیـت بـدل ظـاهر بـدل وي

په دې کار کې تېر ایستل او څه چل ول وي

نـو قـسم دې پـه ظـاهر بانـدې صـحت دی

چـې قـسم چاتـه کـوې دهغـه نیـت دی

په اسلام کې نه ټګي شـته نـه چـل ول شـته

نـه د نـورو غولـول نـه بـد عمـل شـته

کـه قـسم وکـړي چـې نـه ځـم پـه دې لار زه

یا قسم واخلي چې نه خورم دا جـوار زه

او دا لاره بیـا ســړک جـــوار نینــې شـــي

شي بدل پـه څـه بـدلون یـا زمـانې شـي

نـــو حانـــث پـــه مـــاتولو د قـــسم دی

کفـاره بـه ورکـوي نـو کـار یـې سـم دی

خو که نیت کې یې ځانګړی کوم صـفت وي

بیا حساب دی همغه چې کوم یې نیت وي

که ټـاکلی کـوم صـفت پـه نیـت کـې نـه وي

یـا ټاکنـه او سـبب دقـت کـې نـه وي

بيـا شـرعي الفـاظ پـه شـرعې محمـولېږي
حقيقـت پـه حقيقـت بانـدې حملېـږي
کـه مجـاز پـه حقيقـت بانـدې غالـب وي
بيا به حمل پـه مجـاز بانـدې جالـب وي
هـم عرفـي حقيقـت عـرف بانـدې حملېـږي
خپل خپل ځاى کې په خپل لفظ حا نښېږي
نيـــت دليـــل او قرينـــو تـــه اعتبـــار دى
چې ټګي کوي بې شـکه ګوناهګـار دى

❋❋❋

## د قسم کفاره

د قـــــسم پـــــه مـــــاتولو کفـــــاره ده
ستا اختيار دى چې له وسه دې پوره ده
يـــا ډوډۍ ده دا د لـــــسو مـــــسکينانو
منځکـــوره ده دا د لـــسو بـــې وزلانـــو
دا دوه وختـــــه ددې لـــــسو مـــــړول دي
يا د نيم صاع خام طعام څـه ورکـول دي
يـــا جامـــه ده ددې لـــسو مـــسکينانو
منځکـــوره د نـــر او ښـــځو محتاجـــانو
يـــا د وينځـــې يـــا غـــلام ازادول دي
که دا ټول نه وي د درې روژو نيول دي

دغــه درې پرلــه پــسې نيــول پــه كــار دي
بې له عذره چې دا نه كــوي بــې لار دي
قــسمونه چــې وي گــڼ لــه يــو نــه ډېــر وي
كفارې به هــم د لــوړو پــه دې شــمېر وي
چـــې څـــه لـــوړه او قـــسم پـــه نـــاروا وي
په درواغو د چا حـق بانـدې همـدا وي
دا گونـــــا ده نـــــاروا دى كبيـــــره ده
كفــاره پـــه دې كـــې نـــشته نــاكره ده
پــه كولــو پرېــښودو چــې د كــوم كــار وي
او بيا مات شـي دې قـسم تـه اعتبـار وي
كفــاره بيــا وركـــول دي دې قـــسم كـــې
ښه كره او ښه پوره پـه كيـف و كـم كـې

***

## نـــذر (منښته)

چـــې منـــښته د طاعـــت او عبـــادت وي
نو وفا وربانـدې فرض په هـر صـورت وي
چـــې منـــښته د گونـــا وي وفـــا نـــشته
د گونـا پـــوره كـــول پـــه هيچـــا نـــشته
دا نذرونـــــه او منـــــښتې عبـــــادت دى
د الله پــه نــوم طاعــت او هــدايت دى
د مخلـوق پــه نــوم د نــذر منـل شــرک دى
د مخلوق په نوم منښتې كول شـرک دى

نـــذر اصـــل کـــې نـــاوړه او ښـــه نـــه دی
راوتلــــی د بخیـــل لـــه لړمانـــه دی
خـــو وفـــا پـــرې بیـــا طاعـــت او عبـــادت دی
پـــه طاعـــت بانـــدې وفـــا مـــشروعیت دی
بـــې لـــه نـــذره عبـــادت کـــول افـــضل دي
بې له شـرطه د طاعـت کـول افـضل دي
نـــذر بویـــه پـــه پنځـــه ډولـــه ای وروره
او پـنځم ډول یـې دوه ډولـه بیـا گـوره
نـو پـه دې ترتیـب پـه شـپږ ډولـه جـوړیږي
اوس یې گوره چې هر یو یې څرگندیږي
لـومړی نـذر دی مطلـق چـې معلـوم نـه وي
کوم ځانگړی شی په دې کې موسوم نه وي
پـــه مطلـــق کـــې کفـــاره د قـــسم ورکـــړه
کفارې بانـدې لـه ځـان لـرې حـذر کـړه
دویـــم نـــذر د لجـــاج او د غـــضب دی
دغــه نــذر د غوســې د بــد سـبب دی
دا د نـــذر د کـــوم شـــرط پـــورې تـــړل دي
یـا د منعـې یـا پـه څـه شـي تېـزول دي
یـــا گڼلـــو د ریـــښتیا پـــورې تـــړل دي
یا تعلیق د کوم خبـر پـه دروغ گڼـل دي

لکــه وايـــي کـــه مـــې وکړلـــې خبـــرې
لـه فلانـي سـره نـږدې وي او کـه لـرې
يـــا فلانيـــه کـــه ماتـــه ونـــه وهلـــې
نـو پـه ځـان مـې دا منـښته ده منلـې
نـــو ناســـمه دا منــــښته د غوســـې ده
کفـــاره ده د قـــسم پـــه تلوســـې ده
درېـــيم نـــــذر د مبـــــاح او د روا دی
لکـه ځمـه بـه بـازار تـه دا پـه مـا دی
يـا بـه اغونـدم جـامې يـا بـه سـپرېږم
يا بـه نـه ځمـه پـه کـور بـه پـاتې کېږم
پـه دې ټولـو کـې پـه نـذر هـم وفـا شـته
کفـاره د قـسم هـم ښـه هويـدا شـته
په دې دواړو کې اختيار دی چې هر کاندي
بيا يې خوښه ده چې ژاړي او که خاندي
کـه منلـې يـې پـه ځـان بانـدې سـختي وه
او پـه دې کـې کراهـت او بـدبختي وه
بيـــا پـــه نـــذر وفـــا نـــشته کفـــاره ده
کفـاره د قـسم دلتـه بـس پـوره ده
څلـــورم د ګونـــا نـــذر نـــاروا دی
دغـه نـذر دی حـرام او د بـلا دی

لکــه شــرک دی د مخلــوق پــه نامــه نــذر

او گونـــا ده لکـــه نـــذر وي د بـــذر

د گونـــا نـــذر منـــل هـــم نـــاروا دي

او وفـا پـرې بيـا کـول هـم نـاروا دي

نــه دې نــذر کــې وفــا پــوره کــول شــته

نه پـه دې کـې کفـاره څـه ورکـول شـته

پـــنځم نـــذر التبـــرُر دی د ثـــواب دی

عبـادت دی تقـرُب دی او صـواب دی

پـــه درې ډولـــه مقابـــل کـــې د نعمـــت دی

يـا لـه ځانـه التـزام پـه عبـادت دی

يـا پـه دفعـې د ضـرر کـې دی لـه ځانـه

دا مطلـــق او معلـــق دی مـــسلمانه

چې بې شـرطه وي کـوم نـذر دا مطلـق دی

چې په شرط وي کوم يو نـذر معلـق دی

په دې دوه ډولـو ټـول شپږ ډولـه جـوړيږي

دا مطلـــق او معلـــق دوه حـــسابيږي

مطلق دا دی چې بې شـرطه داسې وايـي

دغـه نـذر او منـښته داسـې سـتايي

پـــه مـــا نـــذر دی د پـــاک الله لپـــاره

په ما لمونځ شو يا روژه لـه خپـل اقـراره

يـا شـو حـج يـا صـدقه او يـا عمـره شـوه

يـا پوښـتنه د نـاروغ او ښـه کـره شـوه

یـا جهـاد تـه تلـل یـا مـا بانـدې انفـاق شـو
د ثواب په نیت پـه مـا دغـه میثـاق شـو
معلـــق یـــې پـــه دې ډول دی طالبـــه
چې دا نذر په کوم شرط وي ای صاحبه
لکـــه ووایـــې کـــه روغ زمـــا بیمـــار شـــي
یا په ښه صـورت انجـام زمـا دا کـار شـي
نـــو پـــه مـــا الله لپـــاره عبـــادت شـــو
صدقه لمونځ، روژه، حج یـا عیـادت شـو
ددې نـــذر انـــدازه کـــړې هـــم معلومـــه
دا منښته کړې خپل کچ باندې موسـومه
چـې کـار وشـي پـه دې نـذر بیـا وفـا ده
پـه تـا فـرض ددې منـښتې ښـه ادا ده
خپل ټول مال منل په نـذر کـې سـم نـه دي
ټـول منـل د شـریعت پـه قـدم نـه دي
که څوک نذر په منښتې کې ټـول مـال کـړي
د ټول مال ورکول نذر کـې وبـال کـړي
دغـــه نـــذر پـــه دریمـــه کـــې ســـمېږي
دا دوه برخې ورته کور کې پـاتې کېږي
د دریمـې ورکـول پـرې ښـه پـوره شـته
په دې نـور کـې نـه سـزا نـه کفـاره شـته
کـــه منـــښته د څـــاروي حلالـــول وي
دا بـه نیتـه سـره سـم پـوره کـول وي

چې څه نيت وي په هغه ترتيب کول دي
که خوړل دي د پخو که خام وېشل دي
کـه پـه نيـت کـې يـې د غوښـو پخـول وو
او پخپلـه او پـه نـورو هـم خـوړل وو
نـو دا نـذر بـه همدغـسې پـوره کـړي
دا منښته بـه د نيـت غونـدې کـره کـړي
کـه بـل نيـت وي بيـا هماغـسې کـول دي
څه چې نيت وي په همغه لاره تلـل دي
که په نيـت کـې شـمېر د ورځـو د روژې وي
بيـا نيـول يـې پـه همغـه انـدازې وي
که په هر ترتيب وي ورځې به پوره کړي
پروا نشته کـه رنگـۍ رنگـۍ کـره کـړي
تتـابع پرلـه پـسې نيـول پـرې نـشته
د قيـدونو د شـرطونو تـړل نـشته
خـو کـه نـذر يـوه مياشـت پـوره نيـول وي
بيـا بـه پرلـه پـسې خامخـا کـول وي
کـه پـه نيـت کـې تتـابع وي تتـابع دی
او کـه نيـت کـې تمتـع وي تمتـع دی

***

## شخړې او لانجې کونجې

اخـتلاف شـخړو لانجـو څخـه ځـان ژغـوره
په چا هسې له دعـوو څخـه ځـان ژغـوره

یـــو تـــر بلـــه تېرېـــدلو کـــې ثـــواب دی
اختلاف نـه ځـان سـاتلو کـې ثـواب دی

که دې حق وي په چا حق غوښتل دې حق دی
د اسلام قاضي حاکم ته تلل دې حق دی

د اســـلام خـــلاف قـــانون منـــل دي کفـــر
بـل قـانون تـه فیـصله وروړل دي کفـر

مـــــسلمان د مـــــسلمان ســـــکنی ورور دی
یـو تـر بلـه سـره مرسـته کـول پـور دی

یـــو پـــه بـــل ظلـــم کـــول هـــم نـــاروا دي
مـــسلمان تـــسلیمول هـــم نـــاروا دي

سپکاوی او سـپک گڼـل یـې هـم حـرام دي
بې مدده پرېښودل یـې هـم حـرام دي

د ظـالم مخنیـوی فـرض پـه مـسلمان دی
د مظلوم لاسنیوی قرض په مـسلمان دی

الله نه خوښـوي څـوک چـې لانجـه مـار وي
او دعـوې کـوي او تـل یـې دغـه کـار وي

عفـــو بښـــه ده انتقـــام او غـــچ روا دی
خو له خپله بریـده زیـات بیـا نـاروا دی

د یـــو ظلـــم بانـــدې بـــل نیـــول حـــرام دي
د قاتـل د ورور او پـلار وژل حـرام دي

د خپل ځان او مال او پت دفاع دې حق دی
د خپل دین او د عزت دفاع دې حق دی

که چا مړ کړې په دفاع کې نو شهید یې
چې دفاع نه کړې دووس، احمق بلید یې
که دفاع کې دې څوک وواژه مهدور دی
قصاص نشته دغه کار په تا ضرور دی
د یوې لوېشتې دعوه مه کړه سپکه
که دې وکړه ناروا دعوه په ځمکه
نو قیامت کې به دا اوه ځمکې یو طوق شي
او دا طوق به ستا په غاړې باندې سوق شي
مدعي باندې دلیل دی په دعوې کې
غوښتل کېږي ترې د عدل فیصلې کې
چې دلیل نه وي دعوه ده نامقبوله
هم په دین کې ناروا هم نامعقوله
دا دلیل به یقیني او باوري وي
قبول نه دی د ګومان چې سرسري وي

***

## صلحه (سوله)

سوله حکم د الله او د رسول دی
دا په منځ د مؤمنانو کې معمول دی
مؤمنانومنځ کې سوله کول فرض دي
دغه فرض مسلمانانو باندې قرض دي
تېری، ظلم ناروا دی په اسلام کې
دا وګړي باید تل وي په سلام کې

نـــاروا د ظلـــم ســـوله نـــاروا ده
خـــو د عـــدل ښـــه روا ده بـــرملا ده
چـې حـلال حرامـوي حـرام حـلال كـړي
دغــه ســوله نـاروا ده دا وبـال كـړي
كـــه يـــو بـــل تـــه تېرېدنـــه وي بـــښنه
ډېـره ښـه ده بيـا يـې مـه كـوه پوښـتنه
كـه لـه پرېكـړې مخكـې وكـړي سـره سـوله
لانجـه مـار سـره رضـا شـي بـې لـه تولـه
ښــه پــه خوښــه او رضــا او خوشــحالۍ وي
په دې سولې كې ثـواب دلـۍ دلـۍ وي
چـې د عـدل پـه جرگـې وي او پـه خوښـه
نـه پـسونه پكـې شـته نـه پكـې غوښـه
ملكـان جرگـه مـاران چـې خـوري پـسونه
ناروا دي خـوري پـه خېټـو كـې اورونـه
كه په خوښـه وي شـرط نـه وي او اكـرام وي
بيــا روا هــره ډوډۍ پــه احتــرام وي
نـه ډالـۍ شـته پـه جرگـو كـې او نـه بـډې
نـــه خبـــرې د ټگـــۍ بـــه وي ورگـــډې
كومـــه ســـوله چـــې د دواړو پـــه رضـــا وي
ښـه پـه عـدل وي د دواړو پـه امـضا وي
بيـا يـې فـسخه نـشته ختمـه دا دعـوه شـي
چې پـتمن وي نـو خبـره يـې يـوه شـي

کــه کــوم حــق وي د يتــيم يــا لېــوني وي
يا د کوم واړه کمکي ماشوم کـوچني وي
د هغـــه لـــه حقـــه بيـــا تېرېـــدل نـــشته
بيــا د حــق يــې تبــرع او بــښل نــشته
ســـوله کېـــږي پـــه حقوقـــو د وګـــړو
يــا پــه وينــو يــا پــه مــال د نومــوړو
د الله پـــه حـــق کـــې ســـولې نـــاروا دي
د الله پـه حـق کـې پرېکـړې بـرملا دي
ســوله نـــشته د وګـــړو هغـــه حـــق کـــې
چې عوض نه لـري هيڅکلـه مطلـق کـې
ســوله نــشته د شــرابو او غــلا حــد کــې
ســوله نــشته د زنــا لواطــت بــد کــې
دې کــې ســوله پــه مــال هــسې دووســي ده
دې کې پرېکړه د اسلام ده حماسـي ده
د دروغــو پــه دعــوو کــې نــشته ســوله
د دروغــو دعــوې مــه کــوه بــې تولــه
پـــه باطلـــه د چـــا حـــق نـــه روا کېـــږي
که په سولې يـې هـم ورکـړي حرامېـږي

❋❋❋

## قضاء او پرېکړې

دا نــــړۍ دا ځمکـــــه ټولـــــه د الله ده
دا درنــــده او ســــپکه ټولــــه د الله ده

پــه دې ځمکــې بــه قــانون هــم د الله وي
دا نظــام بــه د ســمون هــم د الله وي
د اســلام پکــې نافــذ بــه شــريعت وي
هر يو کار به ښه په عدل عدالت وي
بــل قــانون جــوړول کفــر دی بــې شــکه
بــل قــانون چلــول کفــر دی بــې شــکه
ټــولې پرېکــړې فيــصلې بــه د اســلام وي
د نظــام دا سلــسلې بــه د اســلام وي
د قاضي ټاکل هم فرض دي په اسلام کې
د قضاء کول هم فرض دي په اسلام کې
چې شرعي حکم ښکاره کړې دا قضاء ده
فيصلې چې پرې کره کړې دا قضاء ده
د امـــام او خليفـــه پرېکـــړه روا ده
د امــام د قاضــي هــم ښــه بــرملا ده
هــرې ســيمې تــه د يــو قاضــي ټاکــل دي
که دوه درې په مشوره وي روا تــل دي
پــه امــام او خليفــه بانــدې دا فــرض دي
دا ټاکل د ښه قاضي ورباندې قرض دي
هر قاضي بـه هـم عـالم هـم پرهېزګـار وي
پــه احکــامو د قــضاء بــه خبــردار وي
هــر قاضــي بــه مــسلمان بــالغ عاقــل وي
نارينــه بــه وي ازاد هــم بــه عــادل وي

هــم بــه روغ وي پــه صــحت ژبــې غوږونــو
هم په سترگو هم به پوه وي په حکمونـو
بل شرط دا دی چې قاضي بـه مجتهـد وي
قاضي نه دی چې جامـد ړونـد مقلـد وي
***

# د قاضي آداب

قاضـــي بايـــد ښـــه ځـــواکمن مـــتمکن وي
د افراط او د تفريط منځ کـې ساکن وي
نه ډېر سخت وي چې سختی نه ظالم جوړ شي
نه بې وسه چې سستی نه بېخي سوړ شي
نـــه کمـــزوری ربغـــړی مـــانېجن وي
نه بې زړه او بداخلاقـه او دروغجـن وي
د اقـــدام او فيـــصلې جـــرات پکـــې وي
اســـتغنا او تعفـــف غيـــرت پکـــې وي
هم حليم وي، هم زغمونکی هـم ذهـين وي
په وينا او په عمل کې پاک او سپين وي
هــم هوښــيار وي هــم د خلکــو پېژنــدونکی
هـم عـادل وي، هـم الله نـه وېرېـدونکی
هوښــيارانو نــه بــه غــواړي مــشوره هــم
فقهاء بـه يـې مجلـس کـې وي کـره هـم
مــــذاهب او مــــسائل بــــه ورمعلــــوم وي
شـيطانان بـه لـه هغـه څخـه محـروم وي

لــه هيچــا بــه نــه وېرېــږي فيــصلې کــې
بــې غــوري بــه نــه کــوي معــاملې کــې
نـــه بـــه اخلـــي څـــه ډالـــۍ او رشـــوتونه
نـــــه منـــــي بـــــه نـــــاروا شـــــفاعتونه
نـه بـه اخلـي فيـصلې بانـدې څـه مـال هـم
نه به فرق کړي د پردي او انډيوال هـم
خـرڅ خـوراک هـم يـې تنخـا پـه خليفـه ده
سرشـــته يـــې خامخـــا پـــه خليفـــه ده
کـه د دوه کـسانو مـنځ کـې څـه جگـړه وي
او مجهولـــه نامعلومـــه پـــړه او وړه وي
فيـــصلې پـــورې بـــه دواړه مـــساوي وي
عـدالت بـه دغـه دواړو تـه حـاوي وي
تـر هغـه بـه دغـه دواړه پـه يـو رنـګ وي
په يو شان به سره ناست او څنګ په څنګ وي
نـه د ناسـتې ځـای کـې فـرق تـوپير روا دی
نه پـه فـرق روغبـړ يـا بـل تـدبير روا دی
نه بـه يـو طـرف رابـولي پـه خپـل کـور کـې
نه به يو سره هم ګوري کور يـا نـور کـې
نـــه ډالـــۍ نـــه مېلمـــستيا ورتـــه روا ده
نـه يـوې خـوا تـه ملتيـا ورتـه روا ده
د قـضا ځـای بـه هـر چـا لپـاره خـلاص وي
ملاقـات بـه بـۀ آزاد او پـه اخـلاص وي

نــه بــه ځــوک ایــساروي لــه ملاقاتــه
نــه بـه ځـوک منعـه کـوي لـه مـساواته
نــه بــه يــو ســره ځــه پټــې پټــې وايــي
نه بـه يـو ددغـه بـل پـه مخکې سـتايي
پلټنـــه بـــه کـــوي پـــه مـــسأله کـــې
ددې دواړو د جګـــړې معاملـــه کـــې
هــم بــه اوري لــه دې دواړو نــه خبــرې
ټـول اړخونـه بـه ځيړي نـږدې او لـرې
هـــم خبـــره بـــه د دواړو پـــوره اوري
پـه يـو شـان بـه ددې دواړو کـره اوري
ځـــو وختونـــو کـــې ناســـمه فيـــصله ده
نـــاروا ده همـــدا ســـمه مـــسأله ده
يـا چـې کلـه وي غوسـه يـا وي سـخت وږی
يا حاجت ورته ورتېنګ وي يا وي تـږی
يا سست پست وي خوب ورځي او يا وي ستړی
يـا خپـه سـخت انديـښمن وي نومـوړی
يا ناروغ وي يـا کـوم بـل اړيـن حاجـت وي
يا تحقيـق کـې نيمګړتيـا او جهالـت وي
هــم يــې پريکــړه ده ناســمه ځــان لپــاره
هم يې پلار مور او بچو، ښځې تـه يـاره
د دښـــمن پـــه هکلـــه هـــم فيـــصله نـــشته
د تېــري، ظلــم او شــک سلــسله نــشته

دغه پرېکړې فیصلې به بل څوک وکړي
دا د عدل مسألې به بل څوک وکړي
د بندیانو له حالاتو به خبر وي
هر یو کار به یې په عدل برابر وي
د یتیم او لېوني حقوق به څاري
د مظلوم او تاواني حقوق به څاري
هم د کونډې به خواخوږی او غمخور وي
دا دوه سترګې به یې هر کار ته څلور وي
که قاضي په کومې پریکړې کې خطا شي
مرتکب په فیصلې د ناروا شي
هغه پرېکړه به ماتېږي ناروا ده
د اسلام د عدالت دا مقتضا ده
قضیه معامله به لیکل کېږي
ټول اړخونه به یې ښه سم جوتېږي
مدعي دی هغه څوک چې که راستون شي
له دعوې نه نو خبره په سمون شي
په چپ والي یې لانجه جګړه شي ختمه
که وي نوې او که وي زړه شي ختمه
مدعیٰ علیه هغه څوک دی وروره
چې که چپ شي هم مطلوب وي ورته ګوره
چپ کېدل او ستنېدل یې لاس کې نه وي
لانجه اصلاً د هغه احساس کې نه وي

**کــه دعــوه ده د لانجــې او کــه انکــار دی**

**صحیح کېږي له هغه چې حر، هوښیار دی**

**تــصرف یـــې دی صــحیح او مکلــف دی**

**ښه خبر له خپل مطلوب او لـه هـدف دی**

**د ســاده انکــار هغــه کــې صــحیح کېــږي**

**چې انکار په وخـت سزا پـرې لازمېـږي**

**لکه واخلـې کـوم طـلاق او یـا کـوم حـد وي**

**په انکار او پـه اقـرار یـې ښـه او بـد وي**

***

# د پرېکړې لارې چارې

**کـه قاضـي تـه څـه لانجـه څـه شـخړه راشـي**

**عریـضه ورتــه پــه مخکــې بــرملا شـــي**

**مـــــدعي او مــــــدعیٰ علیـــــه دواړه**

**بـه راوغـواړي یوځـای غـاړه پـه غـاړه**

**په خپـل مخ کـې بـه یـې کېنـوي یـو رنګـه**

**مـساوي او بـې تـوپیره ښنـګ تـر ښنګـه**

**مـدعي بـه پـه دې دواړو کـې معلـوم کـړي**

**مـدعیٰ علیـه هـم پکـې موسـوم کـړي**

**مـدعي دی چـې چـا کـړې څـه دعـوه وي**

**او دعوه یـې ښـه ښکاره لکـه ډیـوه وي**

**مـــستحیله نامعقولـــه نـــه قبلیـــږي**

**چـې معقولـه وي هغـه بـه منـل کېـږي**

قرينـــو نـــښو دليـــل تـــه اعتبـــار دى
چې دعوه يې ناروا وي نو بې لار دى
بېنـــــه د مـــــدعي لپـــــاره بويـــــه
فيـــصله وربانـــدې کېـــږي زمـــا زويـــه
مـــدعي کـــه بينـــه نـــه لـــري وروره
بيـــا قـــسم دى مقابـــل لپـــاره گـــوره
بينـــه يـــا شـــاهدان دي عـــادلان دي
يـا څـه نـښې قرينـې پـه دې بيـان دي
دليلونـــه دي څرگنـــد ښـــکاره کـــوونکي
د دعـــوې او ددې حـــق جوتـــوونکي
د شـــاهد مجبـــورول هـــم نـــاروا دي
د شـاهد دسـل رټـل هـم نـاروا دي
مـــدعي نـــه بَينـــه غوښـــتل دي مخکـــې
بينه چې وي صحيح منل دي مخکې
مـــدعي کـــه د قـــسم طلـــب ونـــه کـــړي
او قاضي هـم دغـه سم طلـب ونـه کـړي
لـه دې مخکـې دا قـسم نـه صـحيح کېـږي
پـه طلـب او پـه دې امـر راسـتنېږي
کـه قـسم نـه کـړي دا حـق د مـدعي دى
دغـــه حـــق بيـــا محقـــق د مـــدعي دى
کـه قـسم وکـړي نـو حـق يـې ثـابتېږي
دا دعـوه پـه دې قـسم بانـدې ردېږي

مــــدعي کـــه دا ویلـــي وي اول کـــې
چې هـیڅ نـشته بینـه زما دې حـل کـې
بینـــه لـــه قـــسم وروســـته نـــه قبلېـــږي
پــه دې کـار د مـدعي دروغ جــوتېږي
او کـــه نـــه یـــې وو ویلـــي بیـــا ده ســـمه
بینـــه ده بیـــا قبولـــه ښـــه بـــې غمـــه
عـــدالت د شـــاهدانو کـــه مجهـــول وي
پوښتل کېږي به هغوی چې ښه مقبول وي
که په جرحې او تعـدیل کـې اخـتلاف شـي
مختلـف د ښـو او بـدو یـې اوصـاف شـي
څوک یې ښه څوک وایي بد دا شاهدان دي
یــو نــاوړه او بــل وایـــي عــادلان دي
معتبـــره ده دا جرحـــه چـــې دلیـــل وي
مفسَره جرحـه مخکـې پـه تعـدیل وي
شـاهدان د مـدعي چـې کـوم عـدول دي
مـدعیٰ علیــه هــم وایـــي مقبــول دي
بیــا بــې شــکه دي مقبــول او عــادلان دي
گـــواهي لپـــاره وړ دا شـــاهدان دي
مــدعیٰ علیــه بــولي کــه مجــروح څـــوک
او له نورو سره وي عادل ممدوح څـوک
او دا جرحـــه بـــې دلیلـــه وي مبهمـــه
نـــو دا جرحـــه نامقبولـــه ده ناســـمه

د تعــديل لپــاره دوه گواهــان بــس دي
د قاضــي پېژنـدل بـس د يـو اولـس دي
بينـــه چـــې وي قـــسم ورکـــول نـــشته
پـــه قـــسم د بينـــې ردول نـــشته
لــه قاضــي کـه طـرفين وي چېرتـه لـرې
او سـتونزمنې وې د دوی دغـه خبـرې
نـو قاضـي بـه هلتـه وټـاکي قاضـي څـوک
چې معلوم وي لياقت کې په ماضي څوک
د هغـــه پـــه فيـــصلې بـــه فيـــصله وي
پـه شـرطونو بـه پـوره دا سلـسله وي
کـه قاضـي نـه وي جرگـه پکـې کېـدی شـي
څه د روغې جـوړې لاره بـه ليـدی شـي
خــو جرگــه بـــه د انــصاف او عــدالت وي
موافقـــه چـــې د ښـــکلي شـــريعت وي
د ســـفر لـــه حـــده کـــم بـــه حاضـــرېږي
بې لـه عـذره بـه غائـب نـه گڼـل کېـږي
د قاضــي ليکــل قاضــي تــه صـحيح کېـږي
شـاهدان بـه پـه ليکلـو نيـول کېـږي
دا ليکـــل بـــه د انـــصاف او عـــدالت وي
موافـــق بـــه د اســـلام د شـــريعت وي
شرط يې دا دی چې کوم چاتـه لېږل کېږي
دې مجهـولې قـضيې کـې نـه پـوهېږي

کــه قاضـــي تـــه نــه معلومـــه قـــضيه وي
بيـــا پـــه دغـــو معلومـــاتو فيـــصله وي
چـــې دليـل نـه وي ذواليـد تـه اعتبـار دی
چې د چا په لاس کې وي هغه حقدار دی
په خرڅلاو کې چـې خـلاف او اخـتلاف وي
او دا شی منځ کې موجود وي پاک او صاف وي
نـــو خبـــرې د بـــائع تـــه اعتبـــار دی
اخيستونکی اخيستو کې بيـا مختـار دی
پــه جگــړو او اخــتلاف کــې گواهــان دي
مـدعي بـه يـې راوړي خـو عـادلان دي
چې گواه نـه وي پـه مـنځ کـې بيـا قـسم دی
چې دعوه ده په چا شوې ورتـه سـم دی
بَيِنــــه پــــه مــــدعي ده زمــــا وروره
او قــــسم پــــه مــــدعا عليــــه گــــوره
بينــــه هغــــه پاخــــه دي دليلونــــه
چې خبرې کې هيڅ نه پرېږدي شکونه
گواهــان وي او کـــه نـــور وي دلائـــل دي
چې د حـق لـور تـه کـاږه او رامائـل دي
***

## وکـالت

نـــاروا وکالـــت نـــشته پـــه اســـلام کـــې
خـو روا وکالـت شـته پـه انتظـام کـې

چې ښه ګوري چې ظالم دی په ناحقه
ناروا لار یې نیولې ده مطلقه
له هغه څخه دفاع هم ناروا ده
او له حق نه امتناع هم ناروا ده
که دعوه وي په چا شوې او غائب وي
مدعي د څه خبرې کلک طالب وي
نو غائب وکیل نیولی شي روا دي
خو ټګي برګي او دروغ یې ناروا دي
هم غائب وکیل نیولی شي بې شکه
هم ناروغ وکیل ټاکلی شي بې شکه

***

# اقرار

په اقرار باندې حقونه ثابتیږي
لوی دلیل دی فیصلې ورباندې کیږي
خو شرط دا دی چې عاقل وي هم بالغ وي
په رضا وي ښه په خوښه وي فارغ وي
تصرف یې هم روا وي په ټینګار وي
او په عقل محال نه وي ښه په لار وي

***

# وېش (تقسيم)

چې په وېش کې ضرر نه وي وېشل کېږي
چې تقسيم کې تاوان نه وي تقسيمېږي
که ضرر وي بيا به برخه پلورل کېږي
او قيمت به يې حقدار ته ورسېږي
لکه واخلې کومه ځا، لوښی يا ژرنده
يا وړه کوټه يا ونه فرش او کنده
يا څاروی شو يا موټر شو يا سايکل شو
يا جامه شوه يا ماشين شو يا کوم بل شو
شريکان به شريکان وي استعمال کې
ګټې وټې او قيمت ددغه مال کې
يا به پلوري کوم يو برخه او يا ټول هم
برابر به وي په عدل او په تول هم
يا به جوړ شي يا به واچوي پرې پچه
په انصاف به وي لمده وي او که وچه
نه د شي له خرڅولو نه انکار شته
نه له پچې اچولو نه انکار شته
که انکار کوي حاکم به يې مجبور کړي
دغه پرېکړه به مقبوله پرې ضرور کړي
په انصاف او بې ضرره به تقسيم وي
دغه کار به ښه د عدل په تصميم وي

***

# ګواهي او ګواهان

شـــهادت لــــه معلومـــاتو خبـــرول دي
د ليــدو يــا اورېــدو كيـــسه كــول دي
گــواهي بــه پــه ريــښتيا كــره پــوره وي
په انصاف به وي ښه نيت بـه ورسـره وي
د پـــوره ريـــښتيا خبـــره شـــهادت دی
چـې هـر لفـظ وي روا پـه شـريعت دی
نـــه ويـــل د اَشْـــهَدُ شَـــهِدُتُ فـــرض دي
نه ځانگړي څه الفاظ په دې كې قرض دي
په ريـښتيا او پـه اخـلاص چـې گـواهي وي
په هر چا په عام او خاص چې گواهي وي
او خبـره ښـه كـره سـمه ښـكاره كـړي
نو بې شـكه گـواهي پـه دې پـوره كـړي
كـه د ځـان او يـا د خپلـو پـه خـلاف وي
گواهي به پـه ريـښتيا او پـه انـصاف وي
دروغ ويـــل او پټـــول هـــم نـــاروا دي
كمـــول او زيـــاتول هـــم نـــاروا دي
گـــواهي د حـــق ده فـــرض پـــه مؤمنـــانو
كفـايي فـرض ده پـه ښـو مـسلمانانو
چې د حـق گـواهي نـه كـړي گوناهگـار دی
چې حق وايي نو روان پـه سـمه لار دی

گــواهۍ څخــه انکــار کــول حــرام دي
گــواهي کــول کــره پــوره پــه پــام دي
چې نور نه وي نو پـه خاصـو فـرض عـين ده
په ځانگړيو دغه وخت کې قرض او دين ده
اجـــوره پـــه گـــواهۍ اخيـــستل نـــشته
نـــاروا او د حرامـــو کـــول نـــشته
کــه اړتيــا د کــوم لامــل ســبب ويــل وي
يا د شرط او د کوم شمېر ښکاره کول وي
يــا ضـــرور د کـــوم صـــفت بيـــانول وي
د الفـاظو، نـوم او حـال څرگنـدول وي
دغه ټـول بـه سم پـوره پـوره څرگنـد کـړي
او ثواب د گواهۍ به په څـو چنـد کـړي
د قبـــول د گـــواهۍ شـــرطونه دا دي
ښــه کــره او ښــه پــوره او بــرملا دي
لـومړی شـرط د گـواهۍ اسـلام ايمـان دی
گواه هغـه دی چـې ښـکلی مـسلمان دی
نــه قبلېــږي لــه کــافر او لــه مــشرکه
ددې دواړو گـــواهي ده ډېـــره ســـپکه
خــو کــه نــه وي مــسلمان او ضــرورت وي
بيا روا يـې گـواهي پـه دې صـورت وي
بــل شــرط وگڼــه بلــوغ پــه شــهادت کــې
گــواه وي بايــد بــالغ پــه شــريعت کــې

خــو کــه وي د ماشــومانو پــه منځــو کــې
زيات و کم دوه درې څلورو او پنځو کې
يــــا څــــه اړه او اړيکــــه د ماشــــوم وي
او بالغ پـه گـواهۍ کـې هـم معـدوم وي
بيـــــا روا ده گـــــــواهي د ماشــــــومانو
نابــــــالغو عـــــاقلانو هوښــــــيارانو
درېيم شـرط پـه گـواهۍ کـې عقـل بويـه
لېــونی ســاده گــواه مــه گڼــه زويــه
څلــورم پــه گــواهۍ کــې دي خبــرې
گونگی نـه پـوهېږي دې کـې پـه ژورې
خـو ليکـل چـې د گـونگي وي منـل کېـږي
د ړانـده چـې اورېـدل وي هـم قبلېـږي
پـنځم شـرط پـه گـواهۍ کـې يادېـدل دي
چــې پــوره خبــره يــاده وي کــول دي
لـــه هېـــر زړي ربغـــړي نـــه قبلېـــږي
چې هر وخت ډېر سهوه کېږي غلطېـږي
شـپږم شـرط پـه گـواهۍ کـې عـدالت دی
عـدالت تـه شـريعت کـې اهميـت دی
عـــدالت وايـــي تقـــویٰ او ديانـــت تـــه
پياوړتيـا، پـت او غيـرت او مروئـت تـه
ديانـــت کـــې فـــرائض ادا کـــول دي
او سنت هـم بـابيزه سـپک نـه گڼـل دي

له حرامـو هـم پـه کلکـه ځـان ژغـورل دي
کبيــره ګونــا هيڅکلــه نــه کــول دي
صـغيرې بانـدې تـل نـه پـاتې کېـدل دي
دغـه ټولـو تـه پـه پـام کـره کتـل دي
کبيــره ګونــا هغــه ده چــې پــرې حــد وي
يـا عـذاب پـه اخـرت کـې ورتـه بـد وي
د دروغجــــن ګــــواهي نــــه قبلېــــږي واوره
حق نه تېښتې بانـدې مـه اوباسـه خـاوره
نــــه قبلېــــږي لــــه فاســــق او لــــه فــــاجره
له لوی ټـګ او تېـر ايـستونکي او مـاکره
چې کفري او شـرکي نـه وي پـه بـدعت کـې
ګــواهي د مبتــدع وي بيــا صــحت کــې
مروئــــت د پــــت عــــزت عفــــت ســــاتل دي
د نــــاوړه ســــپکو چــــارو پرېــــښودل دي
ښــه اخــلاق، ســخا او ښــه ګاونــډيتوب دی
ښه ځواني او سپېڅلتيا او سـړيتوب دی
له ډمتوب او بې شرمۍ نه ځـان ژغـورل دي
د سـړک لارو پـه غـاړو نـه خـوړل دي
بــې دعوتــه مېلمــستيا تــه نــه ورتلــل دي
څـه نخـره او مـسخره نـه جوړېـدل دي
د بــې پتــو لــه صــحبته ځــان ســاتل دي
بـې ادبـه بـې حيـا کـار نـه کـول دي

ځـان ژغـورل دي کـومې تمـې جـوارۍ نـه
بوټيـاکۍ او چاپلوسـۍ غـوړه مـالۍ نـه
د نــاوړه ناســتې پاســتې پرېــښودل دي
د پتمنــو او درنــو چــارو کــول دي
چـې کـوم تـور او يـا تهمـت وي گـواهۍ کـې
پلــوي عــصبيت وي گــواهۍ کــې
د اســلام پــه شــريعت کــې نــه قبلېــږي
چـې د عـدل او انـصاف وي منـل کېـږي
دښــمني چــې دينــي نــه وي دنيــوي وي
د دښــمن بيــا نامقبولــه گــواهي وي
ځـــان لپـــاره گـــواهي ده نامقبولـــه
هـــم مـــردوده گـــواهي ده نامعقولـــه
د قـــاذف تـــور لگـــوونکي نـــه قبلېـــږي
ځـان لپـاره د چـا جرحـه نـه سـمېږي
گواهـــان د لواطـــت زنـــا څلـــور دي
نارينه دي ښه په خوښـه بـې لـه زور دي
يـــا څلـــور ځلـــې اقـــرار او اعتـــراف دی
په خپل ځان باندې په خوښه او انصاف دی
چـــې حـــضور د ښـځو ســتونزه کړېــدل وي
بيـــا يـــوائې نارينـــه گـــواه نيـــول وي
د دوه ښـــځو گـــواهي د يـــو ســـړي ده
دا پـــه ښـــځو گـــواهۍ کـــې اســـاني ده

گـواهي پـه حقيقـت کـې يـو لـوی بـار دی
دغه بـار پـه ښـځو نـيم پـه دغـه لار دی
گواهـانو کـې کـه يـو وي او دوه نـه وي
مـدعي سره کـوم بـل پـه دعـوه نـه وي
مــدعي تــه يــو گــواه او يــو قــسم دی
دغه کار په شـريعت کـې ښـه او سـم دی
شـهادت بـه وي لـومړی بيـا بـه قـسم وي
په دې ډول بـه دا حکـم ښـه محکـم وي
نارينــه و نــه پنــا د ښــځو چــارې
چې پرده کـې وي د ښـځو فطـري لارې
لکــه واخلــې د جــامو لانــدې عيبونــه
يا د حـيض حمـل رضـاع او نـور کارونـه
بکــارت او ولادت هــم پکــې بويــه
يـوه ښـځه گـواه بـس ده دې کـې زويـه
ټــول شــرطونه برابــر پکــې حــساب دي
چې لږ مخکـې مـا ليکلـي پـه کتـاب دي
گــواهي پــه گــواهۍ ده نامقبولــه
مگـر هلـه چـې لـومړی شـي نامعقولـه
پــه دليــل بانــدې ثابتــه شــي غلطــه
او دوهمــه وي ښــه ســمه او احوطــه

***

# جهاد

جهـاد وايـي اسـتعمال د خپـل کوښـښ تـه
د خپل وس د ځان او مال د خپل کوښښ ته
چـې دا ديـن د الله خپـور او کفـر ړنـګ شـي
که دا نه وي بيا خو هسې عبث جنګ شي
شـــرک او کفــــر او د ظلــــم نـــړول دي
د اســــلام د شـــريعت نافـــذول دي
د اســــلام د دښـــــمنانو ختمـــــول دي
يــا جزيــه منــل او غــاړه ايــښودل دي
د فتنـــو لـــه منځـــه وړل او ړنګـــول دي
د فــساد ظلــم تېــري مخــه نيــول دي
کفـر شـرک تېـری ظلمونـه هـم فتنـې دي
طــاغوتي دا نظامونـــه هـــم فتنـــې دي
د وضـعي قـانون منـل يـې هـم فتنـه ده
تـرې دفـاع، نافـذول يـې هـم فتنـه ده
دا زيــاتی حــق تلفــي ټــولې فتنــې دي
دا چـل ول نـا انـصافي ټـولې فتنـې دي
جهــــاد دې لپـــاره کېـــږي مجاهـــده
چې فتنـې شـي ټـولې ړنګـې ای عابـده
او دا ديـن قـانون طاعـت ټـول د الله شـي
په دې ځمکه حکومـت ټـول د الله شـي

سـل پـه سـلوکـې قـانون بـه د الله وي
ددې ځمکـې ټـول سـمون بـه د الله وي

یـو پـه سـلوکـې وضـعي قـانون مـردود دی
دا طاعـت او عبـادت د یـو معبـود دی

سـل پـه سـلوکـې چـې نـه وي نـو جهـاد دی
او جهـاد پـه اتفـاق او اتحـاد دی

چې دا دین طاعت قانون ټول د الله شي
هسې نه چې څه الله څه عبدالله شي

شـریعت او حکومـت ټـول د الله شـي
سیاسـت او عبـادت ټـول د الله شـي

دې نـړۍ نـه دا کـړې وړې شـي ورکـې
عدالت او عدل خپور شي په دې ځمکې

ښـېرازي او ودانـي او سـوکالي شـي
محبـت مینـه الفـت او خوشـحالي شـي

وېـره ورکـه شـي او امـن امنیـت شـي
خیـر ښـېګړه وروولـي او اخـوت شـي

نـه پـه چـا بانـدې تېـری نـه ظلـم زور وي
انصاف هر چاته وړیـا پـه وره د کـور وي

جهـاد فـرض دی تـر قیامتـه بـه روان وي
تل به کېږي ترڅو ژوند په دې جهان وي

مـسلمان بـه ښـه پیـاوړی مجاهـد وي
مجاهـد بـه پرهېزګـار زاهـد عابـد وي

دا جهــاد بــه خــالص فــي ســبيل الله وي
برابــر بــه پــه حكمونــو د الله وي
جهــاد ډب دی د ادب جهــاد اصــلاح ده
جهــاد ظلــم ړنګــول جهــاد فــلاح ده
کفــر شــرک چــې نــړوي هغــه جهــاد دی
جهاد هر ځای ړنګوونکی د فساد دی
جهــاد لار د پــت عــزت او د غيــرت ده
د عفــت او عزيمــت او د همــت ده
جهــاد لار د حکومــت او سياســت ده
د عــصمت او ســيادت او قيــادت ده
جهــاد لار د امنيــت او عــدالت ده
د عظمــت او د نخــوت او مــصلحت ده
جهــاد لار د کرامــت او شــرافت ده
د بــدلون او د ســمون او د حجــت ده
جهــاد لار د هــدايت او درايــت ده
د دليــل او د ښــندنې بــصيرت ده
جهــاد لار د محبــت او د الفــت ده
د ايثــار او د نثــار او فــضيلت ده
جهــاد لار د انقــلاب او خلافــت ده
د نفــاذ د ښــه انــصاف او شــريعت ده
جهــاد لار د علــم پــوهې لياقــت ده
د ريــښتيا او ســپېځلتيا او صــداقت ده

جهـــاد لار د نظافـــت او طهـــارت ده
د تقـــوىٰ او د پـــاکۍ او ديانـــت ده
جهـــاد لار د نـــارينتوب او شـــجاعت ده
د جـــرأت او قناعـــت او ســـخاوت ده
جهـــــاد لار د آزادۍ او حريـــــت ده
د ثـــواب او حقيقـــت او د جنـــت ده
جهـــاد لاره د ثـــواب او د صـــواب ده
جهـــاد لاره د کتـــاب او د نـــصاب ده
پـــه جهـــاد بانـــدې کـــږې وږې ســـمېږي
پـه جهـاد بانـدې دا ځمکـه ودانېـږي
جهـــاد لار د اســـتغنا او برکـــت ده
د انـــسان د حفاظـــت او د حرمـــت ده
جهـــاد لاره د احـــسان او د قـــرآن ده
جهـــاد لاره د ايمـــان او مـــسلمان ده
جهـــاد لاره د نـــړۍ د ســـوکالۍ ده
د نـــړۍ د ودانـــۍ او خوشـــحالۍ ده
چـې نـه ظلـم نـه فـساد وي خوشـحالي وي
چې انصاف وي عدالت وي سـوکالي وي

***

## د جهاد ډولونه

چـې جهـاد کلـه روا فـرض او مـشروع شـو
مدينې ته له هجرت وروسته شـروع شـو

پــه دوه ډولــه يــو يــې فــرض كفــايي شــو
بل يې فرض عين په هر چا لازمـي شـو
چـــې نافـــذ كلـــه احكـــام د شـــريعت وي
يو دولـت يـو حكومـت يـو خلافـت وي
او وتلـــي د جهـــاد لـــور تـــه ځوانـــان وي
او كـــافي ورتـــه همـــدا مـــسلمانان وي
ضـــرورت يـــې د ملاتـــړ د نـــورو نـــه وي
په سنگر كې كلـك ولاړ دغـه درانـه وي
دغــه فــرض كفــايي دى همــدوى بــس دي
ددې نــورو غــاړه خلاصــه پــه اودس دي
او كه داسې نـه وي ټـول بيـا گوناهگـار دي
ملامـــت مـــسلمانان پـــه دغـــه كـــار دي
فـــرض عـــين لپـــاره څـــو دي صـــورتونه
او دا ټــول د فــرض عــين بويــه ډولونــه
لــومړى دا چــې نــه دولــت نــه شــريعت وي
او ړنگ شوى د اسلام لـوى خلافـت وي
نظامونـــه قـــوانين يـــې طـــاغوتي وي
يا يو نه وي كه هـر څـومره اسلامي وي
جهاد فرض شي فرض عين په ټول امت شي
ترڅو يـو يـې حكومـت او خلافـت شـي
د هــر ځــاى خلــك دې پــاڅېږي جهــاد تــه
د امـــت يـــو اتفـــاق او اتحـــاد تـــه

دغــه اوه پنځــوس چــې اوس دي نظامونــه
د اســلام پــه نــوم جــوړ شــوي دولتونــه
ټول لـه مخـې ړنگـول پـه مـونږه فـرض دي
جوړول د يو دولت په مـونږه قـرض دي
قـوانين يـې دي وضـعي ټـول طاغوتـان دي
په دې کار باندې لـه مخـې مرتـدان دي
کــه فرضــا دا ټــول لــه مخــې اســلامي شــي
ړنگول يې په مونږ بيـا هـم لازمـي شـي
پــه اســلام کــې دوه دولتــه نــه ځــايږي
خو چې دوه شي يو کول په مونږ فرضيږي
مــسلمان اســلام ابــاد کــې پــردی نــه دی
په کابل، رياض، بغداد کې پردی نه دی
نــه پــردی دی پــه تهــران يــا انقــرې کــې
نه عمـان او نـه خرطـوم نـه قـاهرې کـې
شرق او غرب دا ټول عالم يـې يـو امـت دی
تور او سپين عرب عجم يې يو امـت دی
نه پاسـپورټ شـته نـه بريدونـه سياسـي شـته
نــه ويــزه نــه بنديزونــه قياســي شــته
اوس جهاد په ټول امت کې فـرض عـين دی
په مونږ پور په مونږه قرض په مونږه دين دی
ترڅــو يــو امــت لپــاره يــو دولــت شــي
يــو اميــر يــو خليفــه يــو خلافــت شــي

چې جهاد نه کړي مجرم دی گوناهگار دی
په یو ډول منافق په دغه کار دی
د جهاد له فرضیته چې منکر شي
بې له شکه په دلیل باندې کافر شي
بل چې فرض عین جهاد دی هغه دا دی
چې حریم باندې تېری له کومې خوا دی
که لوېشت ځمکه د اسلام کافر کړي لاندې
جهاد فرض شي فرض عین په امت باندې
په نږدې خلکو تر لرې ډېر ضرور شي
چې دښمن په تېښته ووځي ترور شي
که نه ټول امت تر هغه گوناهگار دی
چې دښمن ترڅو واکدار په دې دیار دی
بل جهاد په هغه وخت کې فرض عین شي
چې نفیر عام په ټولو باندې دین شي
چې اړین وي او امیر په ټولو غږ کړي
د وتو حکم د هر یو کس تر غوږ کړي
فرض عین شي بیا وتل په ټولو باندې
بیا سنگر ته ځه که ژاړې او که خاندې
فرض عین جهاد په هر چا باندې فرض وي
د لمانځه او د روژې غوندې پرې قرض وي
هم په ژبه جهاد فرض دی هم په لاس دی
هم په ځان او هم په مال هم په احساس دی

پــه قلــم پــه پلــوۍ پــه ملګــرۍ هــم
په ملاتـړ پـه مـشورې پـه همکارۍ هـم
پــه يــو ډول غــاړه نــه خلاصــېږي ګــوره
دا هــر ډول تــر خپــل وســه کــوه وروره
***
# د جهاد احکام
نـه پـه ښـځه جهـاد فـرض نـه پـه نـاروغ دی
جهاد فرض په نارينه او پـه رک روغ دی
نه ړانـده او نـه پـه ګـوډ نـه پـه معـذور شـته
نه ماشوم او په صغير نـه پـه مجبـور شـته
جګــړه نــشته دی پــه ښــځو خــو ســنګر تــه
ښځې تللی شي د جنـګ شـاته ډګـر تـه
لــه جنــګ پرتــه هــره مرســته شــي کــولی
د ســنګر مجاهــدين شــي ښــه پــاللی
چــې پخــه ورتــه ډوډۍ کــړي، اوبــه راوړي
که اړتيـا وي خـس او غنـې سابه راوړي
د ټپــــــي پټــــــۍ دارو او درملنــــــه
شــــي کــــولی د ټپيــــانو ښــــه پالنــــه
بــې پــردې او بــې محرمــه ســفر نــشته
کـه فتنـه وي بيـا حـضور د سـنګر نـشته
چــې د کــومې ښـځې حـيض نـه وي زړه وي
هغه ښـه ده خـو پـه غـړو چـې تکـړه وي

کـه یـوائې کـافر ښـځې هـم راګېـر کـړي

نو کولی شي چې توري نه یې تېر کـړي

لـه خپـل پـت او لـه عزتـه دفـاع فـرض ده

له حـریم ځـان او عفتـه دفـاع فـرض ده

له خپل مال هال او له کـوره دفـاع فـرض ده

له خپل دین، وطن خور وروره دفاع فرض ده

پـه جهـاد کـې د امیـر اطاعـت فـرض دی

په جهاد کې د خپل ورور رعایت فرض دی

خـو طاعـت پـه معـصیت کـې د چـا نـشته

پـه ګونـا او بـد سیرت کـې د چـا نـشته

نـــه غوښـــتل د امـــارت قومانـــدانۍ شـــته

نـه لـه نـورو امتیـاز او ځـان ځـانۍ شـته

د ماشـــوم ښـــځې وژل هـــم نـــاروا دي

د معبـد بـاغ ړنګـول هـم نـاروا دي

چـــې پـــه سـیمه د کـــافرو شـــوې دننـــه

لـــومړی ورکـــړه د اســـلام ورتـــه بلنـــه

کـــه یـــې ومنلـــه تـــا غونـــدې مـــسلم شـــو

ځان او مال یې په امان شـو او سـالم شـو

او کـه نـه نـو بیـا جزیـه ورڅخـه غـواړه

پـه جزیـې بانـدې جګـړه لـه منځـه لاړه

کـه یـې ومنلـه بیـا هـم پـه امـان شـو

ځان او مال یې حفاظت کې له نقصان شو

د جزيــې پــه مقابـل کــې يــې دا حــق دی

امنيــت يــې بيـا پــه مــونږه محقــق دی

د هغـه دفـاع پـه مـونږه بانـدې فـرض شـوه

او ساتنه يې په مونږه باندې قـرض شـوه

جزيــه يــو دينــار يــا دولــس دي درهمــه

سړي سر بـه يــې هـر کـال ورکـوي سـمه

نـه پـه ښځه جزيـه شـته نـه پـه ماشـوم شـته

نه بوډا نه په شل ګوډ نه په معـدوم شـته

بــې وزلانــو نــه جزيــه اخيــستل نــشته

مــسکينان او فقيــران ځــورول نــشته

کـه لـږ ښـه يـې اقتـصاد وي بيـا دوه چنـده

جزيـه واخلـه پـه دې غـاړه نـه ده بنـده

کـه ډېـر ښـه وي بيـا درې چنـده تـر څلـورو

لــه دې پورتــه اجــازه نــشته د نــورو

کـه اسـلام تـه يـا جزيـې تـه نـه ږدي غـاړه

بيــا يــې وژنــه او الله نــه مــدد غــواړه

خــو صــائل او يرغلګــر تــه دعــوت نــشته

بــې وژلــو دې کــافر تــه فرصــت نــشته

ترڅــــو ووځـــي لـــه خـــاورې د اســـلامه

چــې ونــه غورځــوې دا حکـم لـه پامـه

***

# انساني ډال

که کوم کور کې کافران وي یا کوم ځای کې

انسانان يې وي ډال کړي په کوم سرای کې

او ممکن نه و بل ځای کې په دوی برید هم

او یا نه راتلل بل ځای کې ستا په دید هم

او وژل يـــې وو اړيـــن نـــو بـــسم الله کـــړه

دغـه کـار يـواځې فـي سـبيل الله کـړه

اراده بـــه دې پـــه دې کـــې کـــافران وي

نيت هدف به دې يـواځې مجرمـان وي

بـې گونـا خلـک بـه ژغـورې تـر خپـل وسـه

ستا اجرونه به وي زيـات لـه يـو پـه لـسه

***

# استشهادي بریدونه

استـــشهاد د شـــهادت طلـــب تـــه وايـــي

چې شهيد شوې خپلې حورې به دې ستايي

جهـاد ټـول استـشهادي عمـل دی وروره

ثوابونـــو او اجرونـــو تـــه دې گـــوره

پـه جهـاد کـې نـه څـه گـوړې وېـشل کيـږي

نـــه مېـــوې او پتاســـې پکـــې وريـــږي

چـــې ســـرلوړې کلمـــه د الله غـــواړې

په دې لار کې شهادت باندې بـه ويـاړې

فـــدايي بريدونـــه وکـــړه مجاهـــده
فـضيلت کې يې شـک مـه کـوه زاهـده
چې شهيد شوې د جنت حـورې بـه سـتا وي
درجې به دې ښې لـوړې لـه هـر چا وي
ســتا پـه وينــو بــه ســرلوړی مــسلمان شــي
خوار ذليل او مات ميرات به کافران شي
ستا پـه ويـاړ بـه سـتا نـسلونه افتخـار کـړي
ستا سرې وينې به ستا خوږ وطن گلزار کړي
کـافران بــه ځــي دوزخ تــه، تــه جنــت تــه
د الله رضــا نعمـــت هـــر فــضيلت تـــه
اســتقبال تـــه بـــه دې حـــورې وي ولاړې
نه به غم وي نه بـه درد وي نـه بـه ژاړې
د طـــاغوت د غلامــــانو فتــــوې مـــاوره
تـــل د حـــق او حقيقـــت خبــرې واوره
فــدايي بريــد ښــه ســرلوړی شــهادت دی
انتحــار نــه دی دا غــوره عزيمــت دی
چـــې عبــث وي ځـــان وژنـــه انتحـــار دی
پــه اســلام کــې انتحــار نــاروا کــار دی
خـــو د ديـــن د ســـرلوړۍ لپـــاره لاړ شـــه
شـــهادت وغـــواړه پاڅـــه راولاړ شـــه
يـــا مـــوټر کـــې د جنـــت کېنـــه شـــهيد شـــه
يا واسـکټ د جنـت واغونـده رشـيد شـه

د کـافرو مـنځ کـې ځـان ټـوټې ټـوټې کـړه
د کـافرو پلمـې شـنډې او وټـې کـړه
د کــافرو غوښــې وشــینده هــوا کــې
ټینک موټر دفتر جهاز او په بېدیا کې
سـتا ټـوټې ټـوټې بـدن بانـدې بـه ویـاړو
تاتــه جنــة الفــردوس لــه الله غــواړو
ســتا پــه وینــو د اســلام شــمله لــوړېږي
سـتا پـه وینـو د طـاغوت مـاڼۍ نړېږي
واه واه څـومره یـې سـرلوړی ای شـهیده
واه واه څومره یې پیـاوړی ای شـهیده
د هغــوی لپــاره شــرم او پېغــور دی
چې کافر سره دی مل سر یې نسکور دی
چـې تحریـف کـوي نـصوصو د قـرآن کـې
او شـک اچـوي پـه زړه د مـسلمان کـې
ولا تلقــوا بایــدیکم ورتــه وایــي
اِلــی التهلکــه پــه بلــه معنـا سـتایي
پــه صــحیح د بخــاري کــې روایــت دی
نـازل شـوی مـدینې کـې دا آیـت دی
چې اسلام شو کلـه خپـور او فتوحـات شـول
خلک ډېر مسلمانان شو او ښه زیات شول
نــو انــصارو دا خبــره وکــړه وروره
چې جهاد کې مرسته نه کـوو مـونږ نـوره

خلـک ډېـر مـسلمانان شـو هغـوی بـس دي
اوس ښه ډېر مسلمانان دي يو په لس دي
مـونږ بـه کېنـو لـه جهـاده اوس پـه کـور کـې
نور کارونـه بـه کـوو د ديـن پـه زور کـې
پېغمبـر اوس مـونږ تـه نـه لـري حاجـت نـور
مـونږ بـه وګټـو ثـواب پـه عبـادت نـور
پــه انــصارو کــې بيــا دا آيــت نــازل شــو
دا د حق او د باطل منځ کـې فاصـل شـو
لــه جهــاده کېناســتل هــم هلاکــت شــو
په جهاد، مال نه ښندل هـم هلاکـت شـو
لــه دې کــاره الله منــع ټــول انــصار کــړل
ټول روان يې د جهاد پـه سـمه لار کـړل
چــې جهــاد او انفــاق نــه کــړئ هلاکېــږئ
چې په ديـن اتفـاق نـه کـړئ هلاکېـږئ
فـــــدايي حملـــــه روا ده فـــــضيلت دی
پـــه نـــصوصو کـــې راغلـــی دلالـــت دی
پـه جهـاد کـې چـې ليکلـی مـونږ کتـاب دی
هغه وګوره تفصيل يـې پـه دې بـاب دی

# جهاد کې ویاړنې

پـــه جهـــاد کـــې ترانـــې شـــعر ويـــاړنې
ښې دي ښې دي ډېرې مه کوه پوښـتنې

حماســـې او ولـــولې پـــرې راپـــارېږي
ننگ، غيـرت او سلسلې پرې راپارېږي
پېغمبـر ويـل حــسان تــه پــه جومـات کــې
د کــافرو هجـــوه وايـــه التفــات کــې
دا لــه غــشو نــه هــم سـخته پــه هغـوی ده
مونږ ته غوره او کم بختـه پـه هغـوی ده
جبرائيـــل درســـره مـــل دی ای حـــسانه
ای الله مرسـته يــې وکـړې لـه احــسانه
ترانـــې وي جهـــادي او کــــه شـــعرونه
کــه ويــاړنې مقــالې وي، کــه نظمونــه
دا جهـــاد دی پـــه قلـــم او ثوابونـــه
دليلونـــو نـــه يـــې ډک دي کتابونـــه

***

# جهادي انځورونه

انځورونـــــه تــــصويرونه نـــاروا دي
خـــو جهــاد لپــاره ښــه دي او روا دي
جهـــادي فلمونـــه ښـــه او گټـــور دي
په جهاد کې چې شريک دي بختـور دي
د ايــران پــه مقابــل کــې چــې جهــاد و
صـــحابه و چـــې گټلـــی پـــه ميعــاد و
ايرانيـــانو ډېـــر پـــيلان وو راايـــستلي
او د جنــگ لپـاره دوی وو ښــه روزلـي

ترېـدل بــه تــرې اســونه پــه ډګــر کــې
د جهــاد او د ښــندنې پــه ســنګر کــې
صــحابه و تــدبير ونيــوه دې کــار تــه
سوچ يې وکړ يـو ښـه چـل او ابتکـار تـه
خاورو ختو نه راجوړ يـې يـو لـوی پيـل کـړ
او دا پيل يې د اسـونو مخکـې ايـل کـړ
په تور رنګ يې د پيلانـو غونـدې رنـګ کـړ
غيرتيان وو په خپل دين باندې يې ننګ کړ
بيـا دې پيـل سره يـې روږدي کـړل اسـونه
د دښمن ماتې ته جـوړ يـې کـړل چلونـه
بيـا ټـول ووتـل سـنګر د جنـګ ميـدان تـه
لـوی ډګــر د امتحــان او د ايمــان تــه
هر يـو پيـل تـه مقـرر يـې درې کسان کـړل
يو خلتم ته دوه يې سترګو ته عيان کړل
د پيل سترګې به ړندې خلتم به غـوڅ کـړي
د دښمن دغه پلمه او چـل بـه پـڅ کـړي
چـــې اســـونه روږدي شـــوي وو لـــه پيلـــه
نو غورځنګ به يې کاوه پرې بې له ډيله
ايرانـي پوځيـان اختـه پـه واويـلا شـول
ګـډوډي او غلبلـه شـوه پـه غوغـا شـول
دا ړانـده پـيلان پـه خپلـو راسـتانه شـول
خپل يې ووهل پـه خپلـو مېلمانـه شـول

ایران فتح شو او مات ټول مجوسیان شول
په اسلام کې رادننه کافران شول
د پیل بوت دلته روا په دې مقصد شو
کفر مات او کفر بد او کفر رد شو
نو په دې دلیل روا دي انځورونه
د جهاد او هم روا یې دي فلمونه
نور تفصیل یې د جهاد کتاب کې ګورئ
موږ لیکلی د تصویر په باب کې ګورئ
اوسني چې د کېمرو دي تصویرونه
دا بې سیوري او بې جسمه انځورونه
ځینې ځینې علماء یې حلال بولي
او روا یې په هر وخت او هر حال بولي

***

## غنیمت

غنیمت د دښمن مال دی چې حاصل شي
له کافره د جهاد په مقابل شي
د مرتد او محارب مال غنیمت دی
غنیمت سوچه حلال او فضیلت دی
چې دښمن ته په هر ډول نقصان ورکړې
د ثواب په لار به ځان وربرابر کړې
په هر ډول چې وهلی شې وهه یې
د کافر مال غنیمت دی ټولوه یې

خو په نيت کې به دې ماتې د غليم وي
د اسلام د سرلوړۍ به دې تصميم وي
که ميدان کې وي د جنګ که په بينکونو
غنيمت دی د دښمن په دفترونو
دا موټرې او جازونه غنيمت دي
وسايل، وسلې، کورونه غنيمت دي
چې د مټ په زور په جنګ وي غنيمت دی
چې په زوره په غورځنګ وي غنيمت دی
غنيمت کې به پنځمه برخه ورکړې
بيت المال ته به دا سهم برابر کړې
نور څلور برخې په عدل وېشل کېږي
برابرې په غازيانو تقسيمېږي
مجاهد او قوماندان يو برابر دي
اميران او ماموران يو برابر دي
غنيمت د جنګياليو ثابت حق دی
دغه حق په دليلونو محقق دی
چې شريک وي په جهاد او په حملې کې
ټول شريک دي ددې مال په فيصلې کې
چې شريک نه وي حملې او په غورځنګ کې
برخه نه لري په مال ددغه جنګ کې
دا د اس برخې دوه برخې دي حساب کې
د پيدل ده يوه ونډه په کتاب کې

نــور حــساب نــه‌دي يــا اس دی يــا مــوټر دی

اس پــه ټــو لــوکې ا علــی اوبختــور دی

ددې دواړو برخـــه زياتـــه پـــه مـــصرف ده

او ســپرلي يــې اغېزمنــه پــه هــدف ده

دا پنځمــه ده شــريکه بيــت المــال کــې

پــه ټولنــه بــه لګېــږي اعتــدال کــې

پـــه کـــارو اجتمـــاعي بـــه مـــصرفېږي

پـــه جهـــاد او مجاهـــدو بـــه لګېـــږي

کــه چــا وکــړه درغلــي پــه غنيمــت کــې

د دوزخ اور ته به ځي په دې خيانت کې

***

# فـــئ

فــئ بــې جنګــه او بــې ډزه ډوزه مــال دی

حاصل شوی له دښـمنه بې جنجـال دی

نــه پــرې ســتړی مجاهــد دی نــه ســتومانه

نــه خولــه ده پــرې وتلــې لــه هيچــا نــه

د فـــئ مـــال د بيـــت المـــال اجتمـــاعي دی

د جهـــاد او مجاهـــد او دفـــاعي دی

مجاهـــد تـــه پـــه انعـــام ورکـــول کېـــږي

پــه اړتيــا د مجاهــد هــم مــصرفېږي

د جهـــاد ضـــرورتونو کـــې لګېـــږي

د اســير او د شــهيد کــور تــه رســېږي

د پیـاوړي مجاهــد کــور تــه یــې ورکــړه
ښــې وسلې او وسائل پـرې برابـر کـړه
د فـئ مـال بــه ښــه پــه عــدل تقــسیمېږي
داسې نه چې د امیر جیب تـرې ډکېـږي

✵✵✵

# دښمن اسیر نیول

اســیران چـــې لــه دښــمنه نیــول کېـږي
کلـک یــې وتـړه کـه نـه نـو بیـا تـښتېږي
دا څلــور حکمونــه یــاد لــره اســیر کــې
چـې راغلـي ددې حکـم پـه تفـسیر کـې
یـا فدیـه د مـال تـرې واخلـه بیـا یـې پرېـږده
یا یې ووژنـه پـه څـټ یـې تـوره کېـږده
یـا آزاد کـړه پـرې بنـدیان د دوی بـدل کـې
یا احسان وربانـدې وکـړه پـه عمـل کـې
بــې فــدیې او بــې بدلــه یــې آزاد کــړه
که څه ګټه پکې وه نو زړه یې ښـاد کـړه
چـــې اســـلام او مـــسلمان تـــه ګټـــور و
هغــه وکــړه چــې بېخــي ښــه بختــور و

# د مسلمانانو بندیان راازادول

کــه دښــمن ســره بنــدیان مــسلمانان وي
زولنــو او پــه زنــدان کــې اسـیران وي

د هغــوی د کــور پالنــه پــه مــونږ حــق دی
هم دروغ ناروغ پوښتنه په مونږ حق دی
د هغــوی ازادول هــم پــه مــونږ فــرض دي
په مونږ پور دی، خا مخا په مونږه قرض دي
تر خپل وسه به کوښښ کړو چې ازاد شي
د بچـو او د خپلوانـو زړه یـې ښاد شـي
که په زور وي که په برید وي که په مـال وي
پـه نیولـو د دښـمن کـه پـه جنجـال وي
د اســـیر تبـــادلې بانـــدې کـــه کېـــږي
مـــسلمان بـــه خامخـــا راازادېـــږي

✻✻✻

# د جاسوس وژل

چې دښـمن سـره ملاتـړ کـوي جاسـوس وي
بــې غېرتــه او بــې پتــه وي دووس وي
کــه پــه نــوم د مــسلمان وي هــم مرتــد دی
که عرب وي که عجم وي هـم مرتـد دی
معلومـات ورڅخـه واخلـه بیـا یـې مـړ کـړه
پــه ثــابتو دلیلونــو یــې ښــه پــړ کــړه
خــو پــه شـک بانـدې نیـول یـې نـاروا دي
بـــې دلیلـــه هـــم وژل یـــې نـــاروا دي
پـــه دلیـــل او قرائنـــو یـــې راګیـــر کـــړه
چې ثابته شوه له تورې نه یـې تېـر کـړه

هــسې شــک بانــدې وهــل هــم نــاروا دي
او پـه شـک يـې ځـورول هـم نـاروا دي

***

# جزيه او ذميان

ذميــان هغــه کــافران دي پــه اســلام کــې
چې ژوند غواړي امنيت او په سلام کې
د اســلام د حکومــت ســره تــړون کــې
ژوندون غواړي د احکامو په سمون کې
د اســلام د قــانون لانــدې بــه اوســېږي
د اسلام حـدود بـه ټـول پـرې نافـذېږي
نــاروا تــصرفات بــه نــه کــړي مــال کــې
د اسلام سپکه به نه غواړي هيڅ حال کې
د اســلام د شــعائرو بــه عــزت کــړي
نـه بـه سـود نـه د حرامـو تجـارت کـړي
د اسـلام خـلاف بـه نـه د چـا نـصرت کـړي
نه بـه چاتـه جاسوسـي نـه خباثـت کـړي
حفاظـت د دوی د ځـان دی کـه د مـال دی
د اسلام په حکومـت پـه دغـه حـال دی
نــاروا بلوســه د دوی پــه مــال او ځــان ده
او ســاتنه يــې پــه هــر يــو مــسلمان ده
خــو د دوی د امنيــت بــدل کــې مــال دی
چې مقدار يې دی معلوم او کال په کال دی

دا جزيـــه ده لـــږ تـــر لـــږه يـــو دينـــار دی
پـه هر کس چې نارينه وي دا مقـدار دی
نه پـه ښځو جزيـه شـته نـه پـه ماشـوم شـته
نه غلام وينځې او نه د معلـول نـوم شـته
نـه نـاروغ بانـدې دا شـته چـې لاعـلاج وي
نــه هغــه چــې لېـونی د چـا مـزاج وي
يـــو دينـــار دی او يـــا دولـــس دي درهمـــه
ورکـوي بـه يـې هـر کـال بـې لـه کړمـه
تـــر څلـــورو دينـــارونو اخيـــستل شـــته
تـر څلوېښتو هـم درهمـه ورکـول شـته
کـه مـالي حيثيـت کمـزوری وي دينـار دی
که لږ ښه وي دوه او درې څلور يې وار دی
چـې اسـلام راوړي او ښـه سـم مـسلمان شـي
جزيه نـشته مـشرف چـې پـه ايمـان شـي
ذمــه ماتــه شــي چــې نــه منــي احکــام هــم
يـا جزيـه نـه ورکـوي نـه کـوي پـام هـم
يـا څـه سـپکه د اسـلام يـا مـسلمان کـړي
د الله يـا پيغمبـر ديـن او قـرآن کـړي
يـــا وژل د مـــسلمان او يـــا زنـــا کـــړي
مـــسلماني ســـره يـــا فتنـــه رســـوا کـــړي
يـــا نکـــاح لـــه مـــسلماني ســـره کانـــدي
يا لواط کړي يا اسلام پورې دی خاندي

یـا هـم لارې شـوکوي یـا اختطـاف کـړي
یـا لــه عقــد او تړونــه انحــراف کــړي
یـا اسـلام او مـسلمان خـلاف جاسـوس شـي
یا جاسوس ته پنا ورکـړي او دووس شـي
ذمــه ماتـــه ده دې ټولـــو صـــورتو کـــې
حـــسابېږي لــه تړونـــه پـــه وتـــو کـــې

***

## مستأمن

کوم کافر چې امن غواړي او جنـګ نـه کـړي
او ملاتــړ د کــافرانو او ننــګ نــه کــړي
مــــستأمن دی او د امــــن طلبګـــار دی
د ســـلام او د امـــان پـــه انتظـــار دی
پنـــا راوړي د اســـلام لانـــدې اوســـېږي
پــاتې کېـږي نــه او بېرتــه بیــا ستنېږي
لــه هغــه ســره جنــګ نــشته پــه اسـلام کـې
هغه کور تـه ورشـېوه کـړه پـه سلام کـې
مــستأمن ســره نــه تــوپ وي نــه جازونــه
نه ټوپـک وي نـه وسـله وي نـه پوځونـه
نــه بــادار وي نــه هغــه ســره قیــادت وي
بلکې ټیټ وي او محکوم او په ذلت وي
نــه ضــرر رســوي کــوم یــو مــسلمان تــه
نه یې دین ته نه یې پت عزت مال ځان ته

نـه د چـا پـسې کـوم گـواښ تـه وي راغلـی
هیڅ شر نه غواړي او ناست وي غلی غلی
ږدي غوږونـه د اسـلام ښـکلي دعـوت تـه
په هېڅ ډول زیان یې نه وي دې امت ته
مـستأمن بانـدې حـدود هـم نافـذېږي
شریعت به د اسلام پـرې جـاري کېږي
نـه حـرام عقـود کـولی نـه د سـود شـي
کـه کـوي سـرغړونه بیـا مـردود شـي
***

# هـجـرت

هجـرت وایـي پرېـښودلو د وطـن تـه
د خپل پـلار نیکـه ټاټوبي او مـدفن تـه
خـو لپـاره د الله دا پرېـښودل وي
دین ژغورل یې وي هدف هجرت کول وي
په کوم ځای کې چې څوک دین نه شي ساتلی
په خپل دین باندې عمل نه شي کـولی
نظامونـه طـاغوتي قـانون وضـعي وي
پـه هـر چـا بانـدې نافـذ اجتمـاعي وي
لـه قانونـه بـچ کېـدل ورتـه محـال وي
په اسلام بـشپړ عمـل ورتـه جنجـال وي
بیـا هجـرت کـول دي فـرض لـه دغـه ځایـه
وطن پرېږده سلام وایـه پـرې لـه ورایـه

ټولــه ځمکـــه د الله ده او بيـــا ســـتا ده
ځمکــه ټولــه ده شــريکه د هــر چــا ده
د روزۍ کــار پــاک الله تــه ښــه اســان دی
غــم يــې مــه کــوه الله روزي رســان دی
پــه هجــرت کــې دي حــلال غنيمتونــه
پــاک الله بــه درتــه درکــړي نعمتونــه
پـه ښـه نيـت هجـرت کولـو کـې عـزت دی
پـه هجـرت کـې کرامـت او سـعادت دی
پــه هجــرت کــې مړينــه اجــر او ثــواب دی
هجــرت ښــه روزنــه، علــم او کتــاب دی
هجــرت دوه ډولــه دی يــو دارالامــان تــه
دارالکفــر تــه خــو امــن او امــان تــه
داسې ځای ته چې ستا دين ته خطر نـه وي
سـتا عـزت او کرامـت تـه ضـرر نـه وي
لکــه کــړی حبــشې تــه چــې هجــرت و
صـــحابه و لـــه مکـــې مجبوريـــت و
بـل هجـرت دارالاسـلام تـه پـه عـزت دی
چې نافـذ چېرتـه اسـلام او شـريعت دی
هجـرت فـرض دی هجـرت نـه کـول گونـا ده
پــه قــرآن کــې پــرې راغلــې داوينــا ده
چــې هجـرت کـول د چـا پـه وس کـې نـه وي
گونـا نـشته چـې ريـښتيني او درانـه وي

خو چې وس يې وي او نه کوي هجرت بيا
حسابېږي ظلم کفر دا صفت بيا
مدينې ته و هجرت دارالاسلام ته
د اسلام بشکلي دولت او انتظام ته
بېرته تلل دارالامان څخه روا دي
ستنېدل دارالاسلام نه ناروا دي
پاکستان کې انګرېزي ټول قوانين دي
او چار و اکي يې له مخې مرتدين دي
پاکستان اوس دارالحرب دی برملا دی
له اسلام سره په جنګ کې هويدا دی
امريکا سره ولاړ دی په دې جنګ کې
د کافرو دې ټلوالې سره څنګ کې
ړنګوي اوس مدرسې او جوماتونه
نړوي د مېړنيو جوړ کورونه
حافظان او طالبان وژني مرتد دی
عالمان مسلمانان وژني مرتد دی
د وطن او دين او پت عزت دښمن دی
د قرآن او شريعت عفت دښمن دی
اسلامي امارت ړنګ کړ مرتدانو
شريعت او امت ړنګ کړ مرتدانو
پاکستان څخه هجرت کوه که نر يې
په حکمونو د اسلام که برابر يې

قبــائلو تـــه ورځـــه چـــې توريـــالي دي
ميړنـــي او پتيـــالي او ننګيـــالي دي
هجـــرت هـــسې نـــه دی لاره د جهـــاد ده
د امـــــت د اتفـــــاق او اتحـــــاد ده
هجــرت وکــړه بيــا مــلا وتــړه جهــاد تــه
آزادۍ د اســلامي امــت هېــواد تــه
لــر او بــر دا هېوادونــه ســره يــو کــړه
دا قومونــه او دودونــه ســره يــو کــړه
دا د يــو امــت ټــول غــړي ســره يــو کــړه
ټول پياوړي کړه اومړي سره يو کړه
دا نــړۍ بــه شـــي روښـــانه او ودانـــه
دا وړۍ بــه دې شــړۍ شــي مــسلمانه
متـې ونغــاړه راځــه چــې ســره درومــو
ځان کړو خلاص د بې وسۍ له دغو لومو
لاس تر زنې به څو ناست يې دې ناورين ته
راستون برم کړه امت او دې خپل دين ته
ســتا نــسلونه او ځېلــۍ بــه پــه تــا ويــاړي
تاريخونــه پرګنــۍ بــه پــه تــا ويــاړي
پــت، عــزت او کرامــت بــه واړه ســتا وي
دا دنيــا او آخــرت بــه واړه ســتا وي
که دا نه کوې لوړ سر به دې نسکور شي
خړې سترګې به درپاتې لوی پېغور شي

ټــول نــسلونه بــه لعنــت دربانــدې وايــي

تاريخونــه بــه لعنــت دربانــدې وايــي

***

# سياست او حکومت

پــه اسـلام کــې سياسـت ټـول عـدالت دی

د قـــرآن او د حـــديثو حکومـــت دی

دغـــه ځمکـــه کائنـــات ټـــول د الله دي

مخلوقـات او موجـودات ټـول د الله دي

د الله تکـــويني حکـــم تـــل جـــاري دی

پــه دې ټولــو کائنــاتو تــل حــاوي دی

تـــشريعي حکـــم بـــه هـــم تـــل د الله وي

په دې ځمکــې بـه قـانون کتـاب الله وي

دا وضــعي چـــې قـــوانين او طاغوتـــان دي

او لاســـپوڅي د کـــافرو ګوډاګيـــان دي

چې په دې قـانون ژونـدون کـوي کـافر دی

چــې نفـاذ ددې قـانون کـوي کـافر دی

دوی تــه پرېکــړې وروړل کفــر ارتــداد د ی

په مونږ فرض عين د دوی خلاف جهاد دی

په اسـلام چـې حکـم نـه کـړي نـو کـافر دی

هم ظالم دی هم فاسق او هـم فـاجر دی

لــه اســلامه چــې خــلاف کومــه جرگــه وي
د عربـــو یـــا عجمـــو فیـــصله وي
دا هــم کفــر دی کــوونکی یــې کــافر دی
که مني یې څوک منونکی یې کافر دی
پــه اســلام کــې نــه شــاهي ملوکیــت شــته
نه بې توله سر شمېرونکی جمهوریت شته
پــه اسلام کــې چــې نظــام دی خلافــت دی
دا د عـــدل امـــارت او سیاســـت دی

# د خلیفه شرطونه

خلیفه به پـــه شرطونو بـــــــــــرابر وي
هم عاقل هــم مــسلمان او هــم بــه نــر وي
هــم د دیــن پــه ضــروریاتو بــه عــالم وي
نه به ښځه، نــه جاهــل، نــه بــه ظــالم وي
د بــدن روغتیــا یــې دومــره کفایــت کــړي
چې کارونه د دولت په ښه صــورت کــړي
داسې عیب به پکــې نــه وي چــې دا خنــډ شــي
د نظام او بیــا د خلکــو پــه ســر پنــډ شــي
اداره بـــــه یـــــې غـــــښتلې وي پیـــــاوړې
نــه بــه سسته وي بــې غــوره نــه او مــړې
غـــلام نـــه وي او ازاد وي ارادې کـــې
تــوپیر نــه لــري پــه لــرې او نــږدې کــې

ټول قانون به يې کړه پوره اسلام وي
عدالت به ټول امت لپاره عام وي
نه به کوم وضعي قانون باندې عمل وي
نه به کفر او کافرو سره مل وي
په غوښتنو به د عدل ښه پوره وي
ټول نظام به د ښېګړو ښه کره وي
امنيت به وي قائم په ټول امت کې
او انصاف به وي دائم په ټول دولت کې
قرشي که په شرطونو برابر وي
خلافت به د هغه په ښه مظهر وي
خو که نه وي قرشي يا ناصالح وي
لياقت ورسره نه وي اوطالح وي
نو بيا شرط د قرشي ضروري نه دی
ځکه کار د خلافت سرسري نه دی
د عرب او د عجم شرط پکې نشته
هم تر ټولو د اعلم شرط پکې نشته

***

## د خليفه ټاکنه

د جرګې خلک به خپلو کې راټول شي
چې ټاکل د خليفه د دوی په تول شي

چـې لایـق وي د خبـرې هوښـیاران وي
مؤمنـان وي امینـان وي صـالحان وي
خیـر غوښـتونکي او خواخـوږي د امـت وي
او پـوره پـه تـول د عـدل او غیـرت وي
هــم شــرطونه د امیــر ورتــه معلــوم وي
د خبــرو ښــه تعبیــر ورتــه معلــوم وي
یـو امیـر بـه مـشورې بانـدې معلـوم کـړي
او نااهله بـه لـه دې کـاره محـروم کـړي

***

# بیعت

د امیـر سـره بـه ټـول امـت بیعـت کـړي
دغه کار به په اخلاص او په ښه نیت کړي
هـم پـه لاس بانـدې بیعـت کـول روا دي
هـم خبـر لیـږل او لیـک لیـږل روا دي
ښـــځینه لپـــاره لاس ورکـــول نـــشته
بیعـت ژمنـه ده پـه دې څـه ګـټـل نـشته

***

# د امیر او رعیت حقوق

د امیـر حـق پـه امـت بانـدې طاعـت دی
ښـو کـارونو کـې طاعـت یـو عبـادت دی

نـــاروا كـــې د اميـــر څـــه طاعـــت نـــشته

پــه اســلام كــې نــاروا امــارت نــشته

چــې جهـاد تــه دې وربــولي هــم بــه درومــې

چې امداد ته دې وربولي هم به درومې

وركـــوې بـــه خلافـــت تـــه زكاتونـــه

په اسـلام كـې پـه تـا نـشته نـور ټكسونه

زكــات بېرتــه وېــشل كېــږي پــه خوارانــو

پــه غريبــو، مــسكينانو، بــې وزلانــو

رعيـــت هـــم پـــه اميـــر لـــري حقونـــه

چې په امن، پت او مال وي هـم سـرونه

د هر چا حق به خونـدي وي پـه اسلام كـې

په امت به تل ښادي وي پـه اسـلام كـې

ظالمـــان بـــه لـــه نـــړۍ څخـــه وركېـــږي

د مظلـوم حـق بـه ظـالم نـه راشـوكېږي

د هـــر چـــا ورځ تـــه بـــه عـــدل وررســـېږي

او انـصاف بـه وړيـا هـر چـا سـره كېـږي

پــه هــر چــا بــه ســوكالي او خوشــحالي وي

حكومـت بـه لـه فـساد څخـه خـالي وي

د هر چا ونـډه بـه وي پـه بيـت المـال كـې

د تقسيم توپير به نه وي په دې مال كـې

د امیــــر او د مـــامور تـــوپیر بـــه نـــه وي
د بـادار او د مـزدور تـوپیر بـه نـه وي
د صـحت، کـار او تعلـیم حـق پـه امـام دی
د کره تنظیم تـصمیم حـق پـه امام دی

***

## یو دولت

کـــه وګـــړي د نـــړۍ مـــسلمانان شـــي
دغــه واړه د اســلام پــه لار روان شــي
ګـرده ځمکـه او نـړۍ بـه یـو دولـت وي
ددې یـو امـت بـه یـو سم خلافـت وي
نـــه د اګـــڼ حکومتونـــه شـــته اســـلام کـــې
نه بې شمېره دولتونـه شـته اسـلام کـې
دوه دولتـــه پـــه اســـلام کـــې نـــه ځـــایېږي
دوه امتـه پـه اسـلام کـې نـه ځـایېږي
یـو امـت او یـو دولـت دی پـه اسـلام کـې
یو امـام یـو خلافـت دی پـه اسـلام کـې
چـــې موجـــود یـــو خلیفـــه او یـــو امـــام وي
او نافـذ دا ټـول حکمونـه د اسـلام وي
او دویـــم کـــوم خلیفـــه چېرتـــه پیـــدا شـــي
په کوم ګـوټ کـې د نـړۍ رابـرملا شـي

دا دویــم بــه پــه اســلام کــې وژل کېــږي
دا امــت بــه تفــرق نــه ســاتل کېــږي
دا نــــړۍ ټولـــه شـــریکه یـــو وطـــن دی
دا د هر انسان یو کـور او یـو مـدفن دی
په اسلام کې نه پاسپورټ او نـه بنـدیز شـته
نه توپیر د کـوم ختیـز او د لوېـدیز شـته
هیڅ انسان په دې نـړۍ کـې پـردی نـه دی
مسلمان په دې نړۍ کـې پـردی نـه دی
رنـــګ او ژبـــه ده کـــه نـــسل قومیـــت دی
تــوپیر نــه لــري یــو رنــګ انــسانیت دی
پــه اســلام کــې د عــزت معیــار تقــویٰ ده
د حرمــت او شــرافت معیــار تقــویٰ ده
دغــه اوه پنځــوس چــې اوس دي دولتونــه
او پـــه نـــوم دي د اســـلام حکومتونـــه
دغــه ټــول بــه ړنګــوو چــې ســره یــو شــي
دغـه ټـول بـه نـړوو چـې سـره یـو شـي
دغـــه زېرمـــې معدنونـــه ټـــول شـــریک دي
تېل او زر کانې لالونـه ټـول شـریک دي

***

## خروج علی الامام

چـــې امـــام او خلیفـــه کلـــه عـــادل وي
پـه احکـامو د اسـلام بانـدې عامـل وي

پــه شــرطونو د اســلام ښــه برابــر وي
او د عــزل لــه شــرطونو نــه بهــر وي
د هغـــه خـــلاف وتـــل هـــم نـــاروا دي
او طاعـت يـې پرېښودل هـم نـاروا دي
د امـــام خـــلاف پـــاڅون هـــم نـــاروا دی
د امير خـلاف كـوم يـون هـم نـاروا دی
خو دا اوه پنځوس چې اوس كوم اميران دي
پاچايـــان او رئيـــسان ولسمـــشران دي
دغــــه واړه كــــافران او مرتــــدان دي
دا لـه څېرمـه لـه اسـلام كـاږه روان دي
نـه پـه دوی كـې خليفـه نـه كـوم امام شـته
نه په دوی كې څه ايمان او څه اسلام شته
پـه دې ټولـو راوتـل پـه مـونږه فـرض دي
ددې ټولو ړنگـول پـه مـونږه قـرض دي
كـه دا ټـول مـسلمانان شـي هـم بـه نـه وي
كه دا ټول ښه عادلان شي هم بـه نـه وي
مــونږ د دوی خــلاف جهــاد كــوو را اوځــو
اتفـــاق او اتحـــاد كـــوو را اوځـــو
ايـــستانونه دولتونـــه بـــه ټـــول ړنـــگ كـــړو
قوانين او دا ازمونه بـه ټـول ړنـگ كـړو
تر هغـې بـه مـونږ جنگېږو چـې يـو نـه شـي
مونږ د دوی خلاف يو كېږو چې يو نه شي

دغــه ټــول دي طاغوتــان، امامــان نــه دي
دغه ټول دي شيطانان، اميـران نـه دي
اســتعمار چـــې دا بريدونـــه دي ټـــاکلي
دغـــه ټـــول دې طاغوتـــانو دي منلـــي
دا ملـــل متحـــد چـــې کـــوم يـــادېږي
او ملگـــري ملتونـــه بلـــل کېـــږي
دا د ظلـــــــم او د کفـــــــر اداره ده
د سرکـــشو طاغوتـــانو مجموعـــه ده
دې تـــه غـــاړه اېـــښودل دي نـــړه کفـــر
دا منـل دې تـه ورتلـل دي نـړه کفـر

# د امام سقوط او د عزل شرطونه

امامـــت او خلافـــت تـــه نـــه مـــوده شـــته
نــه ټــاکلې کومــه لنــډه او اوږده شــته
نـــه ميـــراث دی خلافـــت نـــه پاچـــايي ده
نـه څـو کالـه جمهوريـت او رسـوايي ده
خلافـــت نـــه امتيـــاز نـــه فـــضيلت دی
دا کـره پـوره د عـدل مـسئوليت دی
کـه سـهار څـوک پـه شـرطونو ټاکـل کېـږي
مـازيگر بيـا پـه شـرطونو معزولېـږي
چـــې د عـــدل پـــه غوښـــتنو برابـــر وي
پـه مـسند د امامـت بـه مـستقر وي

کــه د عــزل شــرط شــرطونه پکــې راشــي
بيـا سـاقط شـي امامـت څخـه جـلا شـي
هــم پــه مړينــې امامــت څخــه غــورځېږي
چــې مرتــد شــي امامــت يــې ســاقطېږي

***

# امر بالمعروف او نهی عن المنكر

معـــروف هغـــه ښـــه کارونـــه بلـــل کيـــږي
چې اسلام کې په ښه نوم باندې يادېږي
او منکـــــر هغـــــه گونـــــااو نـــــاروا دي
چــې اســلام کــې ډېــر نــاوړه ناصـفا دي
پـــه نېکيـــو بانـــدې امـــر کـــول فـــرض دي
دا پـه مـونږ مـسلمانانو بانـدې قـرض دي
يــو تــر بلــه پــه حکمـت بانـدې دعـوت دی
په همدې کې د انسان لوی مصلحت دی
د غلـــط کـــار مخنيـــوی اول پـــه لاس دی
کـه وس نـه وي بيـا د ژبـې التمـاس دی
که وس نه وي بيـا پـه زړه بانـدې انکـار دی
او د زړه د کرکې، مخ بانـدې اظهـار دی
سـتا پـه مـخ بـه د انکـار نـښې ښـکاره وي
کــه دا نــه وي بيــا بــه نهــې نــاکره وي
کــه پــه زړه هــم انکــار نــه کــوي کــافر دی
لــه ايمــان څخــه دبانــدې مــستقر دی

***

# وصيت

وصــيت حكــم دى د مــال يــا د اموالــو
د مالـک لـه مړينـې وروسـته د احوالـو
دا مـــشروعه طريقـــه ده كلـــه فـــرض وي
لكه وي حق، امانـت يـا د چـا قـرض وي
كلـــه وي دا مـــستحب كلـــه حـــرام وي
يا مكروه وي يا مباح ورتـه دې پـام وي
محتاجـــانو تـــه دا ښـــه او مـــستحب دى
د ثـــواب او د بـــښنې دا ســـبب دى
چـــې ضـــرر وي وارثـــانو تـــه حـــرام دى
چې مال لږ وي بيا مكروه په دې مقام دى
لـه دې پرتـه عـام وصـيت كـول مبـاح دي
د روا او د صـــــلاح او د فـــــلاح دي
په دريمې برخې مال كـې وصـيت سم دى
له دريمې نه چې زيات وي بيا ناسم دى
د وارث لپـــــاره نـــــشته وصـــــيتونه
نـاروا دي پـه وصـيت كـې خيانتونـه
د وصــيت لپــاره شــرط يــو اهليــت دى
اختيـار عقـل او بلـوغ دى حريـت دى

قاتــل نـــه وړي ميراثونـــه لـــه مقتولـــه
هــم وصــيت هغـه تـه نـشته لـه مدلولـه
وصيت هغه مال کې کېږي چې کوم ستا وي
او قابــــل د ورکولـــــو بــــــرملا وي

***

# فرائض

فــرائض د ميــراث علــم دی اســلام کــې
د هــر چــا ونــډه معلومــه ده نظــام کــې
د ميـــراث د علـــم زده کـــړه ضـــروري ده
جهالــت لــه ســمې لاري بــې لارې ده

***

# تــرکه

مـــړۀ نـــه پـــاتې مـــال حقونـــه ترکـــه ده
کـه خـوږه ترخـه تـروه ده کـه پيکـه ده
ترکـــې پـــورې اړونـــد څلـــور حقـــوق دي
پـه دليـل او پـه بـاور او پـه وثـوق دي
لــومړی حــق تــر ټولــو مخکــې دا تکفــين دی
دا کفن مفـن تجهيـز او هـم تـدفين دی
دويـــم حـــق پکـــې د پـــور لنـــډول بويـــه
د الله او د بنــــــده ورکـــــوه زويــــــه

لکــه واخلــې یــا زکــات یــا کفــاره ده
حــج یـا نـذر یـا د چـا د پـور چـاره ده
درېیم حـق پکـې وصـیت پـوره کـول دي
له درېیمـې برخـې مـال نـه ورکـول دي
څلــورم حـــق دی تقـــسیم پـــه وارثـــانو
چــې معلــوم دی پــه اســلام د مؤمنــانو
❋❋❋

# د ورونو خوېندو ډولونه

ورونـه خوېنـدې چـې سـکه وي اعیـاني دي
چـې یـواځې وي لـه پـلاره علاتـي دي
اخیــافي دي چــې یــواځې وي لــه مــوره
رضاعي میراث کې نـه دي حـساب گـوره

# د میراث اسباب

د میـــراث چـــې لاملونـــه او اســـباب دي
هغه درې دي چې راغلي پـه کتـاب دي
یـــو نکـــاح او بـــل ولاء او بـــل نـــسب دی
دا هر یـو د میـراث وړلـو یـو سبب دی
❋❋❋

# د میراث موانع

موانع د میـراث درې دي هـر یـو صـاف دی
غلامـي، وژل او دیـن کـې اخـتلاف دی

***

# د میراث ارکان

د میراث ارکان دي درې دا یې مبحوث دی
یو وارث دی یو مُورِث یو یې موروث دی

***

# د میراث شرطونه

د میراث شرطونه درې دي یو یې مړینه
د مورِث ده یا چې ورک وي له یقینه
دویم شرط ژوند د وارث دی چې ژوندی وي
د مورث له مړینې وروسته ګړندی وي
د مور خېټې کې ژوندی وي یا دبانده
دا وارث دی که ته ژاړې او که خانده
درېیم دا چې د میراث موانع نه وي
مخکې یاد شو له هغو کوم مانع نه وي

***

# د میراث مستحقین

د میراث مستحقین یا نارینه وي
ګڼل کېږي وارثان یا ښځینه وي
نارینه وارثان لس دي په کتاب کې
چې راغلي شریعت کې په دې باب کې
اول زوی دی د زوی زوی یې دویم بوله
پسې ښکته لاندې ځه له دغه توله

دريـيم پـلار دی ځلـورم نيکـه حـساب دی
پسې پورته په همدې ترتيب ځواب دی
پـنځم ورور لـه پـلار او مـوره ورسـره کـړه
يا له پـلاره يـا لـه مـوره هـم پـوره کـړه
دا شپږم يې دی وراره چې زوی د ورور وي
او دا ورور دې د پلار زوی وي ستا له کور وي
اوم يـې تـره دی اتـم تـره زوی پکـې بويـه
چې نـسب يـې وي لـه پـلاره زمـا زويـه
بـل ځـښتن، خاونـد مېـړه پکـې نهـم دی
بـل بـادار ازادوونکـی يــې لــسم دی
پــه شــمېر اوه دي دا لــه ښــځو وارثــانې
لومړۍ لور ده د زوی لور دويمـه گرانـې
او دريیمــه دا ســتا مــور ده پــه تــا بــوره
څلورمــه دا ســتا ښــځه ده مجبــوره
پـه دې شـمېر کـې بيـا نيـا وگڼـه پنځمـه
بيـــا د چـــا ازادوونکـــې ده شـــپږمه
اوومه خـور ده چـې لـه پـلاره وي لـه مـوره
يـا لـه پـلاره يـا لـه مـوره وي سـرتوره
په درې ډوله پـه لـوی وړش دا وارثـان دي
يو ذوی الفـروض د ونـډو خاونـدان دي
دا هغـه دي چـې معلـومې يـې دي ونـډې
په قـرآن کـې د هـر چـا خپلـې برغنـډې

دویـــم ډول عـــصبه دي پـــه ســـبب کـــې
چې له پلار او له نیکه وي په نـسب کـې
درېـــیم ډول ددې هـــم ذوی الارحـــام دي
چې کتار کې د خپلـوۍ پـه انتظام دي
عـــصبه ذوی الفـــروض نـــه چـــې دي پرتـــه
دا خپلوان ذوی الارحام دي لـه صحته
ځینـې نـه ګڼـي ذوی الارحـام پـه دې کـې
دا لومړي دوه ډوله بولي دې نړدې کـې

***

# د میراث ونډې

پـه قـرآن کـې چـې راغلـي کـومې ونـډې
هغه شـپږ ډولـه دي لـرې وي کـه لنـډې
نیمـــه بولـــه څلورمـــه هـــم اتمـــه
بلـــه وبولـــه درېیمـــه او شـــپږمه
دوه درېیمـــې یـــې شـــپږم ډول پـــوره شـــو
دا حساب په دې ترتیب باندې کـره شـو

***

# ذوی الفروض

دا ذوی الفـــروض دي دولـــس لـــه حـــسابه
نارینـــه پکـــې څلـــور ګڼـــه ګلابـــه
یو یې پلار دی بل نیکه که هـر څـو لـوړ وي
بل یې ورور له موره بل مېړه چې ور وي

بنـــځینه پکـــې اتـــه دي یـــوه مـــور ده
بلــه بنــځه بلــه لــور پکــې د کــور ده
بلـه خــور ده هــم لـه مــوره هــم لــه پــلاره
بلـه خـور لـه پـلاره بیـا لـه مـوره گـوره
بلـــه لـــور د زوی ده بلـــه نیـــا حـــساب ده
که څه پورتـه وي هـم دا ددغـه بـاب ده

***

# د پلار حالات

د پلار درې حالاته بویـه یـو یـې فـرض دی
بل تعصیب دی درییم دواړه سره عرض دی
نارینـــه وارث کـــه پـــلار ســـره موجـــود وي
توپیر نشته یو که ډېر د دوی وجـود وي
په دې حال کې یې شپږمه ده پـه فـرض کـې
دا لومړی حالت حساب شو په دې عرض کې
کـــه لـــه پـــلاره ســـره فرعـــه وارث نـــه وي
نارینـــه او بنـــځینه یـــې حـــادث نـــه وي
که یوائې وي ټول مال یې په تعـصیب دی
که فروض وي نو باقي یې خپل نصیب دی
درییم حال یې هم د فرض هم د تعصیب دی
دا یې برخې دي مالدار دی که غریب دی
هغـــه دا چـــې دغـــه پـــلار ســـره وارث وي
دغـــه فرعـــه بنـــځینه دلتـــه لابـــث وي

په دې حال کې يې په فرض شپږمه بويه
پـروا نـه کـوي وړه وي او کـه لويـه
بيا چې پاتې لـه فروضـو نـه کـوم مـال شـي
په تعصيب ددغه پلار په دغه حـال شـي
***

# د نيکه حالات

نيکـه دوه ډولـه دی يـو نيکـه صـحيح دی
بنځينه چې منځ کې نه وي دا صريح دی
دا د پـلار پـلار دی او يـا لـه هغـه لـوړ دی
پـه صـحيح نيکـه يـادېږي ددې ور دی
بـل فاسـد نيکـه چـې مـنځ کـې بنـځينه وي
لکه واخلې د مور پـلار چـې مـستانه وي
د صـــحيح نيکـــه شـــپږمه برخـــه بويـــه
او شـــپږمه هـــم ډالـــۍ ورکـــوه لويـــه
چې پـلار وي نـو د نيکـه ميـراث ساقط دی
که پلار نه وي بيا نيکـه دلتـه رابـط دی
خـــو تـــوپير يـــې څلـــور ځايـــه دی راغلـــی
د ميـــراث پـــه کتـــابونو کـــې ليکلـــی
اول دا چـې پـلار ژونـدی کلـه موجـود وي
نو د پلار د مور ميراث ساقط له جود وي
خو که پلار نه وي نيکـه وي نـو د پـلار مـور
بيا ميراث وړي دې نيکه سره په خپل کور

دويم دا چې لـه مړه پاتې مـور او پـلار وي
او مېړه ښـځه هـم پـاتې پـه دې لار وي
نـو لـه فـرض د مېړه ښځې چې شـي پـاتې
دا درېيمــه بــه يــې مــور لپــاره ســاتې
خو كه پلار په ځاى نيكه وي نو د ټول مال
بيا درېيمـه مـور لپـاره ده پـه دې حـال
دا صــورت كتــاب كــې يــا د عمريــه دى
او بــل نــوم ددې صــورت غرائيــه دى
مخــالف ددې پــه ځــان ابــن عبــاس دى
هغه وايي چې درېيمه كې هـر لاس دى
درېيم دا چې پـه پـلار حجـب واقـع كېـږي
لـه سـكه ورونـو او خوينـدو پنـا كېـږي
هم له پلاره ورونو خويندو پلار محجِب دى
خو نيكه د دوى محجب نه دى جالب دى
د ابــــو حنيفــــه رايــــه دې كــــې دا ده
چـې د دواړو حجـب يـو ډول سـودا ده

***

## د مېړه حالات

پــه ميــراث كــې د مېــړه دي دوه حالتــه
چـې راغلـي پـه قـرآن كـې بـې علتـه
لـومړى دا چــې كـه د ښـځې اولاد نـه وي
نو ميراث نيم د مېړه دى چې باد نـه وي

دویــم دا چـــې کـــه اولاد وي ددې ښـــځې

ځلورمــه د مېـړه وړانـدې بـه نـه ځـې

***

# د ښځې حالات

دا دوه حالــه دي د ښـځې هـم قـرآن کـې

که اولاد د مېړه نه وي لـومړي شان کـې

نـــو د ښـــځې ځلورمـــه ده دا ونـــډه

او کـــه وي نـــو بيـــا اتمـــه ده برغنـــډه

***

# د مور له پلوه د ورور حالات

چـې لـه مـوره وي لـه پـلاره نـه وي وروره

درې حالته يې حساب دي لـه دې پـوره

چې څوک ومري کلالـه شـي او ميـرات شـي

نه يې پلار وي نه بچي او لاړ يې ذات شي

خـو لـه مـوره يـې څـوک وي لـه پـلاره نـه وي

دا لـومړی حالـت دی نـوره لاره نـه وي

کـه يـو ورور يـا يـوه خـور وي ځان خبر کـړه

نو هـر يـو تـه يـې شـپږمه برخـه ورکـړه

دويم دا چې که دا دوه وي او يـا زيـات وي

ورور او خور يا ورونو خوېندو ته ميرات وي

نــو درېيمــه کــې دا ټــول شــريکان بويــه

دغــه برخــه ده وړه وي او کــه لويــه

درېيم دا چې لاندې بانـدې بچـي پـلار وي

نو ميراث کـې ونـډه نـه لـري دا لار وي

***

# د صلبي لور حالات

د صـلبي لــور درې حالتــه دي دا يـاد کـړه

که يوه وي نيم ميـراث ورتـه مـراد کـړه

کــه زامــن نــه وي او دوه وي او يــا ډېــرې

دوه درېيمـــې دي د دوی لپـــاره تېــرې

کــه اولاد ورســره وي نــو بيــا تعــصيب دی

د نـر دوه د ښـځې يـو دغـه نـصيب دی

***

# د سکه خور حالات

د ســکه خــور د ميــراث پنځــه احــوال دي

چې راغلي دې لپـاره پـه هـر حـال دي

که د مـړه نـه لانـدې او نـه ورور وي

نو نيم مال به په ميراث کې ددې خور وي

خــو کــه دوه وې دغــه خوينــدې او يــا ډېــرې

دوه درېيمې برخې دوی ته دي ورتېرې

دریـیم دا چـې کـه د مـړه فقـط یـو ورور وي
بیا تعصیب دی یو د ورور او نیم د خور وي
څلــورم کــه ددې مــړه وي څــه لورګـــانې
یـــا لورګـــانې د زامنـــو بنـــې پاکـــانې
نــو هغــوی نــه دغــه پــاتې بیــا د دوی دی
په تعصیب باندې یې وړی چې نېک خوی دی
پنځم دا چې د مړه زوی د زوی زامـن وي
یا یې پلار نیکه درانه او ښـه پـتمن وي
نـو د خـور خوینـدو میـراث پـرې ساقطېږي
ځینــې وایــي پـه نېکـه دانـه غـورځېږي
❋❋❋

# د علاتي خویندو حالات

علاتي خوینـدې چـې دي کـومې لـه پـلاره
شپږ حالات لـري درشـمېره یـې لـه واره
اول دا چــې وي یــواځې نــه یــې خــور وي
له دې پلاره نه سکه خور نه یې ورور وي
دې حالـت کـې لـه میراثـه یـې نـیم مـال دی
دوه دریيمې دوه یا زیاتو ته ارسـال دی
ســـکه خـــور ســـره دریـــیم حالـــت شـــپږمه
څلــورم صــورت تعــصیب بــالغیر منمــه
هغـــه دا چـــې علاتـــي ورســـره ورور وي
علاتي وي دغه خویندې یـا دا خـور وي

نــو د ورور لــه خــوره دوه چنــده رســېږي
دا حساب په دې ترتيب بانـدې سـمېږي
دا پـنځم صـورت تعـصيب مـع الغيـر گـوره
چې يوه وي او يـا زيـاتې لـه دې كـوره
ورسـره چـې كومـه لـور يـا د زوی لـور وي
د هغـو لپـاره فـرض برخـې ضـرور وي
دغـــه پـــاتې بيـــا ددغـــو علاتـــي شـــي
په تعصيب مع الغير دوی ته دا زياتي شي
شـپږم دا چـې دا ميـراث يـې سـاقطېږي
په دې لاندې صـورتونو كـې غـورځېږي
اول دا چـــې كومـــه فرعـــه ورســـره وي
يـا وارث كـوم نارينـه پـوره كـره وي
دويـم دا چـې ددې مـړي سـكه ورور وي
او دريـيم عـصبه شـوې سـكه خـور وي
يـا د لـور يـا د زوی لـور سـره دا كېـږي
په دې وخت كې د ورور ځای باندې ودرېږي
څلـــورم پـــه ســـكه خوينـــدو ســـاقطېږي
مگـر يـو صـورت لـه دې مـستثنا كېـږي
هغـــه دا چـــې ورســـره علاتـــي ورور وي
عصبه بيا دغـه خوينـدې او يـا خـور وي
نـو بيـا پـاتې د ورور دوه چنـده لـه خـور دی
دغه باغ په دې ترتيب باندې سمسور دی

***

# د زوی د لوڼو حالات

د زوی لوڼــو تــه پنځــه حــالات پــوره دي
چــې راغلــي کتــابونو کــې کــره دي
لــومړی دا چــې دې يــوې لپـاره نــيم دی
دا هغه وخت چې صلبي بچی عديم دی
دويــم دا چــې دا لمــسی دوه وي يــا زيــاتې
او صـلبي بچـی هـم نـه وي دلتـه پـاتې
دوه دريـيمــو کـــې دا تـــولې دي شـــريکې
دوسته برخې بـه پـوره د هـر چـا ليکـې
دريـيم دا چـې لمـسی ډېـرې يـا يـوه وي
او صلبي بچـی پـه دې کـې ورسـره وي
بيـــا شـــپږمه ددې ډېـــرو يـــا يـــوې ده
تکملـــــه د ثلثينـــــو د ډيـــــوې ده
خو که دوی سره د زوی زوی وي لمسی وي
نو بيا دوی شي عصبه چې دا سړی وي
بيـا د لـور لـه برخـې پـاتې د دوی مـال دی
د زوی يو او د لور نيم په دغه حـال دی
څلورم صورت کـه زوی وي دوی شـي پـاتې
چې زوی وي نو ميراث نه وړي دا ميراتې
پنځم دا چې ميراث نه وړي دې صورت کـې
چې دوه لوڼې وي صلبي يا ډېرې پت کې

مګـر یـو صـورت لـه دې نـه مـستثنا دی

عـصبه شـي د زوی زوی چـې بـرملا دی

***

# د مور حالات

مـــور لپـــاره درې حالتـــه دي راغلـــي

په دلیل کې په همـدې ډول دي کـښلي

کـه بچـي یـا د زوی زوی چـې ورسـره وي

یا دوه ورونه او یا خویندې وي کره وي

نـو شـپږمه دې صـورت کـې د مـور کېـږي

ورونه خویندې یـې هـر ډول حـسابېږي

کـه دا یـو نـه وي دریمـه د ټـول مـال ده

د دویم صورت دا برخه په دې حـال ده

په دریم صورت کې ثلـث د پـاتې مـال دی

د زوجینو له فرض وروسته دغه حال دی

لومړی دا چـې پـاتې ښـځه مـور او پـلار وي

دویم دا چې مور او پلار مېړه په لار وي

***

# د نیاګانو حالات

د صـــحیح نیاګـــانو درې دي صـــورتونه

پـه لـومړي صـورت شـپږمه ده مرهونـه

د یـــوې هـــم ده شـــپږمه او دا ډېـــرې

دي شـریکې پـه شـپږمه تېـر و بېـرې

خــو کـه ډېـرې وي بیـا شـرط یـې تـساوي دی

حــق د یــو ډول نیاګــانو مــساوي دی

دویــم دا چـــې دا نـــړدې نیـــا ده محجبـــه

دا دلـرې حــق رابنـد کـړي ای طالبـه

درېـــیم دا چــــې دا نیاګـــانې ســـاقطېږي

چې مور وي نو د دوی برخې بیا غورځېږي

د پلار مـور پـه پـلار ساقطه شـي هـم ګـوره

خو د مور مور پـه پـلار مـه بنـدوه وروره

پـــه نیکـــه د نیکـــه مـــور ده هـــم ســـاقطه

دا چې زده کـړې ځـه سـنګر تـه مرابطـه

***

## عصبه

زامـــن بـــولي عـــصبه پـــه قرابـــت کـــې

هم خپلوان د پلار له لوري هر صورت کې

پــه قــرآن کــې چــې راغلــې دي برغنــډې

دا فــروض دي د ذوی الفروضــو ونــډې

چــې زیـاتي ذوی الفروضـو نـه کـوم مـال شـي

مــستحق یــې عـصبه پـه دغـه حـال شـي

که زیـات نـه شـي عـصبه تـرې بیـا محـروم دي

خو زامن پکې محروم نه دي معلـوم دي

که ذوی الفروض یې نه وي نو ټول مـال بیـا

عــصبه تـــه ورکـــوه پـــه اعتـــدال بیـــا

***

# د عصبه و ډولونه

پــه دوه ډولــه عــصبه يــو نــسبي دي
او بــل ډول عــصبه يــې سـببي دي
نــــسبي عــــصبه درې ډول يــــادېږي
عــصبه بِنفــسهِ يــې يــو نــومېږي
عــــصبه بِغيــــرهِ پکـــې دا بـــل دي
او مــع غيــرهِ بــل عــصبه تــل دي
عــــصبه بنفــــسه هغــــه خپلــــوان دي
چې د مړه د نسبت منځ کې ټول نران دي
عــــصبه بنفــــسه څلــــور اصــــناف دي
اوس يې گوره چې معلوم د دوی اوصاف دي
زوی ولــي ده چــې د مــړي جــزء يــادېږي
پــلار ولــي د مــړي اصــل حــسابېږي
ورورولــي د مــړه د پــلار جــزء بانــدې يــاده
تــره ولــي د نيکــه جــزء دی بــامراده
هــم زامــن پــه زوی ولــی کــې بلــل کېــږي
د زامنـــو زامـــن هـــم پکـــې گـــډېږي
څومره ښکته چې ورځـې همـدا حـساب دی
زوی ولي ددغـو نـوم پـه دغـه بـاب دی
نــاموجود د زوی ولــی کــه وارثــان وي
ميراث نقل پلارولی ته په ښـه شـان وي

پلارولی کې نیکه غور نیکه څه پورته
پلارولی باندې ټول یاد دي دغه لور ته
که نه څوک د زوی ولی نه پلارولی وي
مستحق بیا وارثان د ورورولی وي
ورورولی کې سکه ورونه هم حساب دي
علاتي ورونه له پلاره ددې باب دي
د سکه ورونو زامن هم پکې بوله
هم زامن د علاتي ورور له دې توله
په هر لور چې بشکته ځې د ورورولی دي
په دې نوم باندې ټول یاد ددې ځبلی دي
که نه څوک د زوی ولی نه پلارولی وي
نه هم څوک پکې موجود د ورورولی وي
تره ولی ته دا میراث انتقالیږي
پکې ترونه د پلار ترونه لوړ یادیږي
لومړی خپل ترونه او بیا ترونه د پلار دي
د نیکه ترونه دریم په دغه لار دي
د یوې مرتبې ډېر چې وارثان وي
چې وي مړه ته ډېر نږدې ډېر حقداران وي
وارثان چې وي ډېر ګڼ په کوم صورت کې
مساوي وي درجې جهت نسبت کې
خپلولي چې د چا ډېره وي ځواکمنه
ډېر حقدار دي د میراث زما پتمنه

که جهت او په نسبت کې مساوي وي
درجې او په قوت کې مساوي وي

بیا میراث کې ټول یو رنګه مستحق دي
په یو ډول په میراث کې وړ لایق دي

عصبه بنفسه کې چې اول دی
نو جهت دی درجه دویم عمل دی

ورپسې بیا ځواکمني د خپلولۍ ده
مساوي سره په یو رنګه ځېلۍ ده

عصبه بغیره ده هغه ښځه
چې یواځې وي نیم اخلي وړاندې مه ځه

که یوه یا ډېرې خویندې ورسره وي
نو بیا دوه دریمې اخلي چې کره وي

او که ورور د دوی سره شي نو دا ټولې
عصبه شي په هغه باندې په سولې

عصبه بغیره دي څلور ډوله
په دلیل د علم مه وځه له قوله

لور لورګانې یا د زوی لورګانې بویه
سکه خویندې او له پلاره خویندې زویه

دغه ټولې بیا په ورور عصبه کېږي
د نر دوه د ښځې هم یوه رسېږي

عصبه مع الغیر هغه ښځه بوله
چې اړتیا یې وي د بلې له دې توله

دا دوه ډوله دي سکه خويندې يا خور ده
دا د لور يا د زوی لور سره په کور ده
دويم خويندې او يا خور ده له يو پلاره
ده د لور يا د زوی لور سره په لاره
چې کوم پاتې له ذوی الفروضو مال شي
عصبه مع الغير ور يې په دې حال شي
سببي عصبه هغه بادار بويه
چې غلام وينځه ازاد کړي زما زويه
سره يو دي نارينه که ښځينه وي
چې دوی نه وي عصبه بيا نارينه وي

***

## حُجب (بنديز) او حِرمان

حجب منع له ميراث هغه بنديز دی
چې لامل يې کوم خپلوان نږدې عزيز دی
حرمان دا دی چې مانع پکې پيدا شي
له ميراثه پرې محروم دغه اشنا شي
لکه قتل شو قاتل هم محرومېږي
اختلاف د دين مانع پکې جوړېږي
حجب دوه ډوله دی يو حجب حرمان دی
او دويم ډول يې حجب د نقصان دی
حرمان ټول ميراث نه منع په لامل شي
له کبله د وجود د يو بل خپل شي

لکه زوی چې کله وي نو ورور محروم دی
ټول حساب ددغه علم ښه معلوم دی

خو شپږ ډوله له حرمانه مستثنا دي
مور او پلار لوڼې زامن ښه برملا دي

بل مېړه او ښځه هم نه محرومېږي
خو دا ټول حجب نقصان کې ورګډېږي

ډېر نږدې په لرو لرو مقدم دی
زوی لمسي باندې اولیٰ او محترم دی

چې زوی وي نو بیا وراره ترې محرومېږي
په سکه ورو علاتي بیا پاتې کېږي

د نقصان په حجب برخې څه کمېږي
محروم نه شي خو نقصان پکې جوړېږي

د نقصان حجب دې څو کسو ته جوړ دی
فرق یې نشته دی چې ځوان دی او که زوړ دی

چې بچی وي د مېړه برخه کمېږي
نیمایي نه څلورمې ته لږېږي

په بچي د ښځې برخه شي کمه
څلورمې نه اتمې ته شي کمه

د مور برخه په بچي راښکته کېږي
له دریمې دا شپږمې ته کوزېږي

د زوی لور او علاتي خور هم حساب دي
د نقصان حجب کې ګډې په دې باب دي

***

# عــول

عــول وايــي پورتــه والــي او مــيلان تــه
ددې برخو او د تول زيـادت نقصان تـه
د ذوى الفروضــو برخــې چــې شــي زيــاتې
او نقصان پکې د تول کــچ شــي راپـاتې
د نقــصان نـــسبت پـــه برخـــو ويـــشل کېـــږي
مـــــسأله د عـــــول دغـــــسې حلېـــــږي
شــپږ يـا دولـس يـا څلرويـشت چـې وي اصـل
نو ممکن شـي پکـې عـول پـه دې فـصل
شـــپږ د اوو اتـــو نهـــو لـــسو زيـــاتېږي
دولس هم ديارلس، پنځلس، اوولس کېږي
خو څلرويشت فقـط اوه ويـشت تـه زيـاتېږي
حـــسابونه د عـــول دغـــسې جـــوړېږي
دوه يـا درې څلـور اتـو کـې عـول نـشته
دې اصــولو کـــې د عـــول قـــول نـــشته
پـــه اتلـــسو او شـــپږ دېرشـــو هـــم نـــشته
خو په درې کې اختلاف سره سم نـشته

***

# ذوى الارحام

چـــې ذوى الفـــروض او يـــا عـــصبه نـــه وي
نور خپلوان ذوى الارحام دي چې درانه وي

د ذوی الارحـام میـراث کـې اخـتلاف دی
څوک یې ورکړي څوک یې نه دغه خلاف دی
دا ذوی الارحـام پـه څـو ډولونـو شـمېر دي
چا یاد کړي دي او چا څخه دوی هېر دي
لـــومړی ډول دي د لوڼـــو اولادونـــه
د زامنـــو د لورګـــانو دي نـــسلونه
بـل نیکـه او نیـا یـې غیـر صـحیح هـم دي
څومره پورته چې ورځې په دې کې ضم دي
بـــل د ورونـــو اخیـــافي بچـــي پکـــې دي
د سکه خویندو بچي هم پـه همـدې دي
ناسـکه وي کـه لـه پـلار او یـا لـه مـوره
دا بچي یې په همـدې کتـار کـې ګـوره
دا ســـکه او ناســـکه ورېـــرې حـــساب دي
د سـکه ورېرونـو لـوڼې پـه دې بـاب دي
هـــم لورګـــانې دا د ورونـــو علاتـــي دي
ددې ټولـو بچـي هـم پکـې زیـاتي دي
ناسـکه ترونـه د مـور لـه خـوا نـه ګـوره
هـم ترورګـانې، ماماګـان دي زمـا وروره
ددې ټولـــو اولادونـــه پکـــې شـــمېره
د سـکه ترونـو لورګـانې کـره سـربېره
ددې ترونـــو د زامنـــو دا لورګـــانې
هـم ددې ښـځو اولاد وي دغـه شـانې

هـم د مـور لـه لـوري ترونـه يـې د پـلار دي
هم ترور گانې، ماماگان يې وار په وار دي
د مـور ترونـه ماماگـان هـم پکـې شـمار دي
او ترورگانې د مور شمېر په دې کتار دي
ددې ټولـــو اولادونـــه ورســـره کـــړه
هم د پلار د ترونو لوڼې پرې پـوره کـړه
هـــم د دوی ددې زامنـــو لـــوڼې وايـــه
اولادونـــه ددې ټولـــو ورتـــه ښـــايه
هـم د مـور لـه خـوا د پـلار د پـلار دي ترونـه
هــم د مــور د پــلار دا ترونــه کتارونــه
هـــم ددې دواړو ترورگـــانې ماماگـــان دي
هم د مور د مور دي ترونه دا خپلوان دي
هــم د مــور د پــلار دي ترونــه ددې دواړو
دا ترورگـانې ماماگـان دي لـه دې واړو
هـم د مـور د مـور دي ترونـه دې جملـې نـه
هم د پلار د مـور دي ترونـه سلـسلې نـه
ددې دواړو هــم ترورگــانې هــم دي ترونــه
هــم حــساب دي ددې ټولــو اولادونــه
هم د پـلار د پـلار دي ترونـه دې کتـار کـې
د زامنو يې لورگـانې دي دې شـمار کـې
اولادونـــه ددې ټولـــو دې کـــې عـــام دي
په حساب کې دغه ټول ذوی الارحام دي

***

# ځينې نور احکام

کـه لـه مـوره ماشـوم وشـي او ژونـدی وي
که بيـا ومـري او کـه پـاتې ګړنـدی وي
هم ميراث وړي هم ميراث ورنـه وړل کېږي
او کـه مـړ وي بيـا پـه نـشتو حـسابېږي
حمـل خېټـې کـې ميـراث نـه وړي لـه چانـه
مـسائل د ميـراث زده کـړه پـه مـا ګرانـه
له پنځـو مياشـتو کـه زيـات وي او ژونـدی وي
ميراث وړي که د چا زوی وي که کودی وي
نرښځی چې هم يې فـرج هـم يـې ذکـر وي
او معلوم نه وي چې ښـځه او کـه نـر وي
يـا دا دواړه نـه وي هـسې ځـه سـوري وي
پېژنـدل د دوی پـه نـښو ضـروري وي
چـې ميتيـازې يـې پـه هـر غـړي کـولې
يـا يـې مخکـې لـه کـوم غـړي راوتلـې
اعتبـــار د هغـــه غـــړي حـــسابېږي
يـا مـيلان د نـر او ښـځې شـمېرل کېږي
لکـــه ږيـــره يـــا تيونـــه احـــتلام شـــو
يا شو حـيض او يـا د نـورو نـښو پـام شـو
کـــه يـــې نـــښې نارينـــه وي نارينـــه دی
کـه يـې نـښې ښـځينه وي ښـځينه دی

چې هر لوري ته رجحان او یا میلان وي
د همغه جنس میراث ورته عیان وي
او که دواړه لور ته هر رنګ مساوات وي
د خنثیٰ مشکل همدارنګه صفات وي
بیا راجح حکم همدا ددغه باب دی
چې دا دوه ځلې او دوه ډوله حساب دی
یو ځل نر او یو ځل ښځه ګڼل کېږي
بیا د دواړو برخو منځ یې حسابېږي
که ورک شوی وي درک یې نامعلوم وي
او توپیر د ژوند او مړینې هم معدوم وي
نه شاهد او نه دلیل د مړ ژوندي وي
او حیران یې هم خپلوان او هم پردي وي
تر څلور کلونو صبر ورته کېږي
که دلیل نه وي په مړه به شمېرل کېږي
له عدت وروسته یې ښځه نکاح کېږي
له څلورو کلو وروسته حسابېږي
هم یې مال په وارثانو تقسیمېږي
که پیدا شي بیا دا بېرته ورستنېږي
هم په ښځې کې اختیار یې د رجوع دی
د مفقود په هکله دا حکم مشروع دی
هم میراث وړي د څلور کلو جریان کې
هم دا بېرته وېشل کېږي مذکور شان کې

که معلوم وي چې بندي د ی مفقود نه دی
دا په ورکو کې هیڅکله معـدود نه دی
که زندان یې چېرته پټ وي کهښکاره وي
چې مړ نه وي هره برخه یې پوره وي
نه یې ښځه په نکاح چاته رواده
نهمحروم د ی له میراثه دا رښاده
که بچی وي د زنا یا د لعان وي
پلار حساب نه د ی میراث د مور له شان وي
***

# رد

رد له ونډو نه د زیات مال بیا وېشل دي
مستحق ته خپل حقونه ورکول دي
چې مال زیات شي د ذوی الفروض له ونډو
نور څوک نه وي مستحق ددې برغنډو
نو دا مال به بیا دویم ځل تقسیمېږي
د ذوی الفروضو برخې به جوړېږي
د هر چا برخه د برخې په نسبت ده
دې ته رد وایي خبره دا صحت ده
رد ولاړ په درې بنسټو باندې بویه
دا خبره له دې نه ده وړاندې لویه
اول دا چې د ذوی الفروض وجود دی
توپیر نشته چې یو څو که یو موجود دی

دويـم دا چـې ترکـې نـه وي څـه پـاتې
له لومړي وېش نه دا برخې شي رازيـاتې
درېـيم دا چـې مـستحق پکـې نـور نـه وي
دا ذوی الفروض يـوائې وي درانـه وي

***

## تخـارُج

تخـارج وايـي څـه سـولې مـصلحت تـه
د ميراث پـه برخـو جـوړې او صحت تـه
يـو تـر بلـه جـوړ جـاړی او تېرېـدل دي
پـه رضـا خوشـحالۍ برخـه خرڅـول دي
او دا دواړه وي پـــه مـــنځ د وارثـــانو
پـــه خوښـــۍ او عـــدالت د مؤمنـــانو
يـا لـه منځـه کـوم بـدل بانـدې ايـستل دي
د هغـه برخـه پـه نـورو ور وېـشل دي
کـه لـه منځـه وي دا برخـه تقـسيمېږي
پـه نـسبت د هـرې برخـې وېـشل کېږي
خـو دا برخـه بـه معلومـه او ښـکاره وي
تخـارج بـه هـم پـه عـدل ښـه کـره وي
که څوک ومري او هيڅوک ميراث خور نه وي
نږدې لرې اخيـستونکی غمخـور نـه وي
دا ميــراث د بيــت المــال د خلافــت دی
شـريعت کـې د اسـلام د حکومـت دی

طـــاغوتي حکومتونـــه حقـــدار نـــه دي
مرتدان دي دا چارواکي په لار نه دي
مـــا احکـــام د شـــريعت درتـــه بيـــان کـــړل
پـــه رڼـــا د دليلونـــو مـــې عيـــان کـــړل
دا منظومـــه فقهـــه ورســـېده پـــای تـــه
د الله پـه توفيـق راغلـه دغـه ځـای تـه
پـــه پـــښتو ژبـــه مـــې وڅېـــړل حکمونـــه
پـــه شـــعرونو مـــې راوســـپړل گلونـــه
اوس نـــو وار د پـــښتنو دی بويـــوي دې
اوبـه خـور دې ورکـوي راټولـوي دې
پـــه پـــښتو داســـې ليکـــل تراوســـه نـــه وو
دا سپړل، څېړل، پيیل تراوسـه نـه وو
نـــور توفيـــق لـــه الله غواړمـــه چـــې راکـــړي
وس د نـــورو تحقيقونـــو راعطـــا کـــړي
د دنيـــا او اخـــرت مـــې ذخيـــره کـــړي
او ليکل مې هم کره او هـم پـوره کـړي
تـــه هـــم ووايـــه آمـــين کـــوه دعـــاوې
چې هم شکلي وي لفظونـه هـم معنـاوې
دا دويمـــه مياشـــت تـــاريخ يوولـــسم دی
پنځلسمه پېړۍ کال هـم يـو دېرشـم دی
بجـــې دولـــس دي او شـــپه د چارشـــنبې ده
فـضا شـکلې ده شـېبه هـم د تـوبې ده

**مـا ددې تـاريخ او پيـل مـنځ او جريـان کـې**

**کتابونــه نــور هــم وليکــل اتقــان کــې**

**په دې منځ منځ کې فـارغ چـې وو وختونـه**

**مــا ليکــل پکــې ددې کتــاب شــعرونه**

**کتــاب ولولــه نــور څــه مخــه دې بښــه شــه**

**دا کتـاب دې د عمـل ښـکلې توښـه شـه.**

# پـــای

**۱۴۳۱/۲/۱۱ سپوږميز هجري**

**۱۳۸۸/۱۱/۷ لمريز هجري**



# لړلیک

سرلیک مخ

| سرلیک | مخ |
|---|---|

سرليک مخ

سرليک مخ

سرلیک مخ

سرليک مخ

سرلیک مخ

سرليک مخ

سرليک مخ

سرليک مخ

سرلیک مخ

| سرلیک | مخ |
|---|---|

سرليک | مخ

# د لیکوال نور آثار

ددې کتـاب لیکـوال لـه پنځوسـو زیـات آثـار پـه پـښتو او عربـي ژبـو لیکلـي دي او ځینـې یـې فارسـي او اردو تـه ژبـاړل شـوي دي . په دې کـې څـه چاپ شـوي دي ، څـه چـاپ تـه تیـار دي او د قـرآن کریم په تفسیر او ځینو نورو کتابونو کار روان دی .

د لیکـوال پـه آثـارو کـې عقیـدوي مـسائل، فقهـي احکـام، ادبـي مفـاهیم ، سیاسـي او فرهنګـي مـضامین څیـړل شـوي دي ، چـې څـه برخه یې شعر او څـه نثـر دی ، شـعر یـې پـه عربـي، پـښتو او فارسـي کــې لیکلــی دی اود(اندونــه انځورونــه) پــه نامــه دېــوان لــه چاپــه راوتلی دی .